# د پښتنو ټولنیز اقتصادي جوړښت

## ،د ثور تر انقلابه،


د افغانستان د علومو اکاډمي

د پښتو څېړنو بین المللي مرکز

کابل - ۱۳۶۲

# د پښتنو ټولنيز - اقتصادي جوړښت

«د ثور تر انقلابه»

د جلات خان حکمتي په اډيټ او سريزه



د افغانستان د علومو اکاډمي

د پښتو څېړنو بين المللي مرکز

کابل ۱۳۶۲

پرله پسی لمبر ۲۰

مهتممین : عبداللطیف طالبی او نورالحق پایند

دچاپ شمیر: ۱۵۰۰ ټوکه

دچاپ ځای : دولتي مطبعه




په دی ټو که له محترم استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د سر محقق مر ستیال محمد نعیم سالار زی او نورو ټولو هغو محترمو پوهانو اولیکوالو څخه د زړه له کو مي مننه کوم چي ددغه کتاب د اډیټ په برخه کی یی له ماسره مر سته کړی ده.
(اډیټور)

# د عنوانونو فهرست

## دوهم فصل



## دریم فصل

## تولید اوتوزیع په‌پښتنو کې





سرلیك مخ

خلورم فصل



پنځم فصل



شپږم فصل

پښتو نولی

سرليك مخ

## اووم فصل

### كليواله تولنه

سرلیک | مخ

# د لوستونکو سره څو خبرې

دپښتو خیبر نو بین المللی مرکزوپاری ی چی گرانو لوستو نکو ته دغه په‌زړه پوری اثرو ړ انـــــد ی‌کوی.

دانقلابی افغا نستان په دمـوکراتیک جمهوریت‌کی ددغه اثــر خپرول ډیر مهم دی.ځکه چی زموږدانقلاب بهیر په‌ډیره چټکی مخ په وړاندی روان دی اودغه څه چـــی‌دلته درج ، خپاره او تـو لنی تـــه وړاندی کوو دژو ند له‌سا حــــی‌څخه په بیړه سره و تو نکی دی .

دانقلاب تړو خته زموږ تو لنی‌دخپلو بیلو بیلو سیمو داقتصاد ی او اجتماعی شرایطو په حـکـم پــه‌فیو ډا لی (او څه یی په ما قبـــل فیو ډالی) روابطو کی ژوندکاوه .دټولنیز- اقتصاد ی فور ما سیون په بدلون سره دغه‌روابط په تدریج‌سره خپل ځای دبل فور ما سیون روابطو ته پریږ دی او ځان د تاریخ‌پاڼو ته سپاری . نو په دغه اساس دتاریخ په‌پاڼو کی دفیو ډا لـــــی(اوما قبل فیو ډالی) فورما سیو ن دروابطو خو ندی ساتل او راتلو نکو نسلو نو ته دامانت په‌تو گه د هغو وررسول یو ډیر مهم او خوراسترکاردی.

—لومړی—

دڅور انقلاب نه پهور مخکـــــې پښتني ټو لنه کې عمو ما فیوډا لی مناسبات دڅو ند په هره برخه باندې واکمن وو . دښځو ټنبتول او پهدې باب نر خو نه ، دزمکو دغصبو لوټری، دزمکوا ل او مز دور کروندګر ترمینځه غیر انساني اوظا لما نـه مناسبا ت اودغه شا ن داجتما عی بې عدالتیو اود استثمار په ستنوولاړ نور روابط چې د پښتني فیو- ډالی ټولنی په ګو ټ ګوټ ، قبیله قبیله او خیل خیل کې مو جود وو د ثور دملي دمو کراتیك انقلاب پهمخکې نور دټینګیدو ځای نهلري .

زمونږ دټو لنی دښځو مظلو م ،محکوم او له ټولو بشري حقو قو څخه محروم قشر دڅور دپر تمیـن،انقلاب لهبر کته دیوه خپلوا ك،آزاد اوډبشري حقوقو دلرو نکی قشرپهصفت تبارز کړ ی دی او س چې دزمکو داصلا حاتو پروسې د ستړزمکوا ل مفهو م ختم کړ ی او د کروند ګرو تر منځه یې استثماري منا سبات او ټو پیرو نه له منځـه وړی دی او اوس چې د هغې عادلانه ټو لنی بنسټ ایښودل شوی چې هر ډول استثمار له منځه وړ ی ،نو طبعا دزړو فیو ډا لی مناسبا تو او روابطو ځای نو ی اقتصاد ی اواجتما عی مناسبا ت نیسي . همدا رنګه دانقلاب دستړو اهدا فو پـه تطبیق سره به ډیر زاړه اصطلاحات (لکه سر بانډی ،جغ، دیوی داجزاونومو نه ، ماله، غابنوز ، ښباخی، اوداسی نور ، دکسبو نو دآلا تو،ددو دو نو داصطلا حاتو ،دقبیلوی روابطو اصطلا حـــــــــــا ت )له منځهولاړ شی او ځای به یې د تراکتور اود عصر ی ماشینـــر ی اصطلا حات ، دعادلا نه بشـــر ی روابطو اصطلا حات او دا سې نو رونیسی . نو په دغسې انقلا بـــی او بد لیدونکو شرایطو کې ز مـو ږدټو لنی را تلو نکو ا نقلابی نسلو نو

ته دیوه موزیم په‌توګه دزړو منا سباتو د انځور خو ندی ساتل‌زموږ په‌نظر ډیر ارزښت لري .

ددغه ستر تاریخي اهمیت په‌څنګ کې چې ددغه ا ثر په خپرولو کې نغښتي دی موږ اعتراف کووچی‌په هغه کی څه نیمګړ تیاو ی هـم شته او موږهیله‌لرو که دغه‌اثر بـیاوروسته کله چا پیږی او یا تـری استفاده کیږی ددغو نیمګړ تیـاولری کول به‌په نظر کی وی . کـه ربنتیاوو یل شي خپرو لو ته ددغه‌اثر په استولو کی له څه عجلی‌څخه کاراخیستل شویدی داډیټ‌اودلومړیوپاڼو دسمو ن چار ی یې هم په‌دغه تو ګه پر مختللی دی. دمثال له‌پاره‌موږ‌څو ځایه له داسی عبارا تـو سره مخا مخ کیږو: دښوراوك‌سپین‌ږیرو ته معلو مه ده چی کـــوم ستور ی دشپی په‌کوم پار کی راخیږی اوپه کوم پارکی لو یږی. یا داچی د لوی اختر په میا شت‌کــی‌داوبو لګول پیل کیږی ...

دلته‌اوپه داسی نورو‌ځایو نوکی‌قمری‌میاشت دټول عمر له‌پاره اعتبار نه لري، یوازی قمري حساب د کتاب‌دترتیب په و خت ، یعنی ۱۳۵۶ش کال کی اعتبار در لود . دغه میتودغیر علمی دی(وګوری ۳۵ مخ ا و ور پسی مخونه) . دځیږ نو میتودهم بیخی زوړ دی. دکتاب په اووم مخ کی دبز ګرو او کسب ګروټیټ‌قشر په کاست (Caste) تر جمه شوی، حال دا چې کاست‌هم‌دټیټو او هم دلوړو طبقو له پا ره استعمالیدای شی چی خا صـــــ‌کلتور ی روابط ، ټاکلی‌اجتما عی وظایف او په دا خل کی خا صـــ‌قوانین لری ، حتی په ځینو ټو لنو کی د کاست سیستم دټولنی‌وګړی‌په‌لوړه طبقه او ټیټه طبقه و یشی‌او دهغوتر منځه څرګنده کر ښـــــه‌باسی .

په دغه توګه په دی‌اثر کی‌ځینی‌خبری لرو چی دزیات غورغوښتو- نکی دی. ددی ټولو سره سره‌ددی‌اثر ارز ښت خورا ډیر دی ، ځکه

هغه مناسبا ت چي ديوي وثيقي په‌تو گه په دغه اثر کي خو ندی دی
هغه دعمل له پگره ډير ژرو تونکی‌دی او په راتلو نکو و ختو کی د
هغو څیړ نه او مطالعه له سختـــوستو نزو سره مخا مخ کیږ ی.هيله
لرو چي ددغوستو نزو له حلولو سره به دغه اثر ديوه ښه تاريخی
سندپه‌تو گه مر سته و کړی.

په پای کی دمحقق جلات خان‌حکمتی‌دهغی زيار ايستنی څخه‌چی‌ددغـــه
اثر داډيټ په‌بر خه کي اود محقق دمرستيال عبداللطيف طالبی له‌زيار
څخه چي ددغه کتاب په اهتمام کی‌يی ايستلی دی مننه‌کوم .

**سر محقق دو ستشينوار ی**
**دپښتو څیړنو د بین المللی مرکزرئیـــــس**



**ـخلورمـ**

# ســریــزه

دا کتاب دپښتنو ټولنیز ـ اقتصادي جوړښت نو مول شوی او همدغــه موضوع پکی دساحوی ر یسرچ اودځینو کتا بو نو دمطالعی په اساس په پرا خه او ژوره تو گه تر بحث لاندی نیو له شوی ده .

ددغی پروژی دخیړنی اصلی سیمی ښوراوك ، د انگام اوخو ست وټاکلی شوی او ساحوی ریسرچ هلته بشپړ شو .د مواد وله راغونډو لو وروسته او همدا رنگه د کتابی ریسرچ پهاساس دیوه شمیر ټو لنپوهانو او انسان پو هانو (انترا پالو جستا نو) لکه کارل مارکس ،ف انگلس، مورگن سترن ،ماکس ویبر ،فریدریك بارت او نورو د هغو تیوریکو افکارو او لیکنو له مطالعی څخه ورو سته چی دپښتنو او پښتنو ته ور ته قو مونو په باب یی کړی دی د کتاب پهلیکلو پیل و شو چی پخپله د کتاب په لو ستلو سره د غه موضوع ښه پوره څرگند یږی او لوستو نکی ورباندی قضاوت کو لی شی .

له بده مر غه هر ځو مره چې د کتاب محتوا اورا غونډشوی اوڅیړل
شوی مو ضو عات له اهمیته ډك اودزیاتی علمی ګټی ا خیستلو وړ دی
خوپه هماغه اندازه‌دکتاب په‌تر تیببولواو حتی تصنیفولو کی له لازم تا مل
او غور کو لو څخه کار نه واخیستل‌شوی او داسی معلو میده لکه د چا
خبره چی‌څوك خورا قیمتی مرغلری‌په‌تلوار سره بی له کوم نظم او ترتیب
څخـه پـه یو او مړی تـا ر کـی‌وپییی. مثلا که څه هم لوی اوواړه
عنوانو نه لیـکل شوی وو، خو نه‌دفصلو نو یا څپر کود ځرګندویش‌په
اساس درانقل شو قو لونو ما خذته په لمن لیك کی د شماری پـه
اساس اشاره شوی وه خو په یوشمیر ځایونو کی حتی د کتاب اویا
دهغه د مو لف نوم هم نه وښـودل‌شوی .پخپله په کتاب کی دننه یـو
زیات شمیر جملو او کلمو او ځینو اصطلا حاتو د ژبی او موضوع له‌پلوه
اصلاح کو لو او کله کله هم تـر ضیحاتو ته اړ تیا لر له. لنډه دا چی
لکه چی وموویل دغه ډیری ښکلی‌اوقیمتی مر غلری په خورا زیاته بیړه
او نسبتا بی تر تیبه تو ګه سـره‌پییلی شوی وی . خو سره لـه دی
ټولو خبرو بیا هم دغه راغو نډ کړای‌شوی او لیکل شوی مواد د یوه‌کتاب
په تو ګه په خپل ذات کی دزښت‌ډیر اهمیت درلود ونکی او دزیاتی
ګټی وړ موادو وچی یقینا به د هرعلاقه لرونکی لو ستو نکی له پاره‌هم
په زړه پوری او هم د ګټی ا خیستلو او معلو ماتو د زیاتو لو وړ وی .نود
همدی اړخ په نظر کی نیو لو سره‌دپښتو څیړنو د بین المللی مرکـز
ریاست دخپلو هد فونو له مـخی‌اوددغه کتاب د سا بقی‌او ګټور توب‌په
نظر کی نیو لو په اساس نو موړی‌کتاب ددغه ریاست د علمی او مسلکی
غونډی د پر یکړی په اساس مـاتـه‌ذاډیت له پـاره را وسپارل شـو.
دکتاب دموادو په ترتیب کی زیاتـی‌نیمګړ تیاوی وی (لکه چی دمخه یی

یادونه یشوه) . تردی چي موضوعاتي یي داو مو موادو بنه لړله او دهغوی ترتیب کښ مښ داسی و لکه له سره دیوه کتاب تر تیبول .

بیاهم، دغه کار ته ما داډیتور پـــه صفت ملا ، تړله .

هغه کارونه چي ما دا ډیتور په توګه په کتاب کی سر ته رسولی دی په لنډ ډول دادی : د اصلاح وړ کلمی او جملی می له املایی پلوه ځای په ځای په متن کی اصلاح کړی دی اوهمدا رنګه د ځینو کلمو لنډی دری یا عربی معنا ګانی می په قو سینو کی نیولی د ی .هغه عبا ر ا ت اومفاهیم چي لږ څه زیات تفصیل او توضیح یي غوښت هغه می په لمن لیکو نـــو کـــی لیـــکلی دی او ا شـــا ره مـــی ورتـــه کـــړ ی ده، یو شمیر فصلونه اولوی او یا یه عنوا نونه می له سره تر تیب ، کم ، او یا می ورزیات کړل. هغه شماری چي په لمن لیك کی راغلی دی اونه یی د کتاب د مولف او یا متر جم نوم و هغه می هم له متن څخه او هم له لمن لیك څخه لیری کړی، ځکه نامعلوم په نا معلوم حواله کول هیڅ ګټه نلری . له نیکه مرغه دا ډول شماری هو مره نه وی چي دکتاب ا همیت راټیټ کړی .چیری چي لږ تر لږه د کتاب اویا مولف نوم هم ښودل شوی واو مخونه یی یا ضرورنه وو او یانشوای معلومیدلای هغه می پر ځای پر یښو دل او اکتفا می پرو کړه .د کتاب په پای کی می دماخذونو ببلیو ګرا فی تر هغه ځایه چي امکان یی درلود برابره او ځای په ځای کړه .

دنوی تر تیب او فهر ست له مخی کتاب په اوو فصلو نو ویشل شوی پـــه لـــو مړ ی فـــصل کـــی د ټولنی اقتصادی جوړ ښت تر بحث لاندی نیول شوی چي ویش اودویش دود سیستم په پراخه اندازه څیړل

شوي دي . په تاريخي ، ټولنيز، اقتصادي او فرهنگي لحاظ د هغه اقسام ، درواج لرلو ځا يونه، اودپای ته رسيدلو بيلابيل عوامل بيان شوي دي .دوهم فصل اسيايي ټولنه دعلمي تيوري د افکارو په رڼا کې څيړي او دلته د آسيايي ټولنې جوړښت په عمومي توگه او په تاريخي لحاظد ختيځ د تو ليد د ډول او د استبدادي او فيوډالي دورو په پراوونو کې څيړل کيږي . دمارکس هغه نظر يې چې د ختيځې اروپا د ټولنې او هندي ټولنې په باره کې يې څرگندې کړې دي اقتباس شوي دي او د هغو په رڼا کې دکرنې د پراختيا، دجاگير منځ ته راتلل، او دمرکزي حکومت تقويه کيدل بيان شوي او پښتنې ټولنه په همدې ارتباط تر بحث لاندې نيول کيږي .

په دريم فصل کې د پښتنې ټولنې د تو ليداو توزيع موضوع گانې په پراخه اندازه تر بحث لاندې نيول شوي او د هغو په ارتباط د ايکالوجي او د مځکو د نوعيت له مخې ددانگام، گربزو اوبنوراو ک سيمې دکرنې او اوبو لگولو له پلوه سره مقايسه کيږي او دا خبره د يادو لو وړ ده چې په داسې حال کې چې ، په دريواړوسيمو کې للمي ځمکې شته خو کارينې ځمکې او د کارينو نو موجوديت يوازې ددانگام او د کونړ ولايت د نورو سيمو مشخصه ده . کارينې ځمکې هغه مرتبه داری برخې دي چې د غرونو او غونډيو په ډډو واقع شوي او بزگران پکې کښت او کرکوي د دغو ځمکو حاصلات دابي او للمي ځمکو په پرتله لږ وي .

دهقاني مناسبات او داوبو لگولو سيستم لکه دميراو (کڼبې) ټاکل، دوياليو کيندل ، او په هغو کې د اولس گډکار تر بحث لاندې نيول کيږي او اهميت يې څرگندشوي دي. دبزگرۍ سامان آلات ، د څړ ځايو نو ټاکل. او ساتل د مالدارۍ لارې چارې اودکسب گر او خان تر منځ اړيکې، او

دپښتني ټو لنی طبقه بندی دوینی‌اوکسب په‌لحاظ او په پای کی ملکی او خانی او د خان او فیوډال مقایسه شوی ده چی دا خبره‌جوتیږی چی‌خان او فیوډال د پښتني او اروپا یـــــی‌ټولنو په ارتباط یو له بله توپیرلری او دغه تو پیر د قبیلوی ، اړیکو ، خصو صی ملکیت، میراث او دپا چاد بدلون په ارتباط ښه ځر گندید لا ی‌شی .

په څلورم فصل کی قبیلوی‌اوټولنیز جوړ ښت تر بحث لاندې نیول شوی دی. دلته دفرد او قبیلی‌ترمنځ‌اړیکی ، د ګډ قبیلوی جوړ ښت پاتی شو نی ، د ځمکی دنه ځرځلاودود او ګډ قبیلوی ملکیت ، سیال او فزیکی قوت او د هغه په مقابل کی‌انډول ساتل څیړل شوی دی. داخبره جوته ده چی د کو چیانو ، نیم‌میشت‌او میشت و ګړو ، قبیلوی، ټو لنیز، اقتصادی جو ړ ښت یو له بله تو پیرلری . همدا رنګه د پښتني ټولنی ټو‌ته ییز خصو صیـــت‌او په ړر تـــــه‌ټو لنو کی د مر کزی دولت رول‌بیان شوی دی .

پنځم فصل د کورنی په باره کـــی‌دی . دلته ځر ګند یږی چی‌په‌پښتنو کی اسلام د انډ ‌و ګمی (په‌خپلو‌کی‌دواده کول ) پرو سه تقویه کړی ده خودالکه دپخوا‌نیوعر‌بو‌په‌شان‌نه‌ده‌چی‌دتره لور به حتمی د تره دزو ی‌سره واده کوی، بلکه په دی کی داکارداقتصاد د تو لید له ډول ، دوینی‌له سو چه والی ، دسیال او تر بګنـــی‌دعنعنو سره ټینګی اړیکی لری .

په شپږم فصل کی دپښتو نو لی‌موضوع تر بحث لاندی نیول‌شوی ده او په بیلا بیلو پښتني سیمو کی‌لکه په خوست ، سالار زو ،مامو ندو شینوارو او نورو کی د پښتنونو لی‌ټول اړ خونه چی په نر خـــو نو او

ځلیو کی درااز راز قضیو په باب په تیره د مرگ او ژو بلی ناموس او ځمکی دتاوانو نو په باب فیصلـــی وربا ندی کیږ ی په مفصله ټــوگــه بیان شوی دی.

او و م فـــصل کـــلیـــو الـــه ټو لنه او د هغی ټول مظاهراو د کلیوالی ټولنی جوړ ښت او همدارنگه د خان او ملا رول او وظیفی ددغـــی ټولنی په ارتباط تشریح کوی .

د کتاب په پای کی دوه ضمیمی ځای په ځای شوی دی چی لومړ ی یی د پښتنی ټولنی دیوه شمیر سیمو او قو مونو لانجی او کشالی بیا نوی او دوهمه یی د باجوړ د ښارریاست تر عنوان لاندی د هغی ټولنی اداری او ټو لنیز جوړ ښت په طبقاتی لحاظ تر بحث لاندی نیسی. د دغو دواړو ضمیمو لو ستل چی معلو مات یی په سو چه سا حوی ریسرچ بنا شو ی دلو ستو نکی له پاره له هره پلوه دگټی وړ دی .

**محقق جلات خان حکمتی**

**۱۳۶۲ کال**



# اقتصادي جوړښت

## وېش دود

((ټول تاريخ بايد له سره مطالعه‌شي او د ټولنې د بيلا بيلو فورما ـ سيونونو د موجوديت شرايط بايد په ځانګړې توګه وڅېړل شي. پخوا له دې چې هغه سيا سي، مدني، قانوني، د ښکلا پېژندنې، فلسفي ديني او داسې نور مفاهيم ور څخه‌راوېستل شي چې له دغو فـور ماـ سيونونو سره مطابقت کوي. په‌دې‌برخه کې تر اوسه پورې ډېر لږکار شوی دی ځکه يوازې لږ شميـــراشخاص په جدي توګه دغســـي موضوع ته پام اړولی دی.» (۱)

ددې له پاره چې د پښتنو دقبيلوي‌ټولنې د ټولنيز ـ اقتصادي فورماـ سيون په څر نګوالي پوه شو، ښه‌به داوي چې د پښتنې ټولنې دوېش سيستم د ختيځ توليدي ډول (شرقي‌طرز تو ليد) په رڼا کې وڅېړو. لکه څرنګه چې مار کس د بشـر ي‌ټو لـنې د ټـــو لـنيز اقتصادي فور ماسيون (Socio Economic Formation) د تاريخي تشريح په ترڅ کې ختيځ توليـــدي‌ډول ديو لږ ټاکليو شرا يطو په‌لحاظ

(1) Marx, K. and Engels, F. F. Selected Correspondence. p. 473.

يوه‌ځانگړې پيښه(پديده)اوعمليه‌گڼلې‌ده مارکس وايي :« په عمومي توگه دتو لنې په اقتصادي‌فو ر ما سيون‌کې آسيا يي ، لر غو نې ،فيو ډالي‌او بور ژوازي تو ليدي ډول د مترقي‌دوروپه حيث ټاکل کيداى شي.»(۱)

د مارکس ددې وينا څخه څرگنده‌ده چې لر غونې اقتصادي فورماسيون (نظام) د مر يتوب دوره ده او آسيايي‌تـو ليـدي ډول هغه ټـو لنيـز اقتصـاد ي فـورمـا سيـو ن دی‌چې د مريتوب نه د مخه يعنې دلومړي کمون او مريتوب تر منځ واقع دی.دا ټو لنيز ، اقتصادي فور ما سيون دلومړي کمو ن خواص لري، داځکه‌چې دغه خواص يې د زړې ټولنې‌څخه دځان سره راوړې دي او له بلې خوادنوې ټو لنې خواص هم لري چې هغه دمريتوب دوره ده . له دې‌کبله‌مارکس‌په بل ځاى کې دغه فورما سيون ته «عمومي مريتوب» وايي . (۲)

په لو يديځه نړې کې‌په لږ تو پيرسره د لو مړي کمون مر يتـــوب فيو ډالي او بور ژوازي ټولنيز ، اقتصادي (فورما سيونونه) يو په‌بل پسې منځ ته‌راغلل اوزړوتشکيلونوخپل ځاى په خپل واړ سره نووته پريښود . په لو يد يځې نړې کـې‌دلو مړي کمون په دوره کې ځمکه‌د نفوسو په تنا سب ډيره وه . داقليمي‌مساعدو شرايطو له ا مله ځمکه پـه

(1) Marx, K. and Engels, F. Selected works Vol. I. Moscow, 1958. p. 363.

(۲) عمومي مريتوب ځکه ورتـه‌وايي چې‌هيڅوك حقو قي ملکيت‌نلري که چيرې مر کزي‌حکومت موجود وي‌نو ملکيت ټول د پاچا دی . او که مرکزي حکو مت نه وي ، نو په‌هغه‌وخت کې ملکيت د قوم دی . زيار- ايستو نکو بز گر او يا مستقيم‌مؤلدځمکې څخه استفاده کوي ، خو په دواړو حا لتـو نو کې (په مرکـزي‌دولتي ټولنې اوقومي ټولنې )کيداى شي‌چې دمروجه‌حقوقي مخ‌ښا(روبنا)له‌مخې د بز گر ځمکه ضبط او يا داچې هغه ور څخه وشړل شي . وگوري‌مارکس : د سيا سي اقتصاد دانتقاد اسا سا ت .

طبيعي توګه د بادارانو په و اسطه‌خړو بيده. دلته د آسيايي سيمـــو غوندې دوياله او کانا لو نو کيندلوته اړتيا نه وه او په ارو پا کې نه يوازې ګډ کارته ضرورت نه و، بلکې‌يو څه اندازه ځمکه د را تلو نکي کر له‌پاره‌شاړه هم پر يښودل کيده‌او يوه اندازه ځمکه دکمون‌ګډ څړ- ځاى و. له دې امله د ځمکې په سرشخړې او جګړې نه وې اوهمدغسې چې ګډ کارموجود نه‌و- د ټولنيزواوادارى تشکيلا تو ضرورت هـــم محسوس نه و. په نتيجه کې دلومړي‌کمون د اوږ دې عمليې په ورو ستې پړاو کې د ځمکې خصو صي ملکيت‌را منځ ته شو او اقتصادى سيستم طبقاتي بڼه غوره کړه او دطبقاتـــي‌سيستم دننه‌ددولت «ابتدايي‌تشکيل» سر راپورته کړ .

هغه و خت چې په ختيځ کې‌لومړي‌کمون له منځه ځي او پر ځاى يې يو بل ټولنيز - اقتصادي جـوړ ښت(فور ما سيون يا فارمسيون) رامنځ ته کيږي د ارو پايي سيستم څخه يوڅه تو پير لري چې دغه تو پير د آسيا سر نو شت د ډيرې مودې له‌پاره ټاکي .

مارکس نوموړى توپير داسې‌ښيي:

(د ډيرو پخوا زمانو را هيسې‌په آسيا کې د حکو مت يوازې درې وزارتو نه موجود وو. د ماليې وزارت‌يا د خپل ملت شو که (لوټول)، د جنګ وزرات ياد نورو ملتونه‌شوکه‌اوبالاخره ذ عا مه خد مـاتو وزارت. اقليم او سيمه ييز شرايط په تيره‌بيادصحرا ګانو هغه پرا خې سيمې چې دلويې صحرا‌څخه نيولې په‌عربستان،پارس، هند او تاتار تيريږي او لوړو سيمو ته رسيږي دوياله‌او کانا لونو‌په واسطه خړو بيږي. مصنو عـي کرنه دآسيايي کرنې‌اساس تشکيلوي... داوبو سيستم‌او ګډ استعمال‌چې په لو يديځ کې يې د مثال په تو ګه، په فنلينډ او ايټا ليا کې دخصوصي تصد يو اتحاد منځ تـــه را ووست، په ختيځ کې يې د کلتور د ټيټوالي او دسيمې د پر اختياله کبله و نشـو کړاى چې آزادې اتحاديې جوړې‌کړي، له همدې کبله د مر کزي دو لـــت‌مدا خلې ته اړتيا محسو سه وه .ټولو

اسیا یی حکو متو نو ته اقتصـــا دی‌وظایف ور په غاړه دی . یعنی دعامه ښیگڼو له پاره باید فعالیت وکړی.)(۱)

ددغه بیان څخه څر گنده ده چی(ختیځه ټولنه) یا (آسیایی ټو لنـــه) د مارکس له نظره جغرافیایی مفهوم‌نه‌لری او نو موړی (فور ما سیون)په افریقایی ورته‌ټولنو هم اطلاق‌کیږی.همدا شان ټولی آسیایی ټولنی‌په‌دی فور ما سیون کی هم شا ملی نه دی‌بلکی هغه ټو لنی چی هلته دزراعتی تو لید له پاره باران کفایت نه کوی.او ځمکی په مصنو عی تو گه‌دکانالونو او ویالو په واسطه خړو بیږی ((دآسیایی تو لیدی ډول)) په‌مفهوم استعما لوی .

له بلی خوا په دی فور ما سیون‌کی هغه ټولنی راځی چی د تو لیدی او ټو لنیزو چارو د تنظیم په هکله‌یوداسی حکو متی اوادرای نظام ولر ی چی سیاسی شکل یی استبداد او په‌عمومی پر مخ تگ کی یو ډیر بطی حرکت (ځنډن حرکت) موجود وی (۲)له دی کبله ډیری هغه ټولنی‌چی په ټو لنیز او اقتصادی لحاظ نوموړوټولنو ته ور ته وی ، په دی‌ټولنیز، اقتصادی جوړښت(فور ماسیون)کی‌شا ملی دی .

دا (Inca) سلطنت په پیروکی، داشانتی (Ashanty) سلطنت په لو یدیځه افریقا کی او داسی نورپه‌دی فورماسیون‌کی راتلای‌شی.(۳)

په آسیا کی‌چی پراخی صحرا گانی‌یی لرلی اوباران پکی لږ اوریده، د تاریخ په یوه مشخصه ټاکلی دوره‌کی‌دکار وسایلو پرا ختیا نه وه‌موندلی، نو ددی سیمی بیلا بیل گروپونه او قبیلی مجبور ی‌وی چی‌د سیمی د اقلیمی شرایطو له مخی د خپل ځان‌اومال د ژوندی پاتی کیدو په خاطـر

---

(۱) وگوری کارل مارکس :
The British Rufe in IndiaSelected works. Vol. I, Moscow, 1977. p. 489.

(۲) و گوری مارکس .
مارکس وایی چی هندی کلی که‌په‌جنگونو اویا نورو مصیبتونو کی‌وران شی ، بیر ته په هماغه نامه او په هماغه ډول جوړ یږی او هیڅ کموالی او زیاتوالی پکی نه راځی .

(۳) وگوری موریس گو دلیر :انتروپالو جی او اقتصاد (په‌آلمانی‌ژبه)

سيندو نـو، طبيعي ډنډو اوچينوته نژدې په شاو خو ځـا يو كـــي واوسيږي . (۱)

د تاريخي اسنادو له مخې د آسياپه دې پرا خې سيمې كې چې لړ او ربښت لرې د ډيرې پخوا زما نـې را هيسې د كر نې دوره پيل شوي او دنيم كو چې ، نيم ميشته د ميشته كيدو بشپړ پړاو په بيلو بيلو قبيلو كې په بيلو بيلو و ختو نو كې راغلې دې . ځينې قبيلې ډيرې پخوا د كرنې دورې ته ننو تې دي ، ځينې نورې بياتر اوسه هم د نيم كو چې او نيم ميشته په حالت كې ايسارې دي .(مثلا د ورو ستيو دوو پړاو ونو نښې نښانې (آثار) تراوسه په ځينو پښتنو، بلوڅو ، تر كو ، عر بو او نوروقبيلو كې ليدلې كيږي.)

دهرې قبيلې زراعتي پړاوو نودهغو د كار د وسايلو سره ارتباط درلود .څه وخت چې به يوې قبيلـې ته د كار وسايل په لاس ورغلل ،هغو ته به يې انكشاف ور كاوه. د دوې د كار د وسايلو د پر مختيا په تناسب سره د بهاندو اوبو شاو خوا، دنووځمكو د آبادولو او دې ځمكو ته د لښتيو او ويا لو په واسطه دمصنو عي اوبو لګو لو(اوبه خور) په خاطر به يې په ګډه كار لاس پورې كاوه. (كه دبهانده او بو څنګ كې اوســـ هم كو مه ځمكه آباد يږي ، ددې ځمكې آباديدل او مصنو عي اوبه لګول لښتي يا ويـاله ــ د كور نې د غـړو يا د قبيلې د ډير غړو ګډ كار ته اړه پيداكوي .) د قبيلې ياګروپ دغړودګډ كار په نتيجه كې ځمكې آباديدلې نو د دوې د ګډ كار محصول ((آباده شوې ځمكه)) د دوې ګډ ملكيت و او دقبيلې ټولو غړيو ددې ګډ ملكيـــت ساتنه په ګډه سره كو له. ګډ كاراو

---

(۱) وګورې ك.ا. ويتفوګل،ختيځ استبداد، (په آلماني ژبه).
Oriental Dispotism

نوموړې آسيايي ټو لنې له دې امله آبي ياد اوبو ټو لنې بو لي،يعنې اكثر تمد نونه په هغو ځايونو كـې منځ ته راغلي چې هلته اوبه موجودې وې .

همدغسې د نو موړې بل كتاب په دې هكله د ((چين ټولنه اواقتصاد)) په آلماني ژبه .

ګډې دفاع په قبيلو کې دکار او جګړې يو ډول کلك اداري نظم او دسپلين ته اړه درلوده . څومره چې په‌نوي‌ځمکې آباد يدلې هومره ور سره د کار ويش هم (په اجتماعي اواقتصادي‌دواړو اړ خو نو کې) وده کوله‌چې‌په نتيجه کې ختيځ ډو له ګډ اقتصادي‌ملکيت او دويني قبيلوي کلکې اړيکې منځ ته راغللې .

-د کرنې د دورې دمنځ ته‌راتګ‌سره اوس درمو او څړ ځايونو بر-سيره په‌زراعتي‌ځمکو هم نښتې‌کيدې‌څرنګه چې د نورو ځمکو جوړ يدل اړمصنو عي اوبه لګول د قبيلې يـاګروپ دغړو ډير ګډ کار او زيار-غوښت نو قبيله د شرايطو په لحاظ‌مجبوره‌وه چې‌دخپلو ځمکو‌دساتلو‌او يا دنفو سو د زيا تيدو لـه ا ملـه‌ذګاونډ يو قبيلو يا قبيلې څخه دځمکو د نيو لو په خاطر په خپل قبيلوي‌سا ختمان کې د دفاع او ير غل اود جګړې د آلاتو د استعمال مهار تونه‌په قوي بڼه وساتي . د جګړو د تجربې له مخې هرې قبيلې ته‌لاډمخه‌څرګنده وه چې دبرياليتوب‌په نتيجه کې مادي شتمنې او قبيلوي برم لاس‌ته راوړي او د ماتې په صورت کې خپل ټوله مادي شتمني او قبيـلوي‌برم له لاسه ور کوي . کو مې قبيلې چې به‌د جګړې په‌ډګر کې‌ماتي‌وخوړله‌يا به قبيله د خپلو ر مو سره بلـې سيمې ته و تښتيده اوزراعتي ځمکې‌او څړ ځايونو نه به يې بر يالي‌قبيلې نيول و يا به ماته شوې قبيله پخپله‌اړ در موسره دبريالې قبيلې په لاس کنښيو تله ، که به په لاس کې‌کنښيو‌تله نو د ماتې شوې (مغلو بې) قبيلې غړي به مريتوب پوړې ته را ښکته‌کيدل او خپل قبيلوي هويت به يې له لاسه ور کړ او د وخت په تيريدوبه ورځني د بز ګرو يا کسبګروټيټ قشر يعنې کاست ( Caste )جوړ شو . که چيرې به ماته شوې قبيله در مو سره بلې لرې يانږدې‌سيمې ته و تښتيده، نو په دغه‌سيمه کې هم د څړ ځايو نو يا د ميشته کيدو‌په هڅه کې د نوو نښتوسره مخامخ کيده. ( په هره سيمه کې دقبيلو د څړځايونو للمې او ابې ځمکو د ګډ ملکيت حد معلوم و . کـه چيـرې‌تښتيدلې قبيله به داسې سيمې ته ولاړه چې د کو مې قبيلې د څړ ځايو نوګډ ملکيت به ور باندې تثبيت شوی نه و نو دلته به بې جګړې ميشتـه‌کيد اې شوه او يا به ور ته کو مـې

ټلي قبیلي په خپل ګډ ملکیت کې‌د ځمکې ځای اجازه ور کړه اویا بهیې له خپلې سیمې څخه یوه بر خه ور کړه‌او هلته به تښتید لی قبیله میشته کیده.) ماته شوی قبیله به تر هغوپه‌جګړه اخته وه چې یا بهیې د بلې قبیلې ځمکې ځایو نه او ځمکې لاندې کړې‌او یا به د مقابلې قبیلې تر لاس لاندې شوه . هرې‌بریالۍ قبیلې به د ماتې‌شوې قبیلې ځمکې،رمې او ځمکې ځایو نه نیول‌او که‌د ماتې شوی‌غړی‌به‌یې‌ونیول‌د هغوی ښځې اونارینه به یې‌وینځې مریان شول‌او‌پخپله دوی اوددوی‌ګډ‌ملکیت به د بر یالۍ قبیلې ګډ‌ملکیت وګرزید. تر څو چې د قبیلوی جګړو‌په دوران کې د ګډ ملکیت ګډه دفاع کیده . د بر یالۍ قبیلې په قبیلوی چوکاټ کې اقتصادي طبقې موجودې نه‌وې خو په ټولنیز لحاظ د کارویش‌او په جګړه‌او سوله کې داستعدادو نو دښکاره کولو په وجه چې د قبیلې‌دننه او دبانډې شخړې اوارې کړې،د مشرانو قبیلوي سیاسي هیرار شي(سلسله‌مراتب) موجوده‌وه.دامساوي اقتصا دي جوړ ښت (فـــار مسیون)په وجه دې هیرار شي هر څه پخپله او په خپل سر نه شو کولای بلکې‌دوی دخپل قبیلوی ژوندا‌ودګا‌ونه‌یو قبیلو سره د سو لې، ملګر تیـــا،خپلو ی ،دښمنی اوجګړ‌و ټول‌مسایل دقبیلوې دودونو په اساس فیصـــله‌کول او پخپله مشرانو هم د قبیلو ی دودو نو څخه سر نه‌شوای‌غړولای‌په‌واقعیت کې هغوی په ټو لنیز لحاظد برابرو سیالانو تر منځ لو مړنی‌کسان‌وو . سره له دې چې دننه په قبیله کې اقتصا دي طبقې نه وې خـــودبریالۍ ، قبیلې په‌ځمکو کې‌آزادوبزـ ګرو او مریانو کار کاوه چې پخپله‌دقبیلې غړو او ګانه‌یو بز ګرو دکرنې کسبګرو او مریانو لوړې اوټیټې طبقې‌جوړ ولې . په دې ډول کې‌دبریالۍ قبیلې د اتلانو یاد ټو لي قبیلې‌د برم‌په باب د کیسو او شعرونو د وره پیل شوه او ورسره جو خت دګاونډی‌لاس لاندې او مغلو بو قبیلو سره دارتباط له ا مله په ټولنیزاواقتصادي‌لحاظ د ور ته کیدلو(Assimilation) او دنورو د کلتوری شیانو تقلیدو لو (Aculturation)عملیې منځ ته‌راغلې چې ټولو قبیلو خپل پر منځ تللــــــې‌مهارتو نو ،تخنیکونه اوا رزښتونه‌یو تر بله سره تیر را تیر کړل .

د قبیلوی جګړو په دوران کې د مریانو او لاس لاندې قبیلو دکارپه وجه تو لیدې وسایلو او دجګـــړې‌وسایلو وده وکړه . د ګډې دفاع په

خاطر ځینی قبیلی د لاس لاندی قبیلوسره اویا ګاونډیو قبیلو سره یوځای شوی. داداری او جګړه ییز تنظیم‌له‌امله دګه ملکیت‌اقتصادی فورماسیون خپل ځای دختیځی ډیکتاتوری‌لومړی‌پړاوته پر یښود . سره له‌دی‌چی په اقتصادی لحاظ لوړی اوټیټی طبقی‌منځ ته‌راغلی خودګه ملکیت اقتصادی فور ماسیون د لویدیځی نړی غوندی‌په خصو صی ملکیت بدل‌نشو.(۱)

د ختیځی دیکتا توری په لومړنی‌پړاو کی د واکمنی طبقی سیاسی او اقتصادی قوت د قبیلی په فز یکـی‌قدرت پوری اړه درلوده خو هر څومره چی د واکمنی طبقی د سیاسی قدرت‌لمن پرا خیده او ختیځی دیکتا توری وده کو له په هماغه اندازه‌دغی‌طبقی‌په قبیلو کی د ننه اود باندی یوازی په وفا دارو‌ملګرو تکیه کوله چی‌پخپله‌په قبیله کی یو ډول هیر ار شــی (Hirarchay) منځ ته‌راغله .

د ختیځی دیکتا توری په دوره‌کی‌دمریانو ، کسبګرو، مزدورانو او بز ګرانو شمیر ډیر زیات واود دوی‌دکار او زیار په بر کـت دکـار او تو لید وسایلو ښه پر مختیاوکړه.واکمنی طبقی داداری او ا منیتی‌چارو په خاطر په ستراتیژیکو ځایو کی‌خپل هستوګنځی اوعسکری‌چونی‌جوړولی (ددوی چاپیره‌خندقونه هم‌جوړیدل).دنفوسو دزیاتیدو له امله یی هــم شاړی ځمکی آباد ولی او هم یی د خپلی قبیلی یانو رو قبیلو ملـګرو، وفادارو مشرانو، روحانیونو،ملکی‌اوعسکری لو یانو ته دهغوی دچوپړونو په بدل کی د جاګیر او انعام په ډول‌ځمکی ور کړی. دنوو ښارونو ،چونیو اودځمکی داوبو لګو لو له پاره‌اوبوته اړتیا وه . د بهانده سیندونو، خوړونو او چینو څخه د مصنوعی اوبولګولو (اوبه خور) ښنباك او خندقونو له پاره اوبه یوازی دویالو اوکانالونوپه واسطه راوستل کیدای شوای. په پراخه تو ګه دځمکو آبادول ، د ویالواو کانالونو ایستل ، دوړو کی ډلی‌یا څو تنو په جسمی کار نشو کیدای‌بلکی ددغو لو یو پروژو له‌پاره ډیرو

---

(۱) لکه په هندو ستان کی د جاګیر داری سیستم اویا په ایران کی دتیول داری سیستم او یا پـه‌چنګیزیانو کی د وینچو سیستم چی احمد شا هی جاګیر قلبه هم دوی‌ته‌ورته ده .

کاريگرو او دکار وسايلو ته اړتياوه.دا کار يوازې مر کزي حکو مت ، کليو ،او يا قو مونو کولای شو چی ډير کاريگر راټول کړی او هغوی ته دکار وسايل په لاس کی ورکړی .همدا سبب و چی په آسيا يی توليدی ډول کی د مرکزی حکو مت مدا خله‌او فعاليت ډير يده چی په نتيجه کی سر بيره پر ځمکه او به هم د دولت‌ملکيت گڼل کيدی او دقلمرو دننـه ټوله ځمکه، غرونه ، ځنگلونه، ځړ ځايونه اوسيندونه .په‌همدی‌ټولنيزو واحد و نو پوری مربوط شول او په‌ختيځه ديکتاتوری‌کی‌پاچا د((ټولواك)) حيثيت پيدا کړ .

په ختيځه ديکتا توری کی (دلوړی‌طبقی د بز گرانو نه علاوه) زراعتی مستقيم مولد د خپلو تو ليدی‌وسايلو‌څښتن‌و . هغه خپل زراعتی فعاليتونه او د زراعت سره اړونده د کلـــی‌کليوالی او کورنی کسب او کار په مستقله تو گه کاوه . مستقيم مولدځمکی د څښتن تر لاسه لاندی نه بلکی مستقيما د دولت تر لاس،لاندی‌و. نو دولت به په يوه و خت کی‌هم زراعتی مو لد، هم زميندار او هـــم‌ټولواك و. مو لد يوازی دولت ته د ځمکی ماليه ور کو له .((دولت سترزميـنــدارد‌ی . دلته په ځمکه با ندی (ددولت) ټولواکی ده. په‌ملی پيمانه‌ځمکی د دولت په لاس کی‌تمرکزپيدا کړی دی . سره له دی چی دلته په‌ځمکه د خصو صی او گډ ملکيت‌دواړه بڼی شته دی خو خصو صی ملکيت‌په‌واقعی تو‌گه نه‌ليدل‌کيږی .))«۱»

لکه چی مخکی ور ته اشاره وشوه‌دختيځ دولت د منځ ته‌راتگ په پړاو کی قبيلوی اقتصادی جوړښـــت(فورماسيون) مات نشو بلکی‌يوازی بڼی يی‌بدلی‌شوی. په‌قبيلوی‌اقتصادی‌فار مسيون کی په ځمکه ورسپارل شوی ملکيت او گډ ملکيت موجود و.ورسپارل شوی ملکيت په دی معنا چی‌له يوه‌ويش نه تربل ويش‌پوری‌دقبيلی هر غړی ته د ځمکی برخـــه ورکول کيده ، تر بل ويش پوری ده‌ته رسيدلی ځمکه د ده ورسپارل‌شوی ملکيت و اوکله چی به د ويش.موده‌پای ته ور سيد له بيا به ځمکه دده له لاسه ووتله او دقبيلی دگډ ملکيت‌بڼه به يی غوره کړه . همدا شان د

(1) K.M. Capital, Vol, III, P. 19

آسیایی تو لیدی ډول د تکامل په نتیجه کی چی ختیځه دیکتا تـــوری منځ ته راغله په دی وخت کی قبیلوی‌اقتصادی فار مسیـــون (ورسپا رل شوی گډ ملکیت) د دولتی اقتصادی‌فار مسیون ،(ور سپارل شوی‌ملکیت ددولتی ملکیت) بڼه غوره کړه . په‌دی دوره کی لکه د لویدیځی نړی په ځمکی ، باندی خصو صی ملکیت نه‌وتثبیت شوی . د قلمرو ټو له‌ځمکه دپاچا په نوم وه او د پاچا ملکیت هم‌گڼل کیده او هیڅوا د ځمکی دخصو-صی‌ملکیت قانونی حق‌نه درلود. په‌واقعیت کی د قلمرو ځمکی دافرادو او قبیلو په لاس کی وی . دوی ته‌ځمکه یا بز گرو کر له او یا دوی پخپله او حا صل به یی هم ځا نته اخیست.هغه‌خلك یا قبیلی‌چی‌مستقیما د دولت د اداری سیستم لاندی ووهغوی به د خراج یا مالیی په نوم د ځمکی څخه ټاکلی اندزاه محصو لدولت ته ورکاوه‌خو ځینی کسان‌او یا یاقبیلی به‌د خپل خدمت په مقابـــل‌کی‌له خراج او دځمکی له مالیی‌څخه هم معاف وو. سره له‌دی چی ځمکه‌دفرد یا افرادو خصو صی ملکیـــت و، خو دغه خصو صی ملکیت هیڅ‌قانونی بڼه نه درلوده . کله چی به پاچا ، یاد دولت نورومهمو غړووغوښتل ،د مولدیا مولدینو څخه به‌یی بی بدله ځمکه اخیستله او نورو ته‌به‌یی ورکوله .

په لنډ اوربښته سیمو کی ددولتونو سیاسی پولی معلومی وی خودغه پولی دنن ورځی دسیا ســـی‌پولو غوندی تثبیت نه‌وی ،ځکه‌پدغو وختونو کی د دولت دسیاسی پولو څخه تیریدل راتیریدل او یاپه ډله ییزه توگه له یوه ځایه بل ځای ته‌تگ را تگ څه سیاسی بندیز نـــه درلود. د دولتونو ترمنځ د جگړوپه‌نتیجه کی‌د غوسیاسی پولو هـــم تغییر کاوه ،د هری سیاسی پولی دننه اوسیدو نکی دپاچا رعیت گڼل کیدل . په دغو وختونو کی مرکز ی‌دولت له اقتصادی عسکر ی اواداری پلوه دومره منظم او قوی‌نه‌و چی د قلمرو دننه اود قلمرو په سرحداتو کی په ټولو قبیلو واقعی حکمرانی‌وکړی. د دو لت دسیاسی پولو په ساحه کی داسی قبیلی هم‌وی چی‌دخپل فزیکی قوت یا قبیلوی ټولنیز

اقتصادی جوړښت په لحاظ به یی ددولت د عمومی قانون په ځای دخپلو قبیلوی دودونو له مخی ژوند کاوه . دوی به تر هغو دقبیلوی دودنو په اساس ژوند کاوه تر څوچی به مرکزی حکومت داقتصادی یا سیاسی عامل په و جه دوی په زوره نه وی لاندی کړی او په زور به یی ور باندی دمرکزی حکومت اداری سیستم نه و تحمیل کړی . کله چی به ځینی قبیلی په مستقیم ډول دمرکزی دولت داداری سیستم لاندی راغلی ، د د وی قبیلوی اقتصادی جوړښت به د ختیځ دولت د اقتصادی فارمسیون بنه غوره کړه . او په قبیلوی ـ اقتصادی جوړښت کی د جاگیرداری، انعام اومالیی سیستم ځای ونیو . په دی مرحله کی به ځمکه دقبیلوی ګډ ملکیت څخه وتله اود څو تنو په لاس کی به یی تمرکز مونده . د اقتصادی بدلون له امله به په قبیلوی ټولنیزو اړیکو کی هم بدلون راته چی د ړخت په تیر یدو سره به قبیلوی دو دو نو ورو ورو دمرکزی حکومت اداری سیستم ته ځای پریښود .

دآسیا په لر او بر کی سیمو کی ځینی داسی قبیلی هم پاتی شوی چی د مرکزی دولت د سیاسی تسلط او ادرای او مالیاتی سیستمونو څخه بیل د خپلو قبیلوی اقتصادی فار مسیو نونو (کوچیانی ـ زراعتی) په اساس د قبیلوی دودونو سره سم یی خپلواکه قبیلوی حکومتو نه در لودل چی سر بیره پر پښتنی قبیلو بلوڅی ، هندی ،ترکی ،مغلی اوعربی کوچی او نیم کوچی نیم میشتی او میشتی قبیلی یی ښه مثالونه دی . دلته بنایی ځینی لوستو نکی ددی پوښتنی سره مخامخ شی چی آیا د پښتنو نه علاوه په نوروقبیلو کی ((ویش دود )) و او که نه ؟ مونږ د ختیځ دتولید د ډول دعلمی تحلیل له مخی ویلای شوچی په پورته یاد شوو قبیلو کی هم((ویش دود )) و (۱) چی په دوی

---

(۱) په دی برخه کی دې د Evalorenz (Extended Family) دوکتوری تسیسیز ته مرا جعه وشی . هغی دکوزی پښتو نخوا د پښتنو قبیلو په ویش دود خپل تسیسیز لیکلی دی اود پښتنو دویش سره یی دنورو نژاد ونو ویش دود پر تله کړی دی .

کی هم دپښتنو قبیلو په شان په مختلفو وختونو کی د مختلفو دا-
خلی او خارجی عواملو له امله ((ویش دود)) له منځه تللی دی خو بنوراوك
ته نردی (دبریخوسیمه) په مری بلوڅو کی اوس هم دا (ویش دود) شته «۱»
دختیځ دتولید د ډول دتاریخی تکامل په رڼا کی مونږ اوس خپلی
موضوع ته را گرزو اود دی تیوری په اساس غواړو چی د پښتنو دما-
لداره کوچیتوب او میشته کیدو مرحلی وڅیړو اود مختلفو قبیلو دویش
دودونو د ډولونو تر منځ توپیر ونه روښانه کړو . په دی کی شك نشته
چی پښتنو اوس د تاریخ په یوه ټاکلی پړاو کی دمالداره کوچیتو ب
اوږده دوره تیره کړی ده . ددی او ږدی دوری په برخه کې داسی کره
اسناد نشته چی آیاد مالدرای په دوره کی دقبیلی غړو وگړو درمو -
گډ ملکیت درلود او که نه ؟ کله چی پښتنی قبیلی د مالداری په دوره کې
وی په دغه دوره کی غیر پښتنو نورو (ملیتونه) زراعتی دوری ته دا -
خل شوی وو اود ځمکی قبیلوی گډ ملکیت تثبیت و . کیدای شی چی د
نورو ملیتونو گډ قبیلوی ملکیت (خصو صی قبیلوی ) د دوی دمالداری
په گډ ملکیت تاثیر کړی وی اوددوی دمالدا ری په ژوند کی درمو (خصو-
صی - قبیلوی) ملکیت منځ ته را غلی وی .هغه څه چی په تاریخی لحاظ
د اسناد و له مخی معلومیږ ی دادی :کله چی پښتنی قبیلی د مالداری
کوچیتوب څخه زمینداری ته راغلی دمالداری په حالت کی یی خصو صی
ملکیت در لود ځکه چی د هر چار مه دهغو خپله وه (۲) دختیځ دتولید
دډول داقتصادی جوړ ښت او د پښتنو دقبیلوی جوړ ښت څخه
څرگند یږی چی دگډ قبیلوی ملکیت (په مالداری او زراعتی دواړو دورو
کی) اوږدی عملیی په دوی کې د (زما) په ځای د (زمونږ) عنعنه ژوندی
ساتلی ده . ددی عملیی اساسی علت هغه تلقین شوی عنعنه ده چی دختیځ
دتولید ډول د قبیلوی گډ ملکیت له مخی رامنځ ته شوی ده . سره له دی
چی په پښتنی قبیلو کی خصو صی ملکیت تثبیت دی خو دگډ ملکیت

(1) Robert N. Pher son's notes: compiled and Analyzed by Frerik Barth "The social Organization of the Marri Baiuch," New York, 1966. pp. 8.9

(۲) ریسنر : ماسکو ، مخ ۲۰۷

قبيلوي پړاوسي نښي په پراخه‌ياتو سعوي کورني (Extended Familty) کي شته .

په دي کورنيو کي نيکه ، ميرمن يا ميرمني ، زامن ،پيغلي لوڼي نږيندي لمسيان ، يالمسي په يوه کور کي اوسيږي . په ډيرو قبيلو کي تـر هغو چي پلار ژوندي وي رمه يـــــا ځمکه يي دزامنو تر منځ دميراث په توګه نه‌ويشل کيږي‌اود پلاردمړيني‌نه‌وروسته هم رمه او ځمـکه نا ـ ويشلي ګډ ملکيت وي چي دکورني‌دننه‌تر ډيري مودي لمسيان هم د کورني دګډ ملکيت تلقينات اخلي .کله‌چي دپلار نه پاتي ګډ ملکيت د زامنو ترمنځ وويشل شي ، سره له دي‌هم ګاونډي خلك دغه ملکيت د زامنو يالمسيانو په نوم نه‌يادو ي بلکي دکورني په‌نوم يي يــــادوي . همدغه شان دکورني غړي هم پر ديوته خپل و يشل شوي ملـکيت‌د ((زمونږ رمه يا ځمکه )) يعنـــي‌دکورني په‌نوم معرفي کوي . خوکله چي‌د کورني غړي وروڼه دويش نه‌وروسته په‌خپل منځ‌کي په‌خصو صي ملکيت باندي خبري کوي دپرا خي‌کورني په وړوکي واحد بنستيز ی کورني( هستوي کورني ) کي زمـــا ملکيت د(زمونږملکيت) ځاي نيسي دپښتنو دقبيلوي‌جوړ ښت له‌ځيرنوڅخه څرګند يږي چي ((زمـــا )) د ملکيت موضوع په وروستني وا حد(بنستيزي کورني ) کي د ور ټـو ترمنځ مطرح دهاود وروڼو نه پور ته‌دپراخي (توسعوي ) کورني دملکيت له‌پاره (زمونږ) مفهوم استعما ليږي‌چي دغه مفهوم له کورني نه‌پور ته ترپښني ، ټبر ، خيل او قبيلي‌پوري‌رسيږي چي د نورو ميليتونو پـــه مقابل کي د پښتون ميليت بڼه غوره‌کوي .

مونږ دلته دپښتون مليت‌په‌تاريخ‌څه ويل نه غواړو بلکي دا مو ضوع تاريخ پوهانو ته‌پريږدوچي د دي‌مليت له‌قبيلو څخه لومړي کومـــي قبيلي په کوم وخت او کوم ځاي کي‌ميشت شوي دي . شوروي افغا ـ نستان پوه اسلانوف هم بې له دي‌چي دقبيلو او ځاي نوم واخلي‌يوازي دپښتنو د ميشت کيدو وخت‌ښيي .دي‌وايي ((يوازي په‌يوو لسمه‌پيړي کي‌پښتنو په‌کليو کي اوسيد نه پيل‌کړه او دکور ونو بدلول اود ځمکو

ويشى دا هغه عادت دى چې دهماغى انتقالي دوري ذسراوديشين توب ابتدانه را پيل شوىدى .))(١)

په يوو لسمې پيړۍ کې زرا عتىدورى ته داخليدل دا معنانهلرى چې قبيلې به ژر خپل دمالداري کوچيتوب پاى ته رسولې وى بلکې دنيم مالداره نيم ميشتهدورههماوړدهعمليهدهاو ددىلهپاره ډيروخت پهکار دى چې د مالداري ژوند پاى تهورسيږى او په بشپړه توګه دکرنى دورى تهورننوزى . په پښتنو کېدنيم مالداري او نيم ميشت عمليه تر هغو را روانهوهچې دحاصلخيزوسيمواوسيدو نکى پښتانه دمر کزى دولت دمستقيمې اداري لا ندىرا غلل اود مالداري ژوند يې پهکرنيز ژوند واوښت اود ختيځې دکتاتوريپه اقتصادي جوړ ښت کې ورګډ شول . چې د پښتنو ځينې قبيلې دمرکزى دولت دادارى لاندي راتلې . پههمدغه وخت کې ځينې پښتنې قبيلې دمرکزي حکو مت له اداري نه خپلواکه مالدارى کوچيتو ب اوځينو نيم مالداره – نيم ميشت قبيلوى ژوند ته دوام ور کاوه .

دټولو قبيلو پهباره کې اسنادنشته چې آياکومې قبيلې پهکوم وخت کې د کرنى د دورى دو يشىدودسيستم پيل کړى او په کوم وخت کې يې پاى ته رسولې دى .دځينو قبيلو دميشت کيدو او دويش دودد پيل او پاى پهباره کېتاريخىاسناد شته او ددى قبيلو او نورو قبيلو داقتصادي قبيلوى جوړ ښتاوټولنيزو اړيکوپهاساس اټکل کيداى شى چې ګوندى د پښتنو ځانګړ وقبيلو د خپلو مشخصو شرايطو په لحاظ ديوى بلې څخه په ډير يا لږتوپير دويش پړاو تير کړى وى خود هغو قبيلو په باره کېچېموږ يې د ويش دود دپيل او پاى پهباره کې باورى اسناد ياموادنه لرو يوازى دفرضيو پهاساس څه ويل نه غواړو . بلکې موږ يوازى دهغو قبيلو دويشدودپهباره کې خبرى کوو چېموږ يې اسناد او مواد وړا ندى

(١) اسلانوف ، م، ګ : دروښانيانو ملي نهضت : مترجم : م . معتمد ، پښتو ټولنه کال١٣٥٣ ١٥ او ١٦ مخو نه .

کوی‌لا شو . کله‌چی د پښتنو ټولنه‌دلوړی کمون څخه وزی او ویشس يکی جاری کيږی نو پدی وخت کی‌دوی په‌څمکه ګډ کار نه کوی که‌څه هم‌د دوی اقتصاد قومی او نسبـــی‌دی خودویش په وروستی پړ اوکی يعنی هغه وخت‌چی و یش ډيرکمز وری اوله منځه تلو نکې وی‌دپښتنو په ځينو قومو نو کی‌بر سيـــــره‌پر قبيلوی او نسبی سلسله‌دزرا ـ عتی کمون خواص هم را پيدا کيږی(١) په دی معنا چی‌د خپل قوم او نسب پر ځای اویا ترځنګ کندی‌او کلی هم اهميت پيدا کوی . خو زمونږ په عقيده په‌پښتنو کی تـــراوسه هم قومی سلسله چی دنسب اووينی ارتباط ښيی ، ډيره ټينګه‌اومحکمه ده . (٢)

په هر صورت په پښتنو کی په‌څمکه ګډ کارنه ويوازی دويالو او کانالونو دپاکولو او کيندلو کار په‌اشرسره کيده چی دا کارنه‌يوازی‌په پښتنو کی شته بلکی دافغا نستان‌په‌نورو قومونو کی هم رواج لری .

دا ډول ګډ‌کارونه دريسنر پـــه‌عقيده مريانو او ګاونډ يانو کول . مريان پخپله پښتانه نه‌وو . مريا ن‌او ګاونډ يان‌دهغو هندی قومونـــو پاتی شونی (بقايا) وو چی‌پښتنو دهغوی نه‌ځمکی نيولی او يايی پـــه جنګ کی نيولی وو. په‌ګاونډيو کی‌بيا کيدای شول چی پښتانه هم‌وای. هغه‌پښتانه چی دکوم جرم اویاکو م‌بل‌کيفيت له مخی دخپل قوم څخـــه

---

(١) وګوری ريسنر ١١٥)او٢٥٩مخونه : دی د ګندا پور په هکلـــه وايی چی نوموړی قوم ځينی‌شريکی‌ځمکی په‌همسايه او غلامانو کر لی خو حاصل به‌يی بيا پخپل منځ کی‌سره ويشه . همد غسی دشيګـــل شينواری ځينی هغه شريکی ځمکی‌او کر نيز نه ټاپو ګا ن چی مشوانيو ته‌ورکړيدی ، حاصل يی په خپـــل‌منځ‌کی‌د خولی په اساس ســـــره ويشی .

(٢) که‌ديوه ځدران نه څوک‌پو ښتنه وکړی چی ته څوک يی نووبه وايی چی زه ځدران‌يم او که‌پوښتنه‌وشی چی په ځد را نو کې څوک‌يې نودی به دخپل خيل نوم واخلی.که‌په مقابل کی څوک پوښتنه وکـــړی چی‌د کوم ځای يی نودی به ووايی‌چی د زيړوک اويا المری يم .

تښتیدلی اود دوی په منځ کی به میشته شوی وو ګاونډیان بلل کیدل. دوی هم ځمکه نه لرله او په پردی ځمکه به یی کار کاوه. پښتانه ګاونډیان اکثرا دقوم دمشرانو سره وواود هغوی په حجرو کی به یی کار کاوه او د خانانو ځمکی به یی کرلی. دپښتنو په ټولنه کی دمریانو شمیر دومره زیات نه وو او تولیدی کاریی هم داتن یاروم دمریتوب وخت ته ورته نه و. په پښتنو کی دا سی سرداران او خانان نه وو چی دمریانو د کار په واسطه یی لو یی تصدی لرلی وای، بلکی ددوی کار هم زیاتره په کورو نواو حجرو کی و. له بلی خوا مریان په زیاته اندازه دسودا ګری له پاره استعما لیدل. د پښتنو هغو قومونو چی د هندی اقوامو ځخه لری پراته وو مریان یی یا هیڅ نه در لودل او یادا چی په نشت کی حساب وو. ددی ټولنی تخنیکی اړ تیاوی دکسبګرو په واسطه رفع کیدلی. (۱)

تر هغه وخته پوری چی په پښتنو کی ویش موجود و او بیا په تیره په هغو قومو نو کی چی هلته دخولی ویش (خولو یش) و ترزیا تی اندازی پوری برابری موجوده وه خو دنسبی ویش له مخی کیدای شول چی لږو خلکو ته زیاته ځمکه ورسیږی او په دی توګه ورو ورو اقتصا دی توپیر ونه داو لس ترمنځ را پیداشی. (۲)

ریسنر داخون درویزه په قول د راورټی ( Raverty ) په حواله لیکی چی په سوات کی هم لومړنی ویشونه د «خولی ویش» په اساس شوی دی: «شیخ ملی دیوسف او مندړ ټول قوم احصا ئیه واخیستله ښځی او نر، واړه ا وزاړه ټول د دی مقصد له پاره چی سوات او مربو طات یی په برابر ډول دیوسفزیو ترمنځ وو یشی

---

(۱) په دویم او دریم فصل کی به پدی هکله مفصل وږغیږو.

(۲) وروسته به مونږ پدی هکله زیاتی خبری وکړو.

شیخ سعدی ته‌په خوله ویشس کی ددیر شو تنو برخه ورسیدله «*(۱)
پدی حساب کی هغه کابلـــی ،ننګر هاری او لغمانی وګړی چی د یوسفزیو سره را غلي وو حسا ب نشول (۲) حال داچی محمد نعیم سالار زی د نصراله خان نصر پـه‌قول لیکی چی کابلی ، ننګر هاری او لغمانی پکی حساب شول. (۳)

پور تنی شواهد مونږ په خپل دی‌نظر کی تقویه کوی چی امکان لری په ټولو هغو قومونو کی‌چی دویش‌یوډول موجود و پخوانی (لومړ نی ـ ادیټر) ویشس یی دخولی په اساس‌شوی دی او وروسته له هغه نور ویشونه یاد نسب او قرابت له مخی‌او یاد ملاتړ په اساس رامنځ تـــه شویدی . یعنی دپښتنو ټولنه پدی‌انتقالی پړاو کی هم وروورودبرابری او قبیلوی ګډ ملکیت‌څخه دنابرابری‌او طبقاتی ملکیت خواته تلـلی ده خو‌به هر صورت دومره پوره جوته‌چی دساحی دپرا خوالی اود زراـ عت د نوعیت اود ځمکی د ډیر والی‌سره سم ویشس هم تغییر کړی دی او هم په هغو ځایونو کی چی ځمکی‌آبی او حاصل‌خیزه اوکرنه محدوده (intensive) **اومتمرکز شکل لری نوداوبود حسابی‌مشکلاتو او پیچلتیا له مخی ویشس ورو ورو ضـــــــعیف شو ی د ی .
چی په پای کی په اوبو او یا په‌ځمکه د خصو صی ملکیت خوا ته تمایل څرګند او معلومیږی . خو بیاپه هغو ځایونو کی چی‌ځمکی للمی‌او کرنه نا محدوده ده ، ویشس تـــرډیری مودی پوری په خپل قــوت

(۱) در سرنر د کتاب ۱۱۴مخ.
(۲) همدا ماخذ شیـخ ملی او دځمکو ویشس .
(۳) وګوری‌محمد نعیم سالارزی‌کابل مجله کال ۱۳۵۵ ګڼه ۲، ٦مخ او همدغسی نصرالله خان نصر :سوات.

* اصلی متن داسی دی چـــی‌سعدی داخون دوریزه نیکه ته په خوله ویشس کی د هغه دزیاتو خدـمتونو په‌بدل کی » د اخون‌در ویزه مخزن پښتو اکیدمی پیښور پوینور‌ـستی دج مخ ـ ادیټور .
** یعنی چی به کمه ساحه‌کې‌ډیرخه کرل کیږی .

سره باقی پاتی دی (۱) تر ټولـــوزیات یاښت یی په ښورا وك کـی وکړ چی تر اوسه هم شته . خو بیاهمویشں په ماموندو ،د شیگل پـه شینوارو، سالار زیو اواتمانخیـلوکي تر ډیری موذی پوری موجودو. تقریبا شل کاله پخوا په وړو مـــاموندو کی ویشں له منځه ولاړ . که څه هم ویشں په ماموندو کی د ډیرومشکلاتو سره ملگری و ، دما موندو سالار زواو اتما نخیلوویش یو ډولو، خو په سالارزو او اتما نخیلوکی ویشں تقریبا ٦٠ کاله مخکی لـــهمنځه تللی دی . په لویو ماموندوکی وروستی ویشں تقریبا څلو یښـــتکاله پخوا شوی دی ـ کهڅه همدا ویش آخری اوقطعی و یش نـه و،ځکه دلویو ماموندو د دوو مهمـــــو ملکانو (عبدا لحکیم ملك او شهزادهملك) تر منځشخړه پیدا شوه.هریو هغه وخت قطعی او وروستی ویشںغواړی چی پخپله قوی او حریف یی کمزوری وی . خوبیا په دی و ختکی کمزوری او طرفداران یی ویشں نه غواړی . نو تراوسه پوری آخریاو قطعی ویشں نه دی شوی اود دی امکان زیات دی چی همدغه ویشـــںقطعی او آخری ویشں وگڼل شی .د دی لهپاره چی دویشں نور اړخو نهسم وځیړلی شو لازمه ده چیددواړو ماموندو په مثال کی دویشں پروسهوښیو .

اوس مونږ دی موضوع ته راگرزو چی آیاد پښتنوویشں دود لکه څنگه چی د ځینو محقیقینو نظر دیدشیخ ملی ابتکار دی او که دویشں دود مساله دختیځ دتولیـد د ډول(دشرقی تولید طرز) د عمومیعملیی یوه برخه ده .

م . س الفنستونلومړنی خارجیلیکوال دی چی په خپل اثر (۲) کی دپښتنی قبیلو د ژوند په ټولو اړ خونو او مخصو صا دیو سفزیو د ټولنیز ژوند په ترخ کییید دویپهویشں ډود لیکنـــې کـړی دی (۳) .

---

(۱) وگوری ریسنر . ریسنرنومړی خبره دسوات او مروتو پـــه مثال کیتوضیح کوی .

(۲) دکابل سلطنت بیان (پـــهانگریزی ژبه .)

(۳) د۲او۳ له پاره همدغه کتابدی وکتل شی .

دده‌دلیکنو څخه څرګند یږي چې‌دده دراتګ څخه پخوا د پیښور په شاو خوا سیمو کي د دولت مالیاتي‌سیستم وجود درلود اود دولت تر اداري سیستم‌لاندي دمالیاتي‌سیستم‌له‌امله په ځینو قبیلو کي ویشس‌دود له‌منځه تللي و، په‌ځینو قبیلو کي‌دتلو په حالت کي‌و او یوازي ددولت د اداري سیستم دباندي په ځینو‌قبیلو کي یي لارواج درلود . همدا علت وچي ده داداري سیستم‌دباندي د سوات دیو سفزو دنیکبي‌خیلو په ویشس دود اوږد بیان کړی‌دی .دی دویشس دود د تفصیل په ترڅ‌کي دځینو قبیلو و یش دود ته‌په‌تاریخی لحاظ اشاره کوی او په دی ضمن کي دبړ یخو ویشس دود‌هم یادوی . دی په‌شپاړ سمه پیړی کي د پیښور وادی ته د یوسفزو دراتګ تاریخ او ددوی ترمنځ دویش دود په باره کي تفصیلات ورکوی،اماد‌ځمکو دویشس دود په‌پیل کي دشیخ ملي په‌باره کي څه‌نه وایي .

دالفنستون نه وورسته ځینو نورو ځینی‌کورنی او بهرنی پوهان د یوسفزواو نورو پښتنو ویشس دود ته ملتفت‌شول چي د دی پوهانو څخه ځینود تاریخي اسنادو په اتکاو ځینو په‌ساحو کي په عملي څیړنو لاس‌پوري کړ . دیو شمیر محققینو له‌پاره‌دیوسفزو د ځمکو ویشس دود نمو نه وګرز یده او د یوسفزو په ویشس‌دود باندی د زیات تمرکز په لحاظ ځیني محققین د ی‌نتیجي ته‌ورسیدل‌چي د ځمکو ویشس دود د شیخ ملي ابتکار او یوازي دیو سفزوعنعنه ده.دناروی د هیواد یو پوه فرید ریک بارت چي د سوات د یو سفزو په‌په‌ساحه کي‌یي څیړني کړی دی وایي چي په پنج کوره او باجوړ کي‌چي دسوات اقتصاد لری د ځمکو ویشس وجود نه لری . (۱) همداشان‌ځیني لیکوال لان د ځمکو ویش دود دلري پښتنو نخوا په قبیلو پوري‌محدودوی او د دوی په نظر د بري پښتنو نخوا په قبیلو کي ویشس دودنشته. (۲)

---

(1) Barth, Fredrik, Political Leadership Among Sawat Pathans: 1959, p. 68.

(۲) دغي ډلي ته دباجوړ په ماموندو ،د شیګل د شینوارو اودکندهارد نوراوك ،دبړیخو په ویشي‌دودزموږ څیړني او مواد ښه ځواب‌دي .

اوس دا موضوع چې په پښتنـوکې ویشس دود دشیخ ملی ابتکاردی او که نه لنډ بحث ته اړه لری .

هغه څوك چې دپښتنو دقبیلوی جوړ ښت اود دودونو په باره کـــی معلومات لری له دی څخه انکار نشی کولای چې پښتانه تل د مهمو مسا- یلود حل له پاره بی طرفه رو حانی شخصیت را غواړی .

دا د دوی د قبیلوی ژوند خصو صیت دی چې همیشه د قبیلومشران دقبیلوی رقا بتونو له کبله خپله بی طرفی نشی ساتلای اود ځمکودویش اود اشان په نورو مهمو حیا تی مسایلو کی طرف واقع کیږی . پـه پښتنو کی چې یو روحانی شخصیت دتقوی او بی طرفی په لحاظ ځان په قبیله کی تثبیت کړی بیا د قبیلی ټول غړی دغه شان روحانی شخصیت ته د درناوی په نظر گوری او دوی تل د ځمکو دویشس نه نیولی دقبیلو ترمنځ دټولو مهمو مسالو په بر خه کی هری پریکړی ته یی غاړه ږدی .

دفریدریك بارت دوینا له مخې څه وخت چې یوسفزو خپل فتوحات بشپړ کړل بریالیو یو سفزو ته د ځمکی د برابر او عادلانه ویش پـه باره کی ستونزی پیدا شوی او دوی دنا متورو حانی شخص شیخ ملـــی څخه هیله وکړه چې د دوی ترمنځ نیول شوی ځمکه وویشی . شیـخ ملی د ځمکی د ویشس له پاره یوداسی سیستم وضع کړ چې دغه سیستم په یو وخت کې په بشپړه تو گـه عـادلانه او دمنلو وړو . (۱)

دفرید ریك بارت اونورومحقیقینو دلیکونو څخه څرگند یږی چې دشیخ ملی ویشس څکه عاد لانه و چې ده دیوسفزو او مندړو ترمنځ په خو له ویشس وکړ اوده دنارینه ونه علاوه ښځی او ماشومان هم په ویشس کـی شامل کړل . (۲) شیخ ملی دویشس له پاره ځینی مقررات وټاکل او دغه مقرراتو ته دده په دفتر کی ځـــای ور کړل شوچې ددغه روحانی شخصیت

---

(۱) وگوری د فریدریك بارت دکتاب ۹ـ ۱۰ مخونه .
(۲) وگوری هماغه ځای .

پهویشس دود کی څوك اختلاف پیدانهکړی . (۱)

دورو ستنیو څیړنو څخه څرگندیږی چی د وخت په تیریدو سره د شیخ ملی عادلانه (خوله ویشس ) پهنسبی ویشس بدل شو .

په شپاړ سمه پیړی کی تــــرکانو هم‌دباجوړ شاو خوا پرا خی سیمی له ګگیانو څخه ونیولی . دخلکو د شفا هی روا یتو نوله مخی ماموند بابا چی یو روحانی شخصیت‌ودغه سیمی یی د خپلو زامنوترمنځ په‌برابره توگه وویشلی .دمامو نــدبابا د لومړنی ویشس نه وروسته د ماموندړ د ځمکی دبیا ویش په وخت کی‌به یو روحانی شخصیت راغو ـ ښتل کیده او دغه ویشس بهدرا غوښتل شوی روحانی شخصیت په لاس کیده چی د ماموندو د هروخت‌ویشس هم‌د هغه مربوط رو حا نـی شخصیت په نوم شهرت موندلی دی(۲) همدغه شان دری سوه کاله‌پخوا دسره کمر شینوارو د شیخ بابا په‌مشری د اسمار د شیگل سیمه د کافرو څخه ونیوله او وروسته دغه‌ټولوسیمه پخپله شیخ‌بابا دشینوارو ترمنځ دخوله ویشس په اساس وو یشله چی دشینوارو تر منځ‌لومړنی ویش دشیخ‌بابا په ویش‌مشهوردی. البته مونږ د ښوراوك د بړ یخود لومړنی ویشس په‌باره کی دا معلو مات تر لاسه نه کړای شول چی د بړیخولومړنی ویشس دکوم رو حا نی‌شخصیت له خوا شوی دی او که د بړیخو مشرانو پخپله خپل تر منـځ‌دغه ویشس کړی دی . دمروتودویشس په‌باره کی تور برن (Thorburn) پوره معلومات وړاندی کړی دی.هغه دمروتو د ویشس په‌باره کی وایی : څه وخت چی تقریبا ،دری پیــړی پخوا مروتو (دنیا زو څخه) آوا ره‌ځمکه ونیوله ،دوی په دغی سیمی خپل نوم کینښود او دی ځای ته یی دځان سره دپلرو نو لرغونی‌دود (خوله ویش) یا وخت پــه وخـت‌دپچـی په ا ساس دقبیلو تر مـنځ‌د

---

(۱) وګوری بارت د سوات پـه‌پښتنو کی سیاسی مشر توب ( په انگریزی ژبه) .

(۲)الفنستون:دکابل سلطنت‌بیان(په‌انگریزی ژبه) ، ۱۸۶۰ ، ۳۲ مخ .

دلری پښتو— Evalorenz لورنس ایوا (۱) راوړ . ځمکو ویشس دود
نخوا دقبیلو په ویشس دود دخپلی دکتورا په تیزس (۲) کی دپښتنی
قبیلو دویشس دود د څیړنو پهدوران کی دپښتنو ویش دود دنوروهندی
قبیلو دویشس دودونو سرهپرتلهکوی اود هغی دڅیړنو څخه څرگند یږ ی
چی په نورو هندی قبیلو کی هم مشخصو ویشس دودونو و جود
دړلود .

اوسس د پور تنیو دلایلو له مخیآیا مونږ دا ویلای شو چی سربیره
پریو سفزو دشیخ ملی دفترتر کانو،شینوارو ،مهمندو ، مروتو،وزیرو،
بړیڅو، بلوڅو اوهندی قبیلو تهرسیدلی او دوی ټولو د شیخ ملی د
دفتر په اساس و یش دودپیل کړی دی . په د ی کی شك نشته چی د
تور بر ن په اصطلاح شیخ ملیلو مرنی روحانی شخصیت دی چی په
یوسفزو کی یی د پلرونو د لرغونیدود په اساسی خوله ویشس ته په
عادلانه توگه عملی بڼه ورکړی ده .اما شیخ ملی دویشس دود موسسس
نه دی . زمونږ په نظر د ختیځ دتولید دډول دتیوری لهمخی دقبیلو
ترمنځ د ځمکو ویشس دود لرغو نیعملیه ده اود ښتنو د ځمکو ویشس
دود او دگډ ملکیت دفاع هم دختیځ تولید د ډول د عمومی عملیی څخه
نهشی جلا کیدای .

---

Thorburn, S.S., Bannu or Our Afghan Frontiers; 1876, p. 125.

(۲) (Evalorenz) ددوکتوری تیزس ویانا

له هغو زیاتو دلیلونو او څرگند ونو څخه چی محمد نعیم سالار ز ی
وړاندی کړی دا ویلای شوچی که څه هم شیخملی پخپله دویشر دود
موسسس نه دی خوده یوشمیر هغهاصول او دوترمنځ ته راوړی چی د
خښی خیلو او غور یا خیلو تر منځدمځکی په و یشلو کی یی تری کار
واخیست. وگوری محمد نعیم سالارزی(( شیخ ملی او دځمکو و یش))
کابل مجله ۲گڼه ۱۳۵۵ کال ٦ مخ اود همدی مجلی ٥٠ گڼه ۱۳٥٥ کال
۸۰ـ ۱۲ مخونه ادیتور .

## ۱- ویش :

په پښتنو کې د ویش کلمه ډیری معنا گانی لری لکه سر شمیر نه ، برخه ، کالیم (ولور )، میراث او یادولجی ویش. موږ دلته دو یش اصطلاح د پښتنو دځمکې دویش دودپه معنا ا ستعما لو و. پخواله دی چې دویش اصلی بحث ته داخل شوغواړو چې دغه سیستم په لنډ ډول سر ه لوستو نکو ته معر فی کړو :

دپښتنو ټولنه وروسته له دی چې دلومړ نی اشترا کی دوری څخه وزی یو تیریدو نکی (انتقا لی) پړاوتیروی . په دی پړاو کی چې مارکس هغه تــه (عمومي مر ییتـوب ) (۱) وایی دپښتنو په ځینو قو - مونو کی د ویش سیستم منځ ته راځي . په دی پړاو کې دتو لید عمده وسیله ځمکه ده . په ځمکه باندی دخصو صی مالکیت در لودل هم پـه همدی پړاو ک ی رامنځ ته کیږی خو بیاهم د ویش په سیستم کی د ځمکی مالکیت یوه منځنی بڼه غوره کوی . ځکه له یوی خوا د پخوانی ټولنی نښی نښانی په کی شته چې هغه یـــی د اشتراکیت و خواته (په ځمکه باندی د ټول ټبر مالکیت )بیایی او له بلی خواد نوی ټولنی عناصر په کی وده کوی چې د هغو هڅه بیا د ځمکی دخصو صی مالکیت خوا ته وی . نو

---

۱ــ کارل مارکس :

Gundrisse del Kritik der Politischen Okonomie

ځکه د ویش په سیستم کی هم ځمکه دقوم په لاس کی ده او هم دبزگر په لاس کی (۱).

نو مونږ نه شو کولای چی وو ایوچی دلته یعنی دویشس په سیستم کی ځمکه دبزگر یادمستقیم مو لد ملکیت دی . مار کس هغه وخت چې دپا نگوالې ټخه په مخکې جوړښتونو باندی غږیږی دوه دوله ملکیت سره جلا کوی . یوه ته یې مالکیت وایی چی په حقوقی لحاظ خصوصی مالکیت دی خو بل دول ته یی استفاده او یا « په لاس کی لرل» ویلای شو چی په دی حالت کی بزگر یا مستقیم مولدد ځمکی ټخه استفاده کوی او پخپله ددخصوصی ملکیت نه دی . (۲)

دویشس په سیستم کی هم دوا ړه دوله شته. یعنی په اصل کی ځمکه دبزگر ملکیت دی ځکه چی تو ل عمریی په لاس کی ده او استفاده تری کولای شی . خو په ځینو ځایونو لکه په مروتو کی بیا بزگر

---

۱ـ دخارجی پوهانو ټخه یوازی دشوروی ځو تنو پوهانو دافغانستان اجتماعی تاریخ څیړلی دی .د دوی څیړنی د افغانی تاریخ لیکنی له پاره ډیری ارزښتناکی دی . د لویدیځی نړی پوهانو یایی ماجرا جویی کو له چی ددوی افسانی زمونږ له پاره نه پکارېږی او یایی افغانستا ن ته هغه وخت توجه کړیده کله به چی داستعمار ضرورت پیدا شو .دا خلی پوهانو بیاد مدرنو علومو سره دومره آشنایی نه درلوده نو تاریخ لیکنه په زیاته اندازه تشریحی پاتی شوی ده. یوازی دباچا هانو په تخت کیناستل او کوزیدل د دوی له پاره اهمیت درلود چی هغه یی په زیات او یا کم تفصیل سره درج کړی دی . البته ځینی نوی تاریخ پوهان ددی امر ټخه مستثنی دی. له دی کبله مونږ په پوره ډاډ سره د پخوانیو دورو احوال مستند نشو راوړ لای .

(۲) وگوری مارکس پورتنی ماخذ

يعني مالك نشواى كولاى چي ځمكه‌خرڅه اوياىي گروگړي همد غسي په‌نورو پښتنو كي د ځمكي خصوصادويشس په قبيلو كي د ځمكي خر ـ څلاو ډير كم ليدل كيږي او په‌تيره‌دويشس‌په وخت كي ښايي بيخي نه و، داحقيقت مونږ په خپل دی نظر كي تقويه كوى چي ښايي دويشس په اولو وختو كي د ځمكي د خرڅلاو گروي موضو عات هيڅ موجودنه وو. له بلي خوا په هغو وختونوكي‌دپيسو رواج هم په كليو كي زيات نه و چي انگلسى يي د كاپيټا ليزم‌او پولي اقتصاد له‌پاره ډير موثـــر بولي. (۱) همد غسي ډير پښتانه‌قومونه‌دلويو تجارتي‌لارو څخه‌لري‌پراته وو او له‌بلي خواد قومي سر حدا توڅخه تير يدل‌په سختي‌سره ترسره كيدل چي په‌نتيجه كي ډير قومو نه‌دبهرنيو تاثير اتو په مقابل كـــي شنډ پاتي شول ، نو د ويشس پـــه‌تكاملي دوره كي هم ډير كم بدلو ـ نونه راغلي دي. دانگريزا نـــواستعمار په ځينو ځايونو كي پـــه مستقيم ډول او په ځينو قومو نوكي‌دورو ورو تاثير له امله د ملكيـــت مساله راپور ته كړه . په نتيجه كي‌ويلاى شو چي ځمكه دويشس د تكا ـ ملي دوران په‌سر كي د قوم ملكيت‌دی ا وپه آخر كي يعني هغه وخت‌چي ويشس قطع كيږي او يا قطع كيدو ته‌نږدي شـ ی،د بزگر يا مستقيم‌مو لد ملكيت يي گڼلي شو .

دويشس په سيستم كي ټوله او لسي ځمكه ورو سته له‌يوى ټاكلي مودي څخه دبيا ويشس له‌پاره‌د قوم‌په‌لاس كي را ټوليږي . دويشس‌نيتې دعنعنې له مخي په مختلفو قو مونو كي‌يو له بله سره توپير كوى . په ځينو قومونو كي يو كال ، په ځينونورو كي څلور يا شپږ او يا شل كاله دي . دا څلور ، شپږ او ياشل‌كاله يوه ټوټه ځمكه ديوه سړ ی په

---

(۱) وگوري (Thorburn) : بنوزموږ افغاني سر حد (په‌انگريـــزي)

همدغسي ريسنر : د فيودا ليزم‌انكشاف په افغانانو كي دده له‌مخي ۱۰۷ مخ.

لاسں کی وی او خوری یې وروسته په دغې مودی ځمکه بیاد قوم په لاس کی راټولیږی او له سره ویشل کیږی چی نوموړی سړی په عادی حالت کی دهماغو مره ځمکی څښتن کیږی .

په پښتنو کی دویشں سیستم په بیــــلا بیلو قبیلو کی ځا ـ نګړی بڼی لری چی مونږ دلته په کم تفصیل سره دویشں هر ډول معرفی کوو:

**۱ـ خوله ویشں :**

دا هغه ډول ویشں دی چی اساس یې خوله تشکیلوی . په دی معناچی په دغه ویشں کی هغه چاته ځمکه ورکوله کیږی چی خوراك کوی . د ویشں دنیتهی څخه پخوا د هرکندی، کلی او قبیلی نر ،ښځی واړه او زاړه شمیرل کیږی او هماغو مره ځمکه هر اقتصادی ټولنیز واحد ته ورکوله کیږی . یعنی که یو کور لسں غړ یولری نود لسو کسو برخه ورکو له کیږی او که پنځه ولری نود پنځــوتنو برخه به وړی .

**۲ـ ملاتړ ویشں :**

په دی ډول ویشں کی هغه چاته ځمکه ور کوله کیږی چی هغه ملا ـ تړی یعنی توره اخلی اود خپلی ځمکی څخه دفاع کولای شی . ټول دقبیلی هغه غړی چی ځوانان دی او ټو پك اخلی په ځمکه کی برخه لری .

دویشں څخه پخوا دوولسں کلنی او یا تر دی ښایې چی عمر یې زیا ت وی شمیرل کیږی او په ځمکه کی برخه ور کوله کیږی .

**۳ـ دشجری له مخی ویشں :**

په دی ډول ویشں کی اول ځمکه دقبیلی د خیلو نو ترمنځ ویشله کیږی یعنی خیلونه په خپل منځ کی سره پچه اچوی . وروسته له هغه یې هر خیل د خپلو پښنو (lineages) ترمنځ ویشی ترڅو چی هری کورنی کهول او یا شخص ته خپله تا کل شوی برخه ورسیږی . بر خی لاد مخه دشجری له مخی معلو مــی دی دلته دویش اساس ور ور دی.

**ویش د شیگل په شینوارو کې:**

د شیگل په شینوار و کې دخولي‌ویش رواج درلود . د دې له پاره چې د خولي ویش پروسه اود هغه‌توپیر دنسبي‌اویاملاتړویش سره‌پوره څرگند شي غواړو چې د شینوارو خوله ویش ته یو لنډ نظر واچوو:
دشیگل شینواری تقریبا دری سوه کاله پخوا د کو مو عواملو له کبله د سره کمرڅخه وخوځیدل اود شیگل ځمکه یې دکفارو * څخه نیولې‌ده. د شینوارورا تگ اود شیگل نیول د شیخ بابا په مشری چې اصلي نوم یې ذکریادی ترسره شو . د دوی سره د شیگل په نیولو کې ماموند و همملگرتیا و کړه . شینوا ری دکفارو دسخت مقاومت سره مخا مخ شول .په‌تیره بیا هغه وخت چې د کنړ رو کلامحاصره شوه نوشیخ‌باباامر وکړچې ټول شینواری دې دکلا دسوزلو له‌پاره یوه یو ه بروټی یوه گیډۍلرگی او یا بوټی را وړی کلا وسوزو له شوه او شینوار ی‌بریالی‌شول‌وروسته له‌دې‌شیخ‌بابادشینوارو ترمنځ د شیگل په ویش پیل وکړ.په‌ویشس کی هغه چاته برخه ورکړه شوه چې بروټی یې راوړی و خوهغو خلکو ته‌چې بروټی یې نه وه‌راوړی ور نکړه شوه .

شینواری خلور غټ خیلو نه دی .(شجره وگوری).ترټولو لومړی‌شیخ بابا دشیگل‌ځمکه په دې څلوروخیلونو وو یشله چې هر خیل ته تپه (۱) وایې بیا هری تپې په خپل‌منځ کې‌په ((خو له ویشس)) وکړ .په دې ډول ویشس کې دیوه کور ټو ل‌نراو ښځې واړه او زاړه شمیرل

---

*دپوهاند عبدالشکور رشاد پـه‌قول دلته له کافرو څخه مقصدهغه خلـک دي‌چې د شینوارو تر را تگ‌دمخه په شیگل کی اوسیدل او تر دی وخته یې‌لااسلام نه‌ومنلی.احتمالاًدغه خلك به گوجر او ساوي وي. ادیټور .

(۱) مروت اوگنډا پوریان‌هم‌تقریباهمدغه دشینوارو اصطلا حات لری . و گوری ، ریسنر ، همدغسې‌ایفا لورینس، په آلمانی ژبه .

کیږی او په ځمکه کی برخه اخلی .پرونی پیدا شوی ماشوم ته که انجلی وی او که هلك برخه ورکوله کیږی،همدغسی که څوك یوه ورځ وروسته دویش څخه مړشی نو ورکړه شوی برخه بیرته اولس ته نه مسترد کیږی .

د ځلورو تپو ترمنځ ویش داسی‌و شو چی‌ادرم خیلو ( عبدا لر حیم خیلو) ته‌په لومړی ویش کی کتـه‌سیر ، امان کو ټ ، کربوړی،کنډرو زبربت ډاګ ، ملاعلم کلې،سپینکې،غزتنګی او شنګر شا ورسیدل . شبل خیلو ته مونی ، شینکو ړك ،لاحسین ، ټالونه ، قویی تالاو،ډاګی سیراود ځاګی ډاګ ورسیـــدل .سلیما نخیلو ته بیا داتوکلی، چا-کوړی ، شینګر ګل ، نیم لا چې ،سمه لام ، برناریت ، سور مل ، بر ګله‌یی او ماټینه ورسیدل . دهلا لزوبرخه هلال زو کلی ، نیم‌لا چی ، لرناریت ، شینګش ، لر ګله یی ،چوښس ،هوار او مادیش شوه .
وروسته له دی چی تپی معلومی‌شوی نو بیا ځمکه دکلیو تر منـــځ وویشله شوه . په‌کلیو کی بیا ویش‌په‌کندی او ټل‌سره کیږی . یوکندی ځلویښت کسه دی او یو ټل لس کسه‌کیږی چی په دی حساب یـــو کندی ځلور ټله دی . د یوه‌کنـــدی‌ځمکی ته (ونه)وایی . دمثال‌په‌توګه: دامان کوټ په کلی کی پایی خیـــل او خزار خیل‌اوسیږی چی‌دوه‌کندی پایی خیل تشکیلو ی‌اودوه‌کند ی‌هم‌خزر خیل نو ټو له ځمکه یې څـــلور ونه ده .

تقریبا ځلویښت کاله پخوا پـــه‌شیګل کی ویش پای‌ته رسیدلی دی . دویش په وخت کی ځمکـــه‌خرڅیدلای نه شوه ، یوازی‌ګرو کیدلای شوه خوهغه هم‌د ډیرو مشکلاتوسره‌ځکه ،که‌دچاځمکه به‌ګرووه او په‌بل ویش کی به‌نومو ړی سړی ته د خولی ویش په اساس سره درو - مبنی ویش‌په تناسب کمه ځمکـــــــه‌ورسیده نو ډیر وخت داسی پیښس شویدی چی پیسو اخیستو نکی بـــه‌پیسی بیرته نشوای ور کولای او مجبور وو چی وتښتی .

د تیښتی‌په‌حالت کی به د ده‌برخه‌ځمکه اولسی شوه او د ګروی داربه پیسی ورکی شوی . له دی کبلـــــه‌ګروی هم دوه مره زیا ته نه وه .

که څه هم خلو ښت کاله پخوا په شيګل کې ويش قطع شوی دی خو ځالونه ،مست ناو او قويي تا لاود شينکو ړك او موني سره شريك دي او تراوسه نه دی ويشل شوی . دا ځمکه بې ځمکې شينواري او مشواڼي په نيمايي کري . نيمايي حاصل چې دبزګرانو نه راوړل شي په هماغه پخواني ((خوله ويش )) يې سره ويشي همدا ډول د غــره للمي ځمکې چې په لسم ور کړی شوی دی تراوسه شريکې او حاصل يې پــه خوله سره ويشل کيږي . د ځاګې ډاګ هم شريك و او په ۱۳۵۶ کال کې داحضار نامو له پاره وو يشل شو .داويش هم په هماغه پخواني خوله ويش (هغه وخت چې د ويش د قطع کيدوله پاره وروستي خولي حساب شوی) سره و .

ځيني نوري شريکې ځمکې لکــه نري بيا په کورو وو يشلې شو ي. که څه هم ډيرو خلکو دخولي ويش غوښتنه کوله خو په پای کې دکورني دو يش سره موافقه وشوه .

دشيګل د ويش ساحه محدوده او ويش دکلي د پولو څخه د باند ی نه وت . له دی کبله دمامو ندو او ياسالار زو په شان دکور ونو بدلو لو ته اړ تيا نه وه .

دشيګل د شينوارو ويش تـــــرزياتي اندازې دمروتو او ګندا پــور ويــش ته ورتــه دی، څـکه لــکه دشيګل په شان په ګندا پور او مروتو کې هم اور شو (ورشو) (۱) غرونه او رغونه په خوله ويشل شوی دی. يوازی د

---

(۱) ريسنر دا خبره د ګنداپور په هکله کوی .دا وايي چې دګندا پور قوم اکثرا مالدار او کو چيان وو او ځمکې يې نورو خلکو کرلې .حاصل يې بيا په خوله سره ويشه . پخپلــه دګندا پور قوم ډيره کمه ځمکه کرله حاصل به يې په (۳٦۰۰)ډډيو (مفرد ډډی) سره ويشل : وګوری ريسنــر ۱٤۷ مخ همدغسی ريسنر يادو ی چې په دامان او نورو علاقو کې به پرديو ته ځنګلي او نا آباده ځمکه ور کوله کيده چې آباده به يې کړه نو بيا به يې د فصل څخه مالك قوم ته لسمه ور کوله اودوی به په خوله سره ويشله . همدغه اثر ــ ۱۷۱ مخ .

د پښتنو د ځینو مهمو قبیلو د ویش دود څرګوالی

لومړی چارټ

| قبیله | د ویش ډول | د ویش موده | په خیل کې د ننه ویش | د خیلونو ترمنځ ویش | د کورونو او کلیو بدلیدل | د ویش د له منځه تلو وخت |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| بریسنغ | ملاتړ ویش | یو کال – هرمنی ویش کیږي | په هر خیل کې خیل منځي (داخلي) ویش کیږي. | | | ویش تراوسه هم جاري دي. |
| د شینکل شینواري | خوله ویش | پخوا خلور کاله او پاشبیز کاله وروسته هر کال هر پسرلي ویش کیده | د خیل د کوچنیو برخو ترمنځ چې په یوه کلي کې اوسیږي ویش کیده | | | ویش تقریباً خلویښت کاله پخوا قطع شوی دی (له منځه تللی دی) |
| ماموند | نسبي ویش | هر شل کاله وروسته ویش کیده | | ویش اول د خیلونو ترمنځ کیږي او بیا په هر خیل کې خیل منځي (داخلي) ویش کیده | کورونه او کلي سره بدلیدل. | ویش تقریباً خلویښت کاله پخوا پای ته رسیدلی دی. |
| سالارزي | نسبي ویش | هر شل کاله وروسته ویش کیده | | اول به خیلونو به خپل منځ کې پچه سره اچوله او بیا به په خیل کې سره ویش کیده | کورونه او کلي سره بدلیدل. | ویش تقریباً ۶۲ کاله پخوا قطع شوی دی. |
| اتمانخیل | نسبي ویش ملاتړ – ویش (پیړ بره) | هر شل کاله ورسته ویش کیده | | لومړی د خیلونو ترمنځ پچه اچول کیده او وروسته به په خیل کې محکمه ویشل کیده. | کورونه او کلي سره بدلیدل. | ویش تقریباً ۶۵ کال پخوا قطع شوی دی. |
| د سوات – یوسفزي | لومړنی ویشونه به خوله وو وروستي ویشونه نسبي | هر لس کاله وروسته ویش کیده | وروستي ویشونه د خیل ترمنځ کیدل. | لومړنیو ویشونو د خیل نه پورته پورې هم احتوا کوله | په لومړنیو ویشونو کې کورونه او کلي سره – بدلیدل. بیا به وروستیو ویشونو کې کلي او کورونه نه سره بدلیدل. | ویش په ۱۹۲۸ کال کې له – منځه تللی دی. |
| د بنو مروت | خوله ویش | داتو او پنځلسو کالو نو ترمنځ ویش کیده. | وروستي ویشونه د خیل د ننه کیدل | | کورونه او کلي نه سره – بدلیدل. | ویش په ۱۸۷۶ کال کې قطع شوی دی |
| ګنداپور | خوله ویش | د تیر ویش د مشرانو جرګې په بدل ویش نیټه ټاکله. | وروستي ویشونه په خیل کې د ننه (خیل منځي) وو | لومړني ویشونه د خیلونو ترمنځ هم کیدل | په لومړنیو ویشونو کې – کورونه او کلي سره بدلیدل | ویش په ۱۸۷۳ کال کې قطع شوی دی |

ویش موده يې پوله بله توپير لري. پهشيگل کی بههر شپږ کاله ورو — سته ویشس کیده . په څينو کليوکيبيا څلور کاله وورسته ويشس كيده دمږوتو ويشس به داتو او پنځلسوکالونو ترمنځ کیده. ریسنردالفنستون په استناد سره وايې چې د یوسفزوو گندا پورد ویش نيته تاکلې نــه وه بلکې دويشس په وخت کی به دقوم سپین ږيرو دبلويشس نيتهـــه معلو موله . (۱)

ریسنر د پښتنو ويش دجرمنيانودويشس سره پرتله کوی او وايیچی دجرمنيانو ويشس (مارك) دکښته نه پورته راته يعنی اول به ځمکه دکلی ترمنځ وويشله شوه او وروسته لههغه پاتی ځمکه به د (Hundertscht) (سلو) وه. دهغه نه به چې ځمکهپاتیشوه هغه بهد علاقی (district) وهاوتردی پورته پوړی ملت و . (۲) يعنی پهجرمنيانو کی لهکښتهنه پور ته ځمکه ویشلهکیده اوپهپښتنوکیبیا د پورته نه کښتهداکارکیده : داسی چې لومړی به دقوم ځمکه پهخيلو نوياتپو وويشله شوهاو ورو — سته له هغی به تقسيمات پښـــی ،کهول ، کورنی او تر شخص پور ی رسيدل . دويشس په قطع کیدوکیهمهمدا سلسله مراعات شـوی ده . داسی چې لومړی د قوم په پور ته پوړی يعنی دخیلونو تر منځ و يشس قطع کیږی او بیا د پښو تـــر منځ، او تر ټولو زيات پهکورنی کی دوام کوی تر هغوچې بالکل قطعشي.(۳)

## دبړ یخو ویش :

بړيځ وايی چی مونږ د ښوراوكځمکه دمغلو (؟) څخه نیولی د ماو پخواله دی مونږ په کلا بســــــت(قلعه بست) کی میشته وو . ټو ل بړیځ مجمو عـــا دری ورونـــه دی:مند ړزی ، بدل زی او زا کوزی .

---

(۱) ریسنر ور شو ته عر بـــیلفظ استعما لوی او ((شا ملیت)) یی بولی . مونږ ته دا څرگنده نه شو هچی آیا دادختیځو پښتنو خپل ټکی دی اوکه ریسنر ورته ایستلې دیریسنر ۱۲۲ مخ .

(۲) ریسنر ۱۵۱ مخ.

(۳) همدا ماخذ ۱۴۹ او۱۵۰مخونه .

دمند وزی ځمکه د کاریـــز نه دریگ تر علاقه داری یعنی د بلو څو ترسر حد پوری یوه تړانگه تثبیت‌شوه.

بدل زیو ته دغلدری (پښین)ځخه‌تربها درزیو پوری ځمکه ورسیده او زاکو زیو ته دپنج پای نه دریگ ترعلاقه داری پوری ځمکه ور کړه شوه شیرانې په اصل کې دبړیځو څلورم‌ورور نه دی، بلکې ددوی تره یـا تربور کیږی . خو په کوم وخت کې‌د شیرا نیو او بړیځو ترمنځ جګړه شوی وه چې په هغی کې‌دشیرا نیواویاکسه خلك‌مړه شوی وو.دروغی‌او جوړی په فیصله کی شیرا نیو ته‌دمندوزیو د برخی ځخه دلویدیځ‌خواته یوه‌ټوټه ځمکه ورکړه شوه . بد ل زیو او زا کوزیو په ځان منلی و ه چی خپله برخه‌دشیرانیو د ځمکی‌په‌بدل کی مندوزیو ته ورکړی . خو وروسته مندوزی پسی ونه گرزید ل‌او نورو دوو ورو ټو په خپله مـخه مندوزیو ته ځمکه ورنکړه . اوســ‌شیرانی د بړیځو د څلورم ورو ر حیثیت لری .

وروسته له‌دی چې ځمکه‌د څلـورورو ټو ترمنځ‌وویشله شوه نوبیاهر یوه په خپل منځ کی په ((دود))سره‌وویشله .

دود دا معنا لری چی هرڅوك‌چی‌دوو لس کلن ځلمی وی اود ځمکی د دفاع په خاطر د ټوپك د خولی‌ځخه‌دود یعنی لوگی وباسی په ځمکه کی برخه ورکوله کیږی . د ځمکی برخی‌ته‌هم په دی لحاظ ((دود)) وایی. په دی ډول هر کور چی هـرځـو مړه‌دوولس کلن‌اویا تردی پورته نارینه غړی ولری په‌هماغه اندازه په ځمکه‌کی‌برخه اخلی .

دښوراوك ځمکی‌تقریبا دایوه‌پیړی‌کیږی چی‌للمی‌دی اویوازی‌داوړی‌فصل کرلی کیږی . په‌منی کی په‌ښوراوك‌کی‌باران‌کیږی‌اوپه خوړ کی‌او به راځی . بړیځ هم په دی وخت کی‌دخپلو ((دودونو )) یعنی مـــړو او ژوندیو حساب کوی . مړه دحساب‌ځخه ایستل کیږی او ژوندی‌او یا نوی پیدا شوی پکی ور گډ یږی .دی ډول ویشس ته‌د ملاتړ ویشس‌وایی په دی ویشس کی یوازی ځلمی اونرته‌ځمکه ورکوله کیږی او ښځو او کو چنیانو ته‌دځمکی برخه‌نه‌ورکوی.

وورسته له‌دی چې دودو نه معلوم‌شول، نود ټول خیل ځمــکه در ی

برخې شي چې هرې برخې ته يې فصل وايي . يوازې يوه برخه يعنې يو فصل
کرل کيږي (۱) دې کرل شوي فصل ته بيا خلورم کال وارر سيږي . ديو ه
((دود)) د معلوموملو له پاره اول تو ل فصل په گامونو کچ کړي . بيا هر
څو مره دو دونه چې په دې فصل کې شريك وي ، دهغو له مخې يو دود په
گامونو معلوموي . په دې ډول ديوي کورنی دودونه (ځمکه) معلومه شي
څوك چې حاضر وي نو پخپله يې کري او څوك چې نه وي د هغه ځمکه
کوم بل بزگر کری .

بړيخو په پخوا وخت کې د خپلې سيمې دسرحد ونو څخه د پرديو قو-
مونو په مقا بل کې دفـاع کـولـه. د دې دفاع له پاره هرخيل پنځوس
اسونه در لودل چې د ټولو بړيخو دوه سوه اسونه کيدل . هر چا به چې
اس ساته نود (اس د دود)) په نامه به يې ځمکه ورکوله او هر چا به چې
اس خرخ کړنو داس دود به يې هغه اخيستو نکي ته ولاړ .د دې دوه سوه
سپرو څخه به پنځو س پنځو س سپاره هرې خوا ته تيار وو.

دير غل په وخت کې به دې پنځوس سپرو د لومړې پړاو دفاع کوله .د
ضرورت په وخت کې به نور بړ يـــخ هم ورتلل . وروسته بيا کله چـــې
قبيلوې جگړې کمې شوې او يا ورکې شوې نوداس دود هم ور ك
شو.
که څه هم په بړيخو کې د ملاتړ ويش وخو په وروستيو وختونو کې
په مندوزيو او زاکوزيو کې دحساب څخه يوه ورځ مخکې پيدا شوی هلك
ته هم دود ور کوي او تر ۱۲ کلنۍ پورې انتظار ورته نه باسي. په بدل-
زيو کې بيا هماغه پخوانی دملاتړ ويش تراوسه هم جاري دی .

په بړيخو کې تر اوسه پورې هر کال ويش کيږي . که څه هم په دې
ويش کې د توليد د وسايلو (ځمکې) يو نسبتا مساوی تقسيم موجود دی خو
بيا هم په دوی کې اقتصادي نابرابري شته . که څه هم په دې باره کـــې
وروسته بحث کوو خو اوس دومره ويلای شو چې :

---

(۱) دفصل ويشنه داورشو اوداوبو د کموالي له کبله ده .

۱- دبړ یخو ټولنــه په دې وروستیو کلونو کې بهرنی تماس‌لری (تجارت او نور .)

۲- په بړیخو کې هغه خلك چې‌بنه ټولنیز موقف لری ( د قــام مشروی ) نو یاپخپله دی او یاز وی‌ا وورورپی میراب ټاکل‌کیږی.میرا ب په‌ویاله کی او به‌راولی او په مقابل‌کی زیاتی او به ورکولی کیږی . دا چی په ښوراوك کی ځمکه‌ډیره‌اواوبه‌کمی دی نو میرآب کولای شی چی ( شاړه) ځمکه ذقوم ښخه و غواړی‌اوپه خپلو اوبو یې‌اوبه‌کړی. دزیاتې ځمکې‌دکرلوله‌پاره بزګراستخداموی.

داچی مونږ په میراب اواوبوباندی‌وغږ یدونو داوبو مساله او حسا ب په‌بړ یخو کی ډیر په زړه پور ی‌دی‌او څرګند یږی چی کله ډیر ابتدایی قومونه داسی لاری چاری پیژنی چی‌دعصری تخنیك وظیفه اجرا کوی .

دټولو بړیخو او به دوه ځایه ځی‌چی نیمایی شیرا ښیو او مندوزیو ته ځی او نیمایی یې زاکو زیو او بد لزیوته . مندوز ی یی په ځانګــړ ی ویاله کی بیایی او شیرا ښی هم په‌ځانګړی ویاله کی .همدغسی زاکوزی اوبدل‌زی یی‌هم‌سره بیلوی‌داچی‌پخوادبړ یخو ښخه په‌مالیه کی‌او ښا ن اخیستل کیدل نو دوی دوه ډو لــه‌حساب کوی . ځمکه په (دود) سره ویشی خواو به په اوښ ســـــر ه‌ویشې. په‌پخو ا و ختو نوکې‌دمالیې (۱) (اوښ) دویشلو حساب په‌ویاله‌سره ترسره شویدی چی د هغه‌له مخی اوس او به‌په اوښ سره‌ویشل‌کیږی .نو دهرچا داوبوحساب‌معلوم دی . د مثال‌په‌توګه : دمندوزیوشپږویالی دی چی هره ویاله یی اته‌او - ښان کیږی .

---

(۱) بړیخی وایی چی مونږ ځمکه‌په دود سره ویشو او غم په اوښ سره غم‌د دوی په اصطلاح مالیی ته‌وایی.

البته له مالیی ښخه پرته نـــورغمونه او تاوانونه هم شته‌چی دوی یااکثر قومی خلك یې غم بـــو لی‌خو مالیه ددوی له پاره لوی غم و د امیر عبدا لرحمن خان‌په وخت کی‌به‌بړیخوهر کال۱۷۳اوښان دمالیې‌په‌نوم حکومت ته ورکول . بیادامیر امان‌الله خان په فرمان سره یو اوښ په ۹۳ - افغانی بیه شو چی وروسته‌له‌هغویې نغدی پیسی ور کولی .

محمد عظیم ملك پلار نور زاعلي مړشو . محمد عظیم ملك د بر سدین دشینگر کلي دی . دغه ویش د ډېرو پــه ویشس مشهور دی څکه د سالا رز و مشران د ویشس له پاره ډېر نو مې ځای ته سره راټول شوی وو . د نور زاعلي ترمرگ څه موده وروسته بیا د سالار زو مشران دډېر کلي د مولوی امیرا لدین ځای ته سره را ټول شول اود مشرانو او روحانیونو دجرگې په نتیجه کې دویشس دقطعي کیدو (بس کیدو )پریکړه وشوه او هره قبیله چې چیــری میشتـــه و ه هلته پاتــــــی شوه .

ماموند بابا د خپلی لومړی ښځې څخه شپږ زامن درلودل چې د هغـو ترمنځ یې ویشس وکړ . د دی شپږوزامنو څخه یې ایسوزی ته جندو ل او بر اول ور کړل . سالار زی ته یې بابو قره (دباجوړ دسالار زوسیمه) سمیل زی ته میدان، برووزی ، اوریازی او کا کا ز ی ته یې او تلی (د ماموندو سیمه )ور کړه. وروسته له دی ویشس څخه ماموند بابا بلـــه ښځه وکړه د هغې دری زامن پیــداشول چې بدل زی ،بـــرم کازی او خلوزی دی . د دوی څخه یې بد لزی ته دسالار زی سره ځمکه ورکړه برم کازی یې دواړه ماموند یعنـــی برووزی او اوریازی سره ځای کړ او خلوزی ته یې دکاکازی سره بر خه ورکړه .

دوړو مامو ند وویشس هم لکه د سالار زود اتما نخیلو اولویو ماموندو په شان هر شل کاله وروسته کیده پچې د پخوانه معلومی دی . ټول ما-موند لس پچې دی چې پنځه یـې دوړو ما موند و او پنځه نوری یې د لویو ماموندو دی . د هری پچـــی غرونه ، رغونه او اور شو گانـــــی معلومی دی، دوړو ماموندو د پچـو تفصیل په دی ډول دی :

**لومړی پچه :**

دځمکی داندازی مقیاس چو که ده . چوکه داتو نه تردیار لسو لو-یشتو پوری اوږده وی. لو یشتي یا بایده دی اوږ دی وی او یا متوسطي

خودلو یشتو اوچوکې اوږ دو الېدچوکی د جوړولو په سر کی‌اهمیت لری . یوه پچه څلوېښت برخی ده.یوه برخه څلور پاوه ده . همدغسی یوه برخه دوی نیمکی کیږی او یایوه‌نیمکی دوه پاوه کیږی . یوپاو څلور میری کیږی او یو میری څلور پیسی‌کیږی چی یوه پیسه څلور کاسیری کیږی.

یومیری دوه سوه چو کـی په اوږدوالی او څلور چوکی په سور دی دچوکی د توپیر له مخی میری هم‌په‌هره سیمه کی تغییر کوی . هر چاته چی هره پچه ورسیده مجبور دی‌هغه‌ومنی او خپلی پچی ته وکو چیږی . ځینی پچی وړی او ځینی غټی دی .همدغسی (لومړی دری پچی ښی او سود منی دی . وروستی در ی‌پچی‌خرابی دی .) داچی ځینی پچی‌غټی‌او ځینی کوچنی دی ښایی په او لویش‌کی‌یی یاد ځمکی په اندازه کولو کی غلطی کړی وی او یادا چی دقدر ت‌او زور نه پکی کار اخیستل شوی وی .

کله به‌چی دویشس نیته رانژ دی‌شوه نو یو روحانی پیر به راوبلل شو چی اولس به‌یی دښیرو څخـه‌ډاریده او د عاته به‌یی لیواله وورو- حانی پیر کو ښښس کوی چی د چاسره زور او ظلم ونه شی او یا د چا پچه ورکه نشی .

د ی‌د دواړوملکانو (لوی ملکـان‌پچو ته‌ن ه راځی خو خپل خواهشات دوړو ملکانو په واسطه پرمخ بیایی)میااو ملا سره په اولس کی گرز ی او راگرزی . د حسابونو او قضیوڅخه ځان خبروی اود ضرور ت په وخت کی مداخله هم کوی . پد ی‌وخت کی هره کورنی ، کندی ا و کلی خپلی وړی برخی (پیسه ،کا سیره او میری او یا هر څو مـــره برخه چی د یوه کور شته اوور ته‌معلومه ده ) سره ټولوی اوشاو‌برخو ته‌یې رسوی چي شل برخي یا نیمه‌پچه شوه نودي ته‌نیم‌بیره‌وایي‌رو -

حانی شخصیت ، میا ملا او ملکا نچی په اولس کی د حسابونو خارنه
کوی د میلمستیا گانو غوړی دوډی خوری . په تیره دنیم بیړی په نـــوم
ډوډی، ډیره غوړه او غوښی پکی زیاتی وی . شریف (۱) چی د وړوماموندو
په وروستی ویشس کی میلمه وداسی بیان کوی : ((مونږ دوړو مامو ندو
په وروستی ویشس کی میلمانه وو .محمد یوسف چی د بابړی ملاصاحب
زوی او په گل صاحب شهرت لری د روحانی پیرپه حیث راوستـــل
شوی و .

دهری پچی مشران به په میلمستیا کی حاضر وو .د ټولو شمیر به د
شلو او پنځوسو تر منځ و . هرکلی ته به تللو اود برخو اوړ چوحسا ـ
بونه به موکتل . خلکو ،کــورنیو او کندیو به ډیری ښی میلمستیا وی تیا ـ
رولی چرگان ، گډان اوسیرلی بـه حلالیدل . حیوانی سوچه غوړی به د
ښوروا په کاسو اړول کیدل . د غنمو ښایسته په تناره پخی ډوډ ی
به په دستر خوان پرتی وی شات ،مستی ،شیدی او هگی به پر یمانه
وی .د گل صاحب سره د چار منگ او سیدو نک ی عبدا لرحیم نومی سړی
چی خلکو به ((ادورمی )) کاوه هـم راغلی و . دبړ زود کیمل خیلـو او
بجل خیلو پچی به نسبتا ډیره مکلفه ورکـــو لــــه . اد رو مـی پـــه
هغه وخت چی دغوړو کونډ ی په کاسه واړول شو ږغ کړ :
«کمیل خـیله بـجل خـیلـه ختلی دی ده )) یعنی ستاسو به لو ـ
مړی پچه و خیژی او د لومړی پچـی ځمکه ښه او ډیره ده . او تصا دفـا
همدا سی و شول چی دکمیل خیلو او بجل خیلو لومړی پچه وختله .
تر دیرشو او څلو یښتو ور ځـو پوری حسابونه کیدل او په پای کی

(۱) شریف صاحب پخپله اتمانخیل او دکونړونو د و لایت دسرحداتو په
آمریت کی یی کار کاوه زمونږ سره یی ډیری مرستی او مزلونه کړی دی
په دی ځای کـی یـو وار بیا ددهٔ مرستو او ښه احساس څخه مننه
کوو

دپچی اچولو وخت راغی . د پنځــوواړو پچو په سوو نو خلك په شما ـ
ګونو می ځای کی (د عبدا لمجیــدملك کلی) راټول شول . دشاګو په
جومات کی مونږ اود وړو ماموند ومشران کښینا ستلو ، په دی خبــره
پریکړه وشوه چی ویشس قطع کوواودغه زمونږ وروستی ویشس دی .
اوسس چی هر چاته هره ځمکــه ورسیده نو هغه یی د تل لەپاره‌شوه .
ما پخپله لیك وکړ او د هر ی پچی حدود می ولیکل . غرونــــه ،
رغونەاو ،ورشو ګانی هم پکی شاملی‌وی .

دپچی داچولو لەپاره ګل صا حب‌دګل صاحب زوی حضرت یوســف
(دی هغه وخت لسی کلن وه ) اوزه‌دهری پچی د پنځو پنځو مشرانوسره
دشاګو ملك کلاته ننوتلو نور خلك‌دباندی پاتی شول .

ماد شګی پەپنځو غونه اریو چی‌هر یویی د غتی ګو تی په اندازه‌ود
چاقوپه څوکه دهری پچی نوم‌ولیکی‌بیا پچی د ګل صاحب په ځولی کی
واچولی شــوی اود ده واړه زو ی‌حضرت یوسف یوه یو ه‌راپور تــه
کړه .دهری پچی دنمایند ګانو نه‌یویوتن د دیوال پر سر ناست و. د
باندی هم‌د هری پچی خلك بیل بیل‌ناست وو . دهر چا پچه به‌چی‌وختله
د دیوال دسر سړی به ډزی وکړی‌خلکو به‌چی ولیدل چی زمو نږ‌سړی
ډزی کوی نو پوه به شول چی‌زمونږ‌پچه وختله‌نودوی به‌هم‌په‌ډزوپیل‌وکړ
تردریوو پچوپوری البته ډزی‌وشوی‌د دریو لو مړیو پچو مشران چی
د کلادننه وود دوی خولی، لونګی ،څپلی او واسکټ د شرینی پەنــوم
چور شول او دوی هم بالمقابل داهرڅه‌په خندا او خوشحالی سره‌ور ـ
کول . تر پچواچولو وروسته د دووخرابو او وروستیو پچو مشران ډیر
خړ او متاثر وو .

دپچو اچولو نه وروسته د شا ګوملك (عبدا لمجید) څه ځمکه دولسس
څخه وغوښتله . کله چی داخواهش‌منظور نه شونو ږغ یی‌کړ چی زما
ویشس قطع نه دی .خو دری کا لــه‌وروسته بیافیصله وشوه چی ورو ـ
ستی ویش صحیح او قطعی دی .په‌ځینو حسابونو باندی چی لانجه ده‌په
هغو باندی (خسنی) و شو. خسنی‌هم یو ډول پچه اچول دی خوداړکی

(لرگی) وی چی ځینی اوړ دهاوځینییی لنډوی . په موټی کی داسی نیول کیږی چی ښکاره سرو نه یی سره سم بر یښی د چا چی اوږدهخسنی وخوت نو هغه لانجنه څمکه دهغوی شوله . »

اوسی وروسته له دی اوړ ده نقل قول څخه مونږ ته دویش پروسه څرگنده شوه . دا چی واړه ماموندلوی قوم دی او کلی او بانډی ییو دبل څخه په زیاته فاصله سره لیری دی نو کهدچا خپله پخوانی مینه په پچه کی ونه رسیدله نو مجبوردیچی خپلی نو ی پچی ته په کډه ولاړشی. له دی کبله بایده دی کورو نه هم پریښودل شی . دپخوانی دود لــه مخی د کورد دیوالونو د ختو پیسی نشته .یوازی په تیرونو او بشونو یعنی دکوړ دچت په لرگیو دوهکسهسره جوړ شی . یعنی دکوروداختلاف پهوخت کی د ښو او ډیرو لرگیوبدل بایده دی یا په لرگیو او یا پیسوسره مجبراشی .
اوکه په دی هم سره جوړ نهشولنوهر سړی دکوړ لرگی د خپل ځان سره وړی . همدغسی دونو او باغ قیمت نشته له دیکبله ده چی دویش پهوخت کی چانبه کورو نه او یابا غونهنه جوړ ول .

که چاځمکه خرڅه کړی وی نـوهغوته بیا ځمکه نه ورکوله کیږیخو دځمکی خرڅلاو دویښ په وخت کیډیر کم او داسی خلك چی ځمکــه ونه لری ډیر کم اوپه نشت حساب دی . (۱)

پهویشس کی د ځینو خلکو پچه ورکیږی . خوڼ هغ وخلکو پچهور - کیږی چی د شلو برخو (نیم بیړی )څجو ړولو پهوخت کییی ځوك دڅانه سره ونه نیسی . که چیری دا سیوشول نو کولای شی چی دکومقدرت خاوند ته ورشی او ملاتړ ییوغواړیزشوت هم ورکړ شوی دی .همدغسی روحانی پیر رکولای شی چی مدا خلهوکړی . خو کهد پچو اچولو تروخته پوری کوم اقدام و نشو نـــو د دیسړی پچه ورکه شوه او تربلهویشه

(۱) شریف او قاضی گل(معلومات ورکوونکی ).

پوري بهدر په در گرزي . په بـــلويشس کي که ملاتړ ورسره وشي نو دپيدا کيدو امکان يي زيات دی . دځمکي ورکيدل ډير کم دی او د ډير کمزوري سړي ځمکه ورکيږي .

دويشس ځمکه بدليد اي او را بدليداي شي . يعني داسي چي فرـ ضاديوه سړي ځمکه په مـروره کـي ورسيدله خو غواړي دبا جوړ په کومه سيمه کي و او سيږي . نودي کولای شي چي خپله ځمکه د هغه چاســره بدله کړي چي غواړي په مروره کـي واو سيږي .

ريسنر هم يادوي چي په ويشس کي کور ونه او کلي سره بدليد ل دي د راور تي لهمخي نقل قول کوي((٦٠ يا ٧٠کاله مخکي په سوات کي داسي عات و ( يعنـي دنـو نسمـي پيړي د پيل نه مخکي )چي ځمکهد مختلفو تپو ترمنځ وپشله کيدهيعنيپچه اچول کيده .اوس د تپو تـــر منځ پچه اچوله کيږي .
او يوازي هره تپه ويشس کو يهغه داسي دی : يو کلي دبل کلي سره په کلي او ځمکه پچي اچوي . وروسته بيا کندي د کندي سره پچه اچوي او کور دکور سره. کـه کورونه سره برابر وی خو ځــــه سختي نهلري او که نه نو بايده دي چي يوځه پيسي دهغه بنه کور ځښتن ته ور کړي اوکه په دی هم سره جوړ نهشول نو د کور دبام لرگي اووابنه ځني وړي او تشس تور ديوالو نـــه پاتي کيږي .» (١)

له دي ځخه معلو ميږي چــي پــه سوت اکي هم په ويش کي کورونه او کلي سره بدل شوي دی.خوپخپله راورتي دا خون درويزه په قول ليکي چي په سوات کي پخواني ويشس دخولي ويش و چي شيخ گــداي د اخون درويزه پلار ته په کي دديرشوتنوبرخه ورسيدله ددغسي نقل قول ځخه داسي معلوميږي چي د سوا تورروستي ويشو نه په نسبي سلسله

(١) ريسنـــــر ، ١٥١ او ١٥٢مخونه .

و واو دماموندو او سالار زو دویشس‌سره هیڅ توپیر نه‌لري . نو دازمونږ دپخوانی ادعا له‌پاره چی د ټولـــوقومونو ویشس په‌اول‌کی‌دخولی پـــه اساسس شوی وی یوپوخ دلیل دی.

دلته د دی امکان زیات دی چی په‌هغو قومونو کی چی نسبی ویشـــس لري په کوم وخت کی‌یی د خو لـــی‌وروستی ویشس معیار نیولی وی او وروسته له‌هغی یی نسبی ویشس ته‌اقدام کړی وی . یعنی دخولی پـــه وروستی ویشس چی معیار ګڼل‌شوی‌هر څو مره څمکه چی یوه خیل ته رسیدلی ده هغه د دوی برخه شو ه‌او بیانو د دوی خوښه ده چی‌ورو - سته په‌خوله ویشس کوی او که په‌نسب .خو د دی حقیقت له مخی چی په نسبی ویشس کی دخولی دویشس‌په‌نسبت دسر شمیر نی پرو ســـه کمیږی ، نو ښنا یی په ډیر وقبیلوکی‌نسبی ویش خوښس شوی وی او د سر شمیر نی د مشکلا تو څخه یی ځان خلاص کړی وی . په‌هر صو- رت مونږ ته پخپله و یش ز یـــات‌اهمیت لري او د نسبی او خولـــی ویشس ترمنځ دو مره توپیرهم‌نشته.ریسنر د دواړو ترمنځ دغه تو پیر کوی: (۱) (( ویش(نسبـی ویش)متناوب دی (۲) په ویشس کـی نـه یوازی څمکه سره بد لیږی بلکـــی‌کورونه ،باغونه او پالیزونه هم‌سره بدلیږی . (۳) وروستی ویشو نـــه‌همیشه په‌ټیټه سویه سره کیـدل ، پورتنی پوری به ورو په‌و رو دویشس‌څخه وتله او په‌پای کی به دکلی په سویه سره ویشس کیده )) (٤) مونږلکه څنګه چی مخکی مو وویل پـــه بڼیځو کی دویشس بر سیره‌اقتصا دی نابرابری (طبقات) موجو ددی . همدا ډول په مروتو، ددامان پـــه‌اوسیدو نکو یو سفزو او دبا جوړپه ســالار زو، اتمـــا نخـــیلـــــو او مومندو کی دویشس په وروستیو پړاوونو کی اقتصا دی نا برابر ی موجودی وی . د ښوراوك مثالمونږ لږ څه څرګند کړ .

---

(۱) ریسنر ۱۵۰ مخ . د شیګـل‌دشینوارو ویشس هم یوازی په کلی کي و . وګوري . دفیګل د شینوارووېشس .

خوپه عمومی توگه ویلای شو چې دویش په سیمو کی رو بنـایـی او فزیکی قدرت ورو ورو د اقتصادی قدرت سبب هم شوی دی. ددی لـه پاره چی نوموړی مساله پوره څر گنده شی ښواړو چی د ختیځی پښتنو دویشں ودوستیو وختونو ته یولوړ نظر واچوو .

په ختیځو پښتنو کی بر سیره پراولسی ځمکه چی ویشلـه کیده دانعام او څیری (خری) په نومو نو دخانانو، ملکا نو او رو حا نیونو ځمکی هم موجود ی وی چی دغه ډول ځمکی نه ویشلی کیدی . دوخت په تیریدو دا ډول ځمکی ورو ورو ډیر یدلی ا و همدا شان د جوما تونو ، مدرسوا و حجلی او قافو ځمکی دولسی ځمکوپه قیمت سره ډیری شوی . انعام د خانانو او ملکانو د ځمکو لویی ټوټی تشکیلوی چی زیاتره یی ښی او آبی ځمکی دی . همدغسی څیری هم لـه یوی خوانبی ځمکی دی او له بلی خوا ډیری دی .

دمثال په توگه دلویو مامونـــدوڅیری په لاندی ډول دی :

**دزگی سیری :**

دزگی بابا(سیری) ملا خوجل بابا ته چی ملاخیل دی ورکړه شوی ده. تقـــر یبــا څلــــو یښت تـر پنـځـوس خـروارهد (دړی*) (۱) په حساب تخم بهٔوی دا ځمکه للمی ده او شاو خوایی او لسی ځمکی پر تی دی . لکه دنورو سیریو په شان دا سیری هم د دریوو پچو ترمنځ وا قع ده . (۲)

---

(۱) دړی دکابل د سیر لس پاوه کیږی .وروسته له دی زمونږ د(من) مقصد همیشه دړی ده .

(۲) اکثرا سیری د دوویا ډیـروپچو ترمنځ واقع وی . دا کار دپخوا نه د دی له پاره شو یدی چی داولس ترمنځ په بریدونو او سر حداتـــــو باندی جگړواو لانجو مخه ونیول شی .

**دگټ پاچایانو (سیدانو سیری):** دگټ پاچایان دپیر بابا داولادی څخه دی. دپړو زو نیکه بابرخان داسیری تقریبا دوه سوه کاله پخوا ملا مومن ته ورکړه . دا ځمکه دیوسف خیلو په منځ کی پرته ده . تقریبا پنځه یا شپږ قلبی ځمکه ده چی یوه قلبه دری خرواره تخم کیږی .او للمی ده

**دگبری پاچا یانو سیری :**

نو موړی سیری د گبری په نوی کلی کی ده ،د دوی نیکه ته اولس ور کړیده اوڅلور خرواره تخم اخلی . ټوله آبی ده .

**دملا کلی سیری :**

دا سیری د ملاعبدالله بابا داولا دی ده . او دا سیری سالم دین خیلو ور کړیده دیرش خرواره تخم به وی. ډیره دمسود خیلو په منځ کی پرته ده اودسلیما نخیلو، بادین خیلو او خلوزوتر منځ پرته ده .

**دکیټکوټ دصا حبزاده گانوسیری:** دمسود خیلو په منځ کی پرته ده او دوه خرواره تخم به وی ځمکه یی آبی ده .

**دگواټی ملایانو سیری :د گواټی** ملایانو ته ورکړه شویده اود بادین خیلو او سلیما نخیلو ترمنځ پر ته ده. څلور ترپنځه خرواره تخم به وی تقریبا دریمه برخه یی داوبو لاند ی ده او نوره للمی ده .

**د ټوټی پاچا یانو سیری :**

دښار دریاست برم کاژو ، اوریاز واوسام دین خیلو ترمنځ پرته ده .تقریبا پنځلس خرواره تخم کیږی . زیا ته یی للمی او کمه یی آبی ده .

**دزوړ تنی میاگانو سیری :**

دوی دنور زاد دوا نی اولاده ده څه ځمکه برم خیلو ورکړی ده اوڅه نوره اولس ورکړی ده، ټوله به د څلویښتو خروارو تخم سره برابره وی . ډیر ښه غر او ورشو لری .

**داپوړی سیری :**

دوی داوری میازا من دی ، ځمکه اولس ورکړی ده . لس خرواره تخم به وی ټوله یی للمی ده .

برسيره پـردي ، كسبگر و اوملايانو تهيي دسره ځمكي ور كړ ي دى چي هغه هم نه ويشلي كيږي. نوپه دى ډول ډيره ځمكه داولسي ځمكي څخه دباندي پاتي كيږي چيپه حقوقي لحاظدخانانو ملكانوروحانيونو او كسبگرو خصو صي ملكيتدي (سرسي خوارو) كولاى شـول چي خپلي ځمكي خرڅي كړي او ياييگرو كړي . له دى كبله خانانو ، ملكانو او روحانيونو خپله غيرمنقولهشتمني په منقو له شتمنيسره بدلولاى شوه .

همدغسي خانانو او روحانيونو دحجرو او كورونو د جوړ ولو له پاره د ور شو او شريكو ځمكو څخـــهاستفاده كړي ده په دى ډول يي د ورشو زياتـه برخه د خـيل څـانملكيت گرزولي دى . د پيســو او اوسودا گري روا جيدل په كليو كيپهپاى كيد ځمكو خرڅلاو او گـــرو مسايل رامنځ ته كړي دى چيپه دىتوگه ډيرو خلكو خپلي ځمكي په يو اوبل ډول لهلاسه وركړي دى . له بلي خوا لكه په دامان اويا د شيگل پهشينوا ور كي اوهمد غسي په بـر يځو كي (ميرابچي د قومځمكهوكړي نوقوم تهيي ليكه يعني پنځمهوركوي)شريكي ځمكي غير قومي خـلـك او غيرى قــو مــى همسا يــه كـــريچي له دى خلكو نــه د حــا صــل لسمه برخه دقلنگ (۱) پهنوماخليچي پدى ترتيب د ځمكي ربحدويش په ځمكه باندى رواج مومي .

**دويش د قطع كيدو ياله منځهتلوعوامل**

دوخت په تيريدو سره د ځمكي دويش زوړ سيستم دنوى ټولنيز ـ اقتصــادى جوړښت اونوو توليــدىوســايـــلو دپـر مختگ پــه ليار كي خنډ كيده . دويش پـــــهوروستني موده كي پهويش دود كي

---

(۱) Akbar S. Ahmad د ځمكيربح ته قلنگ وايي . وروسته لهدى مونږ همنوموړى اصطلاح د ځمكيدربح لهپاره استعمالوو خو كه پهبل ډول نه وى تشريح شوى . وگورى

Akbar. S. Ahmad: Millinium and Charisma Among Pathans, Roustlege and Kegan pul. London, 1976.

دختیځ ټیپ قبیلوی فیوډا لیـــزم(خانخانی) مناسبات راپیدا شوی وو او نور نو زړو منـا سباتو د نــووسباتو په مقابل کی دمقاومت توان نه درلود نو له دی کبله ورو ورو هغـه‌وخت را ورسید چی زوړ ویشس‌دود ا وزاړه تولیدی مناسبات ماتیږ ی،ویشس له منځه ځی او خپل ځای په تاریخی لحاظ پر مختللی ته لنیـــزاقتصادی جوړ ښت ته پریږ دی .

دویش دله منځهٔ تنو دعواملو په‌برخه کی مختلفی نظر یی وړاند ی شوی دی چ ی‌له هغو څخه ځیــــنی‌مهمی یی دادی :

۱ــ د پښتنو سیمو ته د مرکز ی‌حکومتونو داداری سیستم را تگ او پهٔ ځمکه باندی مالیهٔ تړل .

۲ــ دکورونو او کلیو بدلیدل .

۳ــ د ځمکی نه‌خرڅلاو او یا گروکول .

٤ــ په ځمکه جدی کار نه‌کول.

٥ــ په نیول شوو ځمکو د گـــډقبیلوی ملکیت تثبیتیدل .

٦ــ دویشس په دوران کی په ځمکه‌شخړی لانجی .

۷ــ د خپلوانو هدیره پریښودل .

۱ــ کله چی په (۱۸۷٦) کال کی‌تور بورن دانگلیسی دو لت له‌خواد مروتو سیمی ته راغی نوویی لیدل‌چی دمروتو په ځینو خیلو نو کــی ویشس دود له منځه تللی‌و .دی‌پخپله‌هم دمروتو سیمی ته د دی‌له‌پاره‌را- غلی و چی په دوی باندی ما لیــه‌وتړی او ځمکی یی کاد ستر ته‌شا ملی کړی . دی وایی :

((کله چی مروت دری پیړی پخوادی سیمی ته را غلل او هغی ته یی دخپل قوم (مروت) نوم ورکړ، نــوخپل پخوانی عادت د (خوله ویشس ) یعنی دځمکی دورانی ویشس چی د هر خیل دخولو یعنی نفو سو په اساس ویشل کیدلی هم د ځانه سره‌راوړ . خود هند دمغلی‌حکومت‌درانیو

بار کزیو او سیکانو په وختونو کی دقوم دډیرو خیلونو ترمنځ دځمکی دورانی ویشس له منځه تللی دی . (۱)

په پښتنو باندی مرکزی حکومتونو دوه ډوله تاثیرات لرل . له یوی خوا یی د پښتنو بی تماسه ټولنه دخپلځانګړی ډینا میزم څخه را وایستله چی د کار په ویشس دود باندی هم بی تاثیره نه وو او له بلی خوا یی هغه هغه طبقاتی نطفی (زړی) چــی دویشس دود په سیستم کی را پیــدا شوی وو، هغی خوا ته تقویــهٔ کــړل چی د جاګیر داری د سیستم په خوا یی زور اچاوه . دمثال په توګــــه : اسلانوف (۲) هم دی ته اشاره کوی چی د پیر روښان نهضت اصلا یو بزګری نهضت و او علت یی داښیی چی د یوسفزو ، بنګښو اپریدو ا ونورو په اوارو سیمو میشت پښتنو کی د مغلی دربار (اکبر) له خواد جاګیر داری سیستم رامنځ ته شو .د دربار دوفا دارو ملکی لویومامورینوعسکری منصبدا رانو او محلــــی متنفذ ینو ته ددولت لـــه خـــواپـه اجاره ور کــول کیــد لـــی . ځمکی په حقیقت کی د هغو خلکو اویاقومونو وی چی دمرکزی دولت په ضد به راپور ته شوی وو .اویاداچی دقومونو اویا دقومونو دمشرانو د خپل منځنی تضاد ونو څخه ( پـــه دا خون در ویزه پـــه قو ل لیکی مشری او خانی باندی ) په استفادی سره دیوه خیل اویا قوم ځمکی کومی بلی قبیلی او یاخیل ته ور کړای شوی .مونږ په لـــو مــړ ی فصل کی یاده کړه چی په ختیځ دولتونو کی د ټولنی دغړو حقوق سم نه وو تثبیت شو ی پاچا چی ټول حقوق یوازی دده په شخص باندی را څرخیدل ، کولا ی یی شول چی د یوه فرد ، قوم او یـــااو لسس ځمکه ضبط کړی او کو م بل فرد قوم او یااولسس ته یی ور کړی.په دی ډول هر څو مره چــی د جا ګیر

1- Thorbuan Bannu or Our Afghan Frontier. London: Trabner and Co. 1876. p. 125.

(۲) اسلا نوف :دروښنا نیانو ملی نهضت ،دمحمد اکبر معتمد ژباړه . پښتو ټولنه ، ۱۳۵۳ .

داری دسیستم په واسطه ځمکې د دولت او یاد افرادو په لاس کې تمر
کز مونده په هماغه اندازې سره‌اصلي مولدین (بزگران) بې ځمکې
کیدل . پیر روښان غوښتل چې د خپل نهضت ترشا پښتانه ودروي‌او
خوار یکښو بزگرو ته ځمکه ور پلاس‌کړي . که‌څه هم مونږ دروښانیانو د
نهضت په‌هکله ځکه نه غږیږو چې‌زمونږ موضوع نه ده ، خو دومره به
بیځایه نه وي‌چې ووایو پر دی‌هکله‌دری نظریې موجو دي دی . لومړ ی
نظر وایي : چې‌دروښا نیانو نهضت(بزگری) دی . یعنی روښا نیانو په
ځمکه باندی بزگری ملکیت (خصو صي ملکیت ) غو ښت .اسلا نوف‌او
ریسنرپه‌دی‌نظردی. دویم ریسنریوبل‌نظرهم دامکان څخه لری نه‌گڼي‌دی
وایی‌چی رو ښا نیان او دهند مغلی‌حکومت یو دبل سره معاصر دی.
په دی و خت کې دپښتنوسیمو ته د جا گیر داری سیستم
رانقل کیږی. کله چی بزگران پـه‌زیاته پیمانه سره ځمکه بایلی ، نود
دوی مبارزه دویشس دود دبیا را منځ‌ته کولو او په هغو ځایونو کی چې
ویشس ضعیف شوی او یا تحر یف‌شوی ود بیا قوت موندلوله‌پاره‌روانه
ده .نو له‌دی کبله دروښا نیانـــونهضت نا ټیو یستي * (ناټیویزم‌د
محل داوسیدو نکوسره مرسته‌کول) بولی . دریم نظر دادی چـــې د
روښانیانو نهضت یوازی دیـنی اواخلاقی جنبی لری او له دی کبله ددی
وخت دنورو حرکتونو په شان یوازی‌یوصو فیا نه نهضت یی بللی شو.
په دی هکله زمونږ معلومات دو مره‌زیات نه دی خود انگلس څخه پـه
استناد سره دومره ویلای شو چی هر دینی نهضت هم خپل ترشـــا
طبقاتی گټې په نظر کی‌لری(۱) .

---

*. دناټیو یزم Nativism معنا داده : دنظری‌افکار واصـول د
یوی سیمی له اصلی اوسیدو نکـــوسره مرسته کول ستر انگلیسی ــ
فارسی قاموس ــ برو خیم تهـــران۲۵۱ مخ اصلانا تیو یزم هغه‌ټولنیز
نهضت دی چی یوشمیر ټولنی یی دخپلو محلی او قبیلوی کلتورو نو په
تائید د پردی کلتور مننی دفشار په‌مقابل کی دعکس العمل په توگـه
رامنځ ته کوی (داجتماعی علو مـو ډکشینـــــری ۱۹٦٤ ، ٦٥٨ مخ ــ
دادیتور ترجمه ).

(۱) انگلس:.ف دهقانی جنگ‌په‌جرمنی کی .

په هر صورت دهند د مغلي حکو مت د مرکزي اداري سره د جاګير -
داري سيستم ختيځي پښتو نخوا ته راځي چي د هغي په اساس کله ماليه
هم په جاګير کي ور کول کيږي چي په دواړو حالتونو کي ويشس دود د
زوال سره مخامخ کيږي .

له بلي خوا په قبيلوي سيستم کي که ويش مو جود و او که نه، خو ماليه
نه وه هغه وخت چي مر کزي حکومتونه راځي (که استعماري وی او که
ملي )ورسره ماليه ټړل کيږي . د ويشس په قبيلو کي دماليي ټـــړل
سخت کار و . ځکه د ماليي موظفين به تل ددي خنډ سره مخامخ کيدل
چي ماليه دچا په نوم وتړي . که ما ليه د قوم دمشر په نوم وتړله شوه نو
ځمکه هم وروسته د هغه شوه او که دټول قوم په نوم ماليه ټړل کيدله بيا
هم عملي نه وه . په ډيرو ځايونو کي داسي و شول چي دماليي څخه ډيرو
خلکو تيښته وکړه او ځمکه يي پر يښودله . زياتره دخانانو په نوم ماليه
وتړله شوه او ماليي ته پښتانه غم او ياتاوان وايي له دی کبله يي تاوا ن
او غم ته مخه نه ليدله او دځمکي څخه يي لاس وا خيست . نو دلته هم د
ويشس دود اود مرکزي دولت دما ليي ترمنځ تضاد موجود و .نومو ړی تضاد
دمرکزي فيو ډالي سيستم په ګټــه حل شو اودويشس دوددزاړه مناسبات
يي ړنګ او ياسست کړل . همدا علت وچي کله چي په ١٨٠٨ کال کـــي
الفنستون پيښور ته را غی په دغــه وخت کی په مندړو اود اواري سيمی
په نورو اوسيدو نکو قبايلو کی چي دمرکزي حکومت داداري لاندی يـــی
مالياتی سيستم خپل کړی وو يشس دودله منځه تللی و. له دی کبله دی
دسوات ديو سفزو د هغوسيمو يادونه کوی چي دمرکزي حکومت د لاند ی
نه دی راغلی (١)
همدا شان بارت (٢)وايي چي هغه وخت چي په ١٩٢٦ کال کی په سوات

---

(١) الفنستون : دکابل سلطنت په انګريزی ژبه .
(٢) بارت : دسوات په پښتنو کی سياسی زعامت (په انګريزی ژبه)

کي يو ډول مرکزي حکومت منځ ته راغی. * نو دسوات دباچا په حکم په ۱۹۲۹ کال کي دلته ويشس لــه منځه ولاړ . همدا سې کله چې تـور بورن مروتو ته راغي او په هغــوي باندي يي ماليه وتړله ،ويشــس دود قطع شو .

دلته ښايي دا سوال پيدا شي چي ولي په بهر ېخو کي بر سيره پر مرـ کزي حکو مت او يا ماليي تړ لو بيا هم و يش دود دوام وکړ ؟دافغا ـ نستان مر کزي حکو مت دما ليــي (مساله يا مو ضوع) ډيره سر سر ی حل کړه. په تيره بيا دښوراو ك د بهريخو سره داسې فيصله و شوه چي دوي به په کال کي يوسلو در ی او يا او ښان حکو مت او يامربوطو تاڼو ته ور کوي چي هغه به بهر يخو په ګډه سره تهيه کول .خوانګريزانو او يادسوا ت مر کزي حکو مت د موضوع فردي او حقو قي حل ته تر جيح ورکړه چي لدې کبله دويش زړې مو سسې و نه کړاي شو ل چي بر سيره پردې هم خپلې پښــــي ټينګې کړ اي شي .

داچي په هغوځايو نو کي چي هلته مر کزي حکو متو نه مو جود نه وو لکه باجوړ ،ولې و يش سقوط وکړ ، دو يش دمو سسې په خپل منځي اوځا نګړو فکتورونو پوري اړه لري. دو يش مو سسه ډيره زړ ه شوي او په منځ کې يې دا ســـــي عنا صر راپيداشوي وو چي ديو بل نوي او متر قي ټېکېاو زړې اونطفي وي . دغو عنا صرو دنوي تو لنې په ګټه وده کوله ، يعني ويش دود د توليد د مناسباتو او توليد ی قواوو دپر مختيا په مخکې خنډ کيده.لدې کبله بايده دې چې ړنګ شوي او

* دغه ډول دولت د همدې منبع په اساس په کال ۱۹۲۶ کي نه بلکې دکال ۱۹۱۷ څخه تر ۱۹۲۶ کـــال پوري موده کي منځ ته راغي او په ۱۹۲۶ کال کي هغه د هند دبرتانوي حکومت له خوا په رسميت وپيژند ل شو او پاچا ته يې دوالي لقب ور کړاو کالني معاشس يي هم ور ته مقرر کړ . (۱۲۷ـ ۲۸ مخونه ـاديتور) .

خپل ځای یی یوی نوی تو لنی ته پریښی‌وای * هغه فکتو رونه یـــا عوا مل چی دو یش دود په دا خلي جوړ ښت کی دو یش دود له منځه تلوسبب‌شول په‌لا ندی ډو ل یی ښودلای شو .

**۲ ـ دکورونو او کلیو بدلیدل :**

په ما موندو ، سالار زو ، ا و یوسفزو کی به دویش نه‌ورو سته کورونه او کلی هم سره بد لید ل. دا ځکه چی دو یش ساحه‌به‌لویه‌وه اونوی‌ځمکی پالنه به‌د پخوانی کور ځخه‌نه‌شوه کیدای . یواز ی په‌هغه وخت کی به‌کورونه نه بدلید ل چی‌کوم خیل ته به خپله پخوانی ځمکه بیاپه‌پچه کی ور ورسیدله .دکورونو او کلیو دبدلیدو له پاره یوه‌آسانتیا مو جوده وه او هغه دا چی ددیوالونو دختو پیسی نه‌وی. یوازی د لر گو محاسبه به‌کیدله . که چیر ی د دوو کور نیو لرگی به‌تصاد فی مساوی وختل نو کورونه به‌سره بدل شو ل او که دیوه لوری لرگی به ډیر اویا ښه‌وو نو بایده‌و چی دډیر وا لـــی او ښه وا لی سر باری یی ځښتن‌ته ور کړ شوی وای . او که په‌سرباری به هم سره جوړ نه‌شو ل ، نو هـر خو ك مجبورو چی خپل لر گی د ځانه سره نوی مینی ته یو سی.دا کار د دوو ستو نزو نه خا لی نه و لومړ ی دا چی دختو پیسی نه‌وی‌یعنی یوه او پنځه کو تی دمثال په‌تو گه‌سره یو شی وی، تو هیڅا ښـــه کو رو نه نه جوړول . یواز ی د گوزاری کور به جوړ یده چی تربله ویشه پور ی مو قتی پکـــــــی‌واو سیږی. په د ی هر خـــو ك پو هیږی چی داکار د خلکودښکلاا‌و هنری استعداد سره مخالف‌و.له بلی خوا په صحی او روا نی لحاظ‌هم دمنلوړ نه‌و. دو هم دکوردلرگیو وړل په زیاته فاصله سره ورو ورو یو ډیر خو رو نکی کار گرځیده.په دی ډول به دو یش په دوران کی‌د کار ډیر ی‌ور ځی بی مو جبه‌ضایع

---

* دغه فکتور یعنی دمر کز ی حکو متونو داداری سیستم را تگ او په‌ځمکه باندی مالیه تړ ل دویش‌دود له منځه تلو یو خار جی فکتور یاعا مل بلل کیږی اودانور یـــــی‌دا خلي فکتورونه دي چې ورو سته يي بيان راځي . اديټوړ .

کیدلی . البته دځمکی بد لولوامکان و دمثال‌په توګه:که دیوه‌سړی‌برخه
په‌مروره کی‌ور سیده اودد ښمنی له‌کبله یی‌غوښتل چی‌په‌باجوړ کی
واو سیږ ی نو کولا ی یی شو ل چی‌خپله برخه ځمکه د هغه چا سره
بدله کړی چی غو ښتل یی‌په‌مروره کی‌واوسیږی.

### ٣- په ځمکه کارنه‌کول :

له‌یوه‌ویش څخه تر بل و یشـــ پور ی به دهری بر خی خلکو خپله
ځمکه موقتی ګټله . دزیات باران‌له امله به‌ځینی ځمکی خو ړو نو ا و
سیلا بو نوو ړلی . که دچا ځمکه به پداسی‌و خت کی سیلاب یو وړه‌چی
دویش نیټه به‌رانیژ دی وه اوکه‌یا دویش‌نیټه‌به‌لری هم وه خو برخه-
وال به پرته له دی او بووړی ځمکی نوره ځمکه دکر نی له پاره لر له .
نو دایی ښه ګټله چی ویجاړه ځمکه بیرته آباده نه‌کړی. ځکه ډیرامکان
یی ددی و چی په بل و یش کی دا ځمکه بل چاته ورسیږ ی اویاداچی
هیچا ته ورنه‌کړه شی. نو په‌و یش کی ډیری آباد ی ځمکی شـــا ړی
کیدلی او ځمکه په عمو می لحـــاظ کمیدله .دا ځمکی دګډ ملکیت‌له‌کبله
هیچا په‌ځا نګړ ی ډول دشا ړ و او یادو یجاړو ځمکو دآبادو لو سره
علاقه نه در لوده.

له‌بلی خوا دونو اوبا غ پیسی‌به نه‌ور کول کید لی. له دی امله‌هیچا
هڅه نه کو له چی میوه لرو نکی‌و نی کښینوی او یاښکلی با غچی جو ړی
کړی. او هغه وخت چی ویش بــــه رانژ دی کیده نو ځمکی ته به یی
زیاته‌سره نه‌ور کوله .په‌نتیجه کی په‌ځمکه باندی کارنه‌کیده . دا ټول
ددی سبب شول چی دتولیدپه‌عمومی‌سطحه کی ټیټوالی راشی .

### ٤- دځمکی نه خرڅول او یا نه ګروکول:

لکه چی موږ پخوا هم وو یل چی دو یش په صور ت کی په ځمکـــــه
باندی دوه ډوله ملکیت مو جودو.له یوی خوا په‌بز ګر (قبیلی‌غړ ی )د
ځمکی څخه استفا ده کوله اودده په‌لاس کی به‌وه خو له بلی خوا پـــــه
حقو قی لحاظ سره ځمکه دبز ګـــــر ملکیت‌نه‌و . په ډیرو قبیلو کی به

ځمکه نهشوه خرڅیدلای اوپه ځینو قبیلو کی حتی گرو کیدای هم نهشوه (۱) کهڅه هم دکر نی په دوره کی ځمکه دتولید یواز ینی وسیله ده اود ځمکی څښتن به دځینو اړ تیاوو له کبله مجبوریده چی خپله بر خه ځمکه خر څه کړی خوددی کاروا ك به ورسره نهو .د ځمکی دنه خرڅلاو دستو نز وڅخه دقبیلی ځینی غړی تنگ شوی وو اود ځمکی دقطعی ویش غوښتنه یی کوله چی دخصو صی ملکیت په صورت کی کهیو شخصو غواړ ی چی خپله برخه خرڅه کړی، نو دخرڅولو واك یی خپل وی.

خو لهبلی خوا په پښتنو کی د فرد در ناو ی او وقار(پرستیژ) د ځمکی په در لود لو کی دی.همداسی کهدیوی قبیلی او یا خیل غړ ی وغواړ ی چی خپله ځمکه خر څه کړی‌نو نهشی کولای چی دخپل اویا قبیلی څخه دباندی یی ور کړ ی . همداسی قبیله او خیل فکرکوی چی دځمکی په خرڅو لو کی کمزوری‌ده. ځکه هغه څوك چی ځمکه‌نه‌لری هغه مجبور دی چی دپښتو نوا لی‌دځینی کورونو له( اصولو) له امله دبل چا همسایه او بز گر شی . دلته‌له‌یوی خوا دقبیلی دمتهو زور (فز یکی قدر ت) کمیږ ی او له بلی خوا د قبیلی دغړ ی مو قف راټیټیږ ی‌یعنی

---

(۱) یواز ی په مروتو کی ځمکه‌گرو کیدای نه شوه او که نه په ماموندو ، سالا رزو ، دشیگل په شینوارو کی ځمکه دیوه ټا کلی وخت له پاره دمثال په تو گه دشلو کالو په موده گرو کیدای شوه . وگوری ایفالور نس ، ویش.همداسی تور بور ن بنو او یاز مو ږ افغانی سرحد. په‌انگریزی ژ به .

داسي چي همسايه‌و ګړی اوبـــي قبيلي خلك نه شي كولا ى چي په جرګه‌كي بر خه‌واخلي او هر څه ور باندي تحميلېږ ى (١) له دی كبله ده چي پښتنا نه نه غوا ړ ى چي ځمكه خرڅه كړی.

دو يش په صور ت كي هم له دی امله دځمكي په نه خرڅلاو ټينګا ر شويدی . څرنګه چي په‌ځمكه‌پوری سيالي‌اوپرستيژهم‌تړلی‌دی .له د ى كبله‌داسي تلفا ت هم كيږ ی چي ځمكه خرڅول بدعمل دی او څو ك چي‌ځمكه خرڅوی هغه بی غير تــه دی . ددا سي تلفاتو په‌و جه دباجوړ په‌پښتنو كي او نه‌يواز ی په با جوړ كی بلكي په ټو لو پښتنو كي‌دځمكي ياخاوری مفهو م (خاوره كله دو طن‌په مفهوم هم استعمالېږ ی)دنا موس سره يوشی ګڼي اوله دی كــبــله‌د ځمكي خرڅلاو دپلار د ښځو كـــــي دخر څولو سره يوشی ګڼي .

لكه چي دپښتنو د مرګ‌اوژوبلي دوا ټعاتو څخه معلو مېږ ی تر ټولو زيا ت دښځو او په‌تيره‌دځمكي‌پـــه لانجو او شخړو سره‌وژ ني(٢) . د باجوړ د خلكو يوه مقوله چي موږ‌ته وويله شوه داسي‌ده :

((كه سړی ناروغ شي ، نودمال‌پو ستكي ور ته اغوستل كيږ ی او كه‌ځمكه ناروغه شي نودســـــړ ی پوستكي ور ته اغوستل كيږی)).

نو كه له يوی خوا دقبيلي نادارو خلكو داړ تياوو (واده ، مړ ينی ، دښمني او نور) له مخي غوښتل‌چي‌خپله ځمكه خرڅه كړی له بلي خوا دقبيلي پيسه لرو نكو خلكو چي د تجار ت او ياد اضا في ارزش دځان

---

(١) وګوری : بارت ف : دسوات په‌پښتنو كي سياسي ز عامت.

٢ــوګوری څلورم فصل دهمد ی كتاب.

ته‌کولو له در که به‌یی پیسی لرلی غوښتل چی دغه ځمکی واخلی. دواړو خواوو دویش په زوا ل کی خپلــه گټه لیدله او له دی امله‌یی‌په‌قطعی ویش‌باندی زور اچاوه.

### ٥ ـ په‌نیول شوو ځمکو د گــډقبیلوی ملکیت تثبیت:

لکه‌چی مخکی ورته اشاره شویده ترکانو دگیگیانو ځخه پرا خه‌سیمه په‌زور و نیوله او تر .ډیر ی مود ی پوری گیگیانو دا هڅه کو له چـــی خپله ځمکه له‌ترکانو څخه بیر تــه په‌زور و نیسی . داد ترکا نو دود دی ، کله چی هغوی دنورو قبیلو څخه په‌زور ځمکه‌نیو لی ده اومقا بل لوری به‌یی قوی‌و ،ددی له پاره چی دنیول شوی ځمکی دفاع ټو له‌قبیله په‌گډه وکړ ی ،دوی دغه ځمکه د ټولو خیلونو تر منځ و خت په‌و خت ویشلی ده (١) تر کا نی پو هید ل چی که چیر ی په لو مړ نیو وختونو کی دوی دنیول شوی ځمکی‌و یش قطع کړی وای نو بیا به هرخیل د ټولی نیول شوی ځمکی په ځــــا ی یوازی دخیل خیل دځمکی د فا ع کولا ی او پدی‌صورت‌کی شړل‌شوو گگیانو ته‌آسانه وه چی دټو لـــــی قبیلی په‌ځای په‌یویو خیل‌یر غل وکړی او نیول شوی ځمکه په زور بیرته ور څخه و نیسی.

دوخت په تیر یدو په‌نیول شــوو ځمکو دترکانو دگډ ملکیت حقــو ق تثبیت شو ل .ځکه چی شړ ل شوو قبیلو دخپلوځمکو دبیرته نیو لو له هڅوڅخه لاس‌واخیست . دشلمی پیړی په‌نیمایی کی په‌ترکانو کی د

(١) داتمانخیلو اودنبار خا ن تر منځ دسکندرو ځمکه یی بنه مثا ل دی.

شاو خوا قبیلو تر منځ دخصو صی ملکیت اودسیاسی اغیزو په‌و جـــه دخصو صی ملکیت رو حیه پیاو ړی شوه‌چی په نتیجه کی ځینو خیلو نو اوځینو کسانو دځمکی دقطعـــــــی(نهایی)ویش غوښتنه پیل کړه(۱)

## ٦ـ دو یش په دوران کی پـــه ځمکه شخړی:

لکه چی مخکی ور ته اشاره‌وشوه په ما موندو کی یوازی ولسی‌ځمکه دخیلونو تر منځو یشله کیده ،خودانعام او سیری په نــو مو نـو د، ملکانو او روحا نیو نو ځمکی نـــه ویشلی کیدی اودما مو ندو دزاړ ه دود له مخی به دهرو یش په‌و خت کی ملکانو او روحانیونو نوری‌ځمکی هم دو یش څخه غوښتلی چی دد ی دود له مخی دو لس‌ځمکه لږ یدله‌او بر عکس دملکانو او روحا نیو نو ځمکه‌ډیر یدله . که دو یش‌په‌وخت کی‌به‌و لس د ملکانو اوروحانیو نو غوښتنو ته مثبت ځوا ب ورنه کړ، نودو یش په دوران کی به‌دملکا نو، روحانیونو او اولس تر منځ شخړی منځته راتللی . همدا شان‌که چیری به‌په‌و یش کی یو خیل ته خرابـــه ځمکه په پچه ور سیدله نو دد غــه خیل مشرانو به‌په آسانه و یش ته غاړه نه ایښود له. له‌بلی خوا پـــه ویش کی دیوی‌کورنی دپچی ورکیدل همد خیلونو او کور نیو تر منـــځ‌شخړی پیدا کولی (۲).

---

۱ـ دقاضی گل او شریف‌پـــه حواله.

۲ـ دقاضی گل او شریف پـــه حواله.

**٧ـ هد يره :**

دپښتنو ددود له مخې ددو ی د مړو هد يره تل ددوی دکليو ا و کورونو سره نژ دی وی. دو يش په سيستم کی چی کلی به سره بدليدل اوديو کلی او سيدو نکی به بـــل لری گــلی ته تلـــــل ، د مـــړو دهد يری مسا له هم يو ډول ستو نزه وه ځکه چی پښتانه په اخترو نو او نورو ور ځو کی دخپلو پلرو نـــو هد يری ته ځی او له بلی خواغواړی چی خپل مړی يودبل تر څنګ ښخ کړی. داهم يو له هغو فکتورو نـــو څخه دی چی دو يش په قطع کيدو کی څه ناڅه برخه لری (١).



١ ـ دقاضی ګل او شر يف په حواله.

# اسیایی ټولنې د علمي تیوري

## د افکارو په هنداره کې

په مخکي فصل کي موکو ښښ وکړ چي دختيځ دتو لید دړو ل په رڼا کي دپښتنو ټو لنه وخیړ وا و وگو رو چي دويش مو سسه دد ی تولید دړول سره څه اړیکی لري . څه چي موږ دلته زیاتول غوا ړودادی چي: دقبیلو ی او یاد مر کزیقدرت دکار ساز ما ن په ختيځ کي څه ډول او څرنگه تنظيم شویدی .

مارکس هغه‌و خت چي د هندو ستان په‌ټولنه باندی غږیږی وایي: ((یو کلی په جغرا فیا یی لحاظسره په‌نظر کی نیسو چي سل یا ز ر ایکړه آباده یا شاړه ځمکه یي‌ساحه‌تشکیلوی. دغه کلی یوه ښاری‌کور- پو راسیو ن(اتحاد یی) تهور ته‌دی چي ادار ی پر سو نل یی څو تنه تشکیلوی. Potial (پیټل)اویااصلي او سیدو نکی چي‌دکلی سر پرستي کوی اود کلی دخلکو تر منځ‌لانجي حل کوی ، مالیه ټولوی اودپولیسو وظیفه اجرا کوی . بل Kurnum کورنم دی چي دزراعتي‌محا سبي او زراعتي کارونو سره سر و کـــار لری‌بیانوورپسی Tollier او Totie

راځي دلومړ ی کار که دادی چی د جرایمو مخه و نیسي او مسا فـر لهیوه کلي څخه بل کلي ته بدر گه کوي، نوددو هم کار دادی چی :د فصل محافظت وکړ ی او سمـــــه محاسبه یي جوته کړی . یو بل تن دکلي سر حدا ت سا تي اوپه دعوا کي شا هد ی ور کوی. بل هممیراب دی چی: داو بو دو یش او ویا لو سر پرستي کوی . بر همن دد ین او مقد ساتو و ظیفه په غاړ ه لر ی دکلي معلم د کلي ماشوما نو ته په شگو کي لیکل او لوستل ورزده کوی. له دغوپور تنیو اداره چیا نو څخه چی پهځینو ځایو نو کي بنایي زیات خو بیا پهځینو نورو کي یوازی یو تن وی .(څمکه دتو لو و ظا یـــف دده پهو جود کي راتول شوی وی) دکلي اداره جوړ یږ ی ... که کلي ړنگیږ ی اوکه آبادیږ ی خواقتصاد یی تغییر نه کوی (١)....»

مارکس دلته په دی اوږده اقتباس کیچی دبر تانیي دشورا دراپور څخه یی کوی یوه ډیره مهمه خبره کوی. دی وایي چی که هر څه کیږی یعنی دیوه حاکم پرځای بل را ځي او یا کلي دکوم مصیبت له امله وران شی خو اقتصاد یی تغیر نه کوی . په بل ځای کي مار کس هغه و ختچی د Prakapitalistisch (دکاپیتا لیزم نه مخکي فور ما سیو نو نو) تحلیل کوی دآسیا په باب دا سي وایي:

دخلکوگډ (اشترا کي) یاقبیلو ي ژو ند ... ددو ی دگډی ژ بـــــی، عاداتو او دو دو نو لهکبله دی ... څمکه ددوی لوی لابرا توار دی چی هم دکار و سایل، داو سیدو ځا ی اود کار افزار تول ور پکي دیاوددي گډ(مشترك) ژو ند لهپاره شرطدی. دغه مشترك ژو ند په ژو ندیکارکي member تولید اوبیاتولیدیږ ی . هر یوځای ددی گډ ژو ند غړ ی بو لی یعنی مالك او یاڅښتن پـــــه حقیقت کي ملکیت او څښتن وا لی دکار په واسطه دد غو شرا یطـــو لاندی صور ت نیسي چی طبیعی او

---

(1) K. Marx Die Britishe Herrschaft in Indien London 1953-9 M Marx.Engels Ausgewahlke were in 6Bd. S.440 verlag Marxist siche Blatter, Frank Furt/n.

یا ازلی بریښی . دغه شکل(فورم) چی دهمد غو مناسبا تو لاندی وی کیدای شی په مختلفو ډولو نوسره عملی شی .دمثا ل په‌توګه، په ډیرو ختیځو آسیایی فور مو نو کی یـو مرکزی وا حد مو جود دی چی‌دټولو ګډو کوچنیو واحدو نو دپاسه‌واقع شوی چی په حقیقت کی د ټو لـــو مالک بریښی اولا ند نی واحدو نه یواز ی دځمکی ځخه استفا ده‌کوی..

کوچنی وا حدو نه نه دی پاسنـــی اتحاد (مستبد) کی خپل ځان بیرته موندلی شی ... نو اضا فی تولید Surplus Product چی د کار په‌واسطه تولیدشوی‌وی ، له دی امله د مستبد دی .په‌آسیا یـــی استبداد او بی ملکیتی کی چی په‌حقو قی لحاظ موجوده ده په‌حقیقت کی دقبیلوی ملکیت اساس دی چی‌دمانو فکتور (صنعت)* او زراعــت دیوځای وا لی ځخه په کلی تو ګه منځته‌کیږ ی او Self-Sustaining (ایله‌ځان ساتنه) اود اضافی‌تولید ټول شرایط په‌ځان کی را غو نــډ وی (۱).

دمارکس دغه اوږد اقتبا س یوازی‌ددی ارتباط له پاره‌و چی (( په‌آسیا کی استبداد او بی ملکیتی چی په حقوقی لحاظ مو جوده ده په حقیقت کی دقبیلوی ملکیت اساس دی چی دصنعت (مانو فکتور) او زرا عت دیوځای وا لی ځخه په‌کلی کی را منځته کیږ ی ، اود اضا فــــی او مجدد تولید ټول شرایط په ځان کی‌راغونډ وی)) . دمار کس مقصد دادی چی په آسیا کی مجدد تو لید که‌ځه هم اضا فی تو لیـــــــد (دمستبد کنټرول ته‌لویږ ی) پکی شا مل دی. خو دصنعت او زراعت دیوځای وا لی له‌کبله په هما غـــه پخوا نی شکل او صور ت سر ه بیر ته تولیدیږ ی : له دی کبله‌دی‌خو کرښی وروسته وایی چی :

---

۱ ـ ك. مارکس دسیا ســـی‌اقتصاد د انتقاد اساسا ت‌دایتزو ـ پرلاګ، بر لین ۳۷۵ مخ .

*دلته منظور لاسی صنعت دی‌نه ماشینی .ځکه په دی پړ او کی لا دماشینی صنعت او تولید خبر ی‌وجودنه‌لری . اوما نو فکتور هما غه دانګریز ی Manu-facture دی چی معنایی جوړول جعل کو ل تو لیدول دي چي ترټولو مناسبه‌يي همدغه دصنعت کلمه بريښي.اديتور

((آسیایی فورم ترټولو زیات ټینګ دی »(١) او هغه شرایط په ځان کی ئەلری چی لکه دروم او یو نا ن په شان خپل قبیلوی فورم ړ نګ اود مرییتو ب او یافیو ډالیز م و خواته انکشاف وکړ ی .ددی معنا دادهچی په ختین کی هغه عوا مل چیو بل فورم ته ددی اساسی فورم دترقی سبب کیږ ی یاکم دی اویاداچـــی حرکت یی ډیر ځنډن دی ،داځنډ ن حرکت ټول له دی کبله دی چـــی زراعت او صنعت دیوبل ســـره تړلی دی.

نو موړی اشترا کیوا حدو نهیو دبل تر څنګ په هما غه پخوا نـــی ډول سره ژو ند کوی . او هرڅوك دخپلی کورنی سره ځا نته کار کوی چی ددی څخه داشترا کی وا حد او جګړ ي او نورو مشترکو کارو نوله پاره هم نه تیریږ ی . اویا کیدا ی شی چی مشترك وا حد په مشترك کارکی دیوهسیستم په ډول ځـــان جوت کړی لکه پهمکسیکو او پیرو کلتو اوځینو هندی قومو نو کی .لهبلی خوا کیدای شی چیاشتراکیت یی دمشر ی پهکوز کی او یادکورنیو دمشرانو دارتباط پهواسطه څرګند شی . چی ددی اختلا ف له مخـــی یا استبداد ی او یادمو کرا تیـــك فورم اشترا کی واحد را منځتـــه کوی . داشترا کیت شرایطد کارپه واسطه لکه داوبو ، دکانا لو نو (دآسیایی ملکونو له پاره ډیر داهمیت ورړدی) او مواصلا تی وسایلدپاسنی واحدو ظیفه ده چی د کوچنیوواحدو نو دپاسه استبداد ی حکو مـــــت تشکیلوی (٢).

مارکس پدی ارتباط کی دا هم څرګندوی چی پهسلاوی ( ختیځـــه اروپا) کی دغه اساسی فور مداسی تنظیم لری چی بیګار ی حاکمیت یعنی فیو ډالیز م ته انکشا ف کوی.خود آسیا پهباب وا یی چـــی نوموړی فور م ډیر ټینګ دی ا وانتقا لی او تیر یدو نکی(ګذ ر ی) دوره یی ډیره اوږ ده ده . زمو ږ د مقصد له پاره دلته همدا کفا یت کوی

---

١ ـ همدا ما خذ ٣٨٦ مخ .

٢ ـ همدا ماخذ ٣٧٧ مخ.

و ګوری مارکس :دانګریزا نـــو حاکمیت په هندو ستان کی.همماغه ځای.

چې صنعت او زراعت یو د بل سره تړلي دي او د مجدد تولید
Reproduction
Surpius Product په هماغه پخواني صورت سره او اضافي تولید
د مشترکو کارونو د پای او یاد پاسني واحد (مستبد) له پاره صورت نیسي
چې هغه یې البته یا د ګډو (مشترکو) کارونو له پاره او یاد خپل بر م ،
عظمت او جنګ له پاره استعمالوي . د کار دا ډول اجتماعي سازمان په
تیره د کرنې کارونه ( د ویالو او کانالونو کیندل په زیاته فاصله
سره) چې د پاسني واحد کار د یوې ډیره بیروکراسي او تنظیم غواړي.
مار کس د هندوستان په باره کې هم دغو ته اشاره کوي او وایي چې
انګریزانو په هندوستان کې د کرنې کارونو ته پام و نه کړ او څکه یې
ونه شو ل کولای چې هندوستان موړ کړي او له همدې کبله ده چې
هلته دلوږ ی زیات مصیبتو نه د دوی د حاکمیت سره راپیدا شول (۱)

د پښتنو تولنه دی اساسي فورم ته هم په قبیلوي او هم په مر کزي
جوړ ښت کې بیخي ور ته ده . څکه له یوې خوا که مر کز یت را غلی دی
نو د بلې خوا دی مر کز یت په پښتنو باندې دو مره زور ی اغیزې نه دی
اچولي چې د قبیلوي جوړ ښت اساسي ستنې یې نړولي وي. د عربو
نه نیولې تر احمدشاه پورې تو لو حکو متونو د پښتنو قبا یلو سره دا
چلند در لود چې ور سره د ملکو نو (هندوستان) په فتح کولو کې برخه
واخلي او څه ناڅه و لجې دوی ته هم ور کړي خو د قبایلو د دا خلي جوړښت
سره په دی حکو متو نو غر ض نه کاوه . څکه نو ریسنر هم دې خبرې
ته اشاره کوي او وایي چې (( احمد شاه د پښتنو قبایلو د مشرا نو په
څنګ کې د primu inter Peares (لومړی د برابرو تر منځ)* مو قف
در لود (۲).

---

۱ــ وګورئ مارکس :دانګریزانو حاکمیت په هندو ستان کې. هماغه
ځای.

۲ــ میر غلام محمد غبار: افغا نستان در مسیر تاریخ، کابل ۱۳۴۶
(۱۹۶۷) ۳۵۴ مخ.

همد غسی تر احمد شاه د مخه میرویس خان چی حتی بیخی یـــی ځان پاچا هم ندی نو مو لی دپښتنودملی مشر په نوم راولاړ شو یدی.

هغه‌و خت چی احمد شاه دنا در افشار دمر ګ څخه ورو ستـــه سلطنت ته‌رسیږ ی نو دی دپښتنو نورو افغانی قبایلو دخانانوله‌خوا انتخابیږی(١) لښکر یی په زیا ته‌انداز ه سره دقو می جاګیر دار ی نو کرانو څخه د(ایلجار ی) غیـــرمنظمو ټو لیو په څیر جوړ شویدی. منظم عسکر یواز ی شپاړ س ز ره‌تنه دی. ورو ورو احمدشاه هڅه‌کوی چی دغیر منظمو عسکرو یا ایلجاری‌پرځای چی دپښتنو قبا یلو څخـه راځی منظم عسکر زیا ت او پدی‌ډول‌دی وکړ‌ای شی چی مرکزی‌حکومت ته یو مستقل او منظم پو ځ برا برکړ ی چی دضرور ت په‌و خت(هغه وخت چی کو مه قبیله او یادقبیلی‌کوم مشر بغاوت کوی) نوددی‌منظم پو ځ په‌واسطه یی مخنیوی وکړی.احمدشاه او هغه پاچا هان چی ترده وروسته راځی دټولو زیاته‌تو جه وجنګ او غنیمت ته ده. که‌څه هم په کر نه کی تر احمدشاه د مخـــه‌دجاګیر قلبه سیستم را منځتـــه شوی و خو دتولید اود کار په‌ساز مان کی داسی څرګند تغییر نه و راغلی . دجاګیر د قلبی سیستـــم‌داحمدشاه په‌و خت کی زیا ت پر- مختګ وکړ اوپه تیره ابدا لیا نوته ت جاګیرو نه ور کړ ل شول.

---

* منظور دادی چی ګواکی احمد شاه دنورو پښتنو مشرانو سر ه، مساو ی او ړ‌برابر مو قف در لوداونور کوم تو پیر او امتیاز لکه‌دهغوی تر منځ چی نه‌و، ده هم نه‌درلود ، یواز ی دو مره لوړی ده ته حاصله وه چی دی ددغو مساو ی اوبرابرومشرانو لو مړی در جه مشر با له کیده. ادیتور .

١ ـ و ګور ی ریسنر په افغا نستا ن کی دفیو ډالیز م راولاړیدل مسکو ١٣٥٤ مخ .

جاګیر قلبه دو مره زیا ته ځمکه‌نه‌وه بلکی یواز ی دیوی قلبی‌غوایانو په‌واسطه کر ل کیدای شوه چــــی‌نو کر(۱) اود هقانانو به‌کر له. خو له‌بلی خوا هغه ځمکی چی‌دقبیلی اوقو م مشرانو ته ور کول کیدلی (۲) زیا تی اود اجار ی او بیګار په‌شکل‌کر ل کیدلی . په ځینو و ختونوکی مالیه‌هم په جاګیر کی ور کول‌کیدله.همد غسی دقو مو نو دارستوکراسی ځخه به ما لیه نه اخیستل کید له‌اویادا چی ډیره کمه به‌وه( کیدا ی شی چی دا هم یو علت‌و ی چی د خانانو له خوا پنځه و یشت‌کلـــــن احمدشاه په پا چا هی و منل‌شو).

دنو کر او جاګیر قلبه موسسات‌زموږ دانظر تقو یه کوی چی‌دوا ړو دملا تړ دو یش ځخه پرا ختیـــــامو ندلی ده ځکه په‌و یش کی بـــــه ځینو همسایه خیلونو او یا افرادوته دملا تړ دځمکی (ددفا ع اونیولو په خا طر) ځمکی ور کول کیدلی‌چی‌هغه به دو یش ځخه وتلی وی. جان زیر کیار هم په خپلو ځیړ نو کی‌په‌دی مفکور ه دی چی دهند د مغلو او صفویانو دفیو ډا لی محیط په ځنګ‌کی په‌پای کی د پښتنو په‌ټو لنه کی ورو ورو خوار او غر یب ، بادار اونا دار راپیدا شو ل دوی دوا ړ ه داحمدشاه ددو لت شو کی(لوټولو)کر کترو دی ته مسوبوی چی د پښتنو دټو لنی داخلی مبارز ه یی‌ددی نو ی پر مختیاسره حتمی او ضرور ی ملګری وه دباندې (هندو ستان) و خوا ته په‌و لجو راټولولو ته ور متو جه‌کړ. دپښتنو ټو لنه‌چی‌دو یش په مو سسه کی‌په‌برابر ی باندی‌ولاړه وه په‌زیاتو قبیلو کی یی‌دخانی او نو کری ( دجاګیر دا ری له امله چی دباند نی نفــوذیـــــا (Diffusion) پــه نتیــجــه کـــی ر ا منځــته شــو ی و ) مو سسا ت راپیداشول. اوزراعتی

---

۱ ـ داحمدشاه بابا غیر منظمـوعسکرو ته‌به یی نو کرو یل .

۲ـ و ګوری: جان زیر کیاررحمت‌ربی:(قبیلوی ټو لنه ملی دو لت او ارید نتیسم دپښتو نستا ن دمسالی‌په مثال کی دډاکتر ی تیز س پـــه آلمانی ژبه ۱۹۷۸ دبر لین‌پوهنتون.

اضا في تولید چې دو یش په‌حالت کې به دګډو کارونو (ویالي‌کینند ل جنګ او نورو له پاره استعمالیده خصنو صی شکل ومونند. خـــود مار کس دویناسره سم هره نو ی ټولنه دزړی ټولني عا دات، رسوم او عنعنات د خپل ځـــان سره‌وړی، پښتنی زړ ی ټو لنی ډیراشترا کی مو تسسا ت دتولید په دی نوی ډول کی‌و ساتل چی له دی کبله‌دپښتنو په‌زیاتو قبیلو کی چی په ځینـــــو کی‌یی حتی و یش هم‌نه‌و زرا عت او صنعت (کسب) یودبل سره‌تړ لی‌پاتی شو ل . له دی امله‌موږدمارکس هغه‌وینا بیر ته په‌یاد راوړو چی د هندو ستا ن دکلیو اداره یی بو لی او په مدرنه انترو پالوجی‌کی ور ته‌دجماني سیستم نوم ایښود لشوی دی.

دجماني سیستم هما غـــــــه‌د هندو ستا ن دکلي اداره ده چې هر څوك یو کار کوی او ټول دځمکو د حاصلا تو څخه ځانو نه سا تي. (خپل ژو ند تا مینوی) یعنی داسی چی پښ، یوم ،سپاره او جغ (یوغ) جوړوی او ترکاڼ یی د لرګی کـــارکوی اوکیدای‌شی چی دواړه‌کسبونه په‌یوه شخص کی سره را ټول‌شوی وی(۱) هم دخلکو سرو نه‌او ږیر ی خریي ، جالوا ن خلك په او بــــو پوری باسی .ملا دلمانځه اما مـــت کوی اود کلي کوچنیانو ته قرآ ن وایي او بز ګر ځمکه کری .دا چی دتولید مهمه‌و سیله ځمکه ده ، نو ټول کسبګر د فصل په‌و خت کی د حاصل خپله ټاکلي بر خه‌اخلی. یعنی هرڅوك دکر نی دتولیدا تو له پاره کار کوی او هریوه خپله بر خه د کرنی دمحصولا تو څخه اخلي چی‌د پښتنو په مختلفو قبیلو کی‌ځانګړی نومو نه لری..په‌ځینو کی د غـــی برخي ته اړه (کنړ) په ځینو نو رو کی ور ته خپل مسلکی نو مو نـــه اخلي لکه ډمګری، پــښ ګــری او نور . دو یش په تطور او تکا مل کی لیدل کیږ ی چی ورو ورو دپښتنو ټو لنه دبرابریو څخه وطبقاتي‌ټولنی ته اوړ ی. که دو یش نه پخوا به‌دتولید محصول دقبیلي دغړو ترمنځ ویشل کیده نو په ویش کی کاراو ځمکه داو لس غړو تر منځ و یشل

---

۱ ـ لکه په‌پکتیا کې چې ډ م د ډولو هلو او نایي‌توب دواړه وظیفي اجراکوي . دغه شان په‌کونړ کې‌هم‌دروز ګر او پښ دواړه په‌یوه‌شخص کې تمر کز مونډلي شي .

کیږی (۱) د پښتنو دټولنی د غـه لړی دویش په سیستم کی پـــوره جو ته ده . داسی چی زمو ږ په نظر لومړ ی خو له و یش،اوورو ستنه ملاتړ او نسبی ،ویش دو یشـــــی تکا ملی پړاو نه وی چی دپښتنـــو ټولنه برابریو څخه دنسبی نابرابریو(فیو ډالیزم ) (۲) و خواته بیایی. البته دلته یوه داسی تو لنه دفیو ډالیستی تکا مل و خواته درو می چی مر کز ی قدرت یا هیڅ نه لری او یا یی تاثیره دی چی د فرا نسو ی ټولنپوه دور کها یم له نظره ورته ټوټه ییزه ټو لنه SegmentrySociety (۳) ویلای شو .

دکریستیا ن زیگریستا له مخې داډول ټولنی بی سره * Acephalues چی دمر کزی دو لت تو لنی دی . مقصد داچی مر کز ی قدرت(پولیس قضا او نور) نشته او یادا ,چی په نوم شته خو قبیله دمرکزی حقو قو او قوا نینو څخه کارنه اخلی بلکی پرځای یی د خپلو ابتدایی حـقوقو عاداتو او دو دو نو څخه استفا ده کوی لا کن دا ډول ټولنی کیـــدای شی پر برابریو (مساواتو) ولاړی نه وی . خو تجر به داسی ده چـــی نو موړی تو لنی په زیاته اندازه د برابریو سیستمو نه تشکیلوی . برابری دلته دقبیلی دغړو تر منـــځ چی یو کولکتیو تشکیلوی موجوددی. مساوا ت په یو شانوا لی کی دی . له دی کبله مساوی موقف دقبیلی په دننه کی دمشر توب دمو قف سره ضدیت نه پیداکوی . دیوه خیل مشر فردی حاکمیت نه چلوی بلکی په عمو می صور ت دخیل په نوم عمل کوی . دا ارتباط ځکه مهم دی چی که څه هم دمشر تو ب کر کتـــر ا نتقـا لـــی د ی خـــو له بـلـی خـــو ا کـــو لا ی شــو

---

۱ــ و گوری رحمت ربی،جان زیر کیار :هماغه ماخذ ،٦١١ مخ.

۲ــ دفیو ډالیزم د منځته راتګ اوتثبیت له پاره ځینی نور عوا مل چی خار جی کرکتر لری هم داهمیت وړدی موږ دلته یوازی جاگیر اونعـام ته اشاره کوو .

۳ــ وگوری ع :

Christian Sigrist: Regnlierte Anarchie

په پخوانیو فصلونو کی زموږ تیسز دغه وو .

*هغه ټولنی چی د مرکزی دولت زعامت نه لری ،ادیتور .

چې لدی امله دحاکمیت مفهوم په طبقاتي لحا ظسره وکړو(۱) .

ددی ډول تولنو تحلیل پـــه وروستیو و ختونو کی داستعماراو غیر ملي استعمار لا ندی وی، زیات اهمیت پیداکړیدی . په‌تیره بیا پــه گینی‌بیساو کی هلته چی‌انقــلا بی روښانفکرانو وکړ ای شو ل چی د پر تگال داستعمار نه څان خلا ص کړی اوټول ملت چی دتولید ی‌منا- سباتو په‌یوه ټیټه سطحه کی یـــی ژو ندکاوه ، داستعمار ی دښمن‌پر ضد په‌و سله سمبال کړی اودخپل ضد استعمار ی نهضت‌سره‌انقلا بی مترقی اهدا ف وټر ی دنورو ملکونو داجتما عی تحلیل له پاره دزیا ت اهمیت ور دی. په‌گینی‌بیساو کی دوه ډوله‌تولنیز جوړ ښتو نـــه موجودو یو یی دفول (full) تو لنه‌و ه چی نوموړ ی قـــو م‌د داسلام ددین پیروا ن او خپـــل قومی مشرا ن‌در لود ل .بیادد ی په خلاف دبالنتی (Balante) قوم اینمیست * Animist او هیڅ‌ډو ل مشران یی نه‌در لودل او یاداچی که دجر گی سیستم هم موجودو خو رول یی غو څ نـــه‌بریښیده. څمکه دقوم ترمنځ‌شریکه وه .دفول دتولنی او یانو روقومونو په نسبت چی مشرا ن یی‌درلود ل او حاکمیت‌یی قبول‌کړی ودبالنتـــی‌قوم بیا ډیرژر د پر دی حا کمـــیت په مقابل کی ملاوتړ له ، حال داچی دفول دمشرانو له‌یوی خواداستعمار چیانو سره راشه درشه‌و ه او لـــه بلی‌خواچی خپل‌حاکمیت یی‌پیژا نده نودپرد ی حاکمیت په مقابل کی‌هم دو مره حساس نه‌وو تر څو وړو،

---

(1) Christian sigrist: gcsell schaften obne staat und die E mtdeck um gen der social in fritz kramer und christian sigrist led.) Anthropology. gesellsch aftenobne steat syndikate 1978, Fron kfurt m.p, 43,44,

* Animism انیمزم‌یوه داسی‌عقیده‌ده چی د هغی په اساس دطبیعت تول شیان روح لرونکی دی او رو ح په‌مجرد او جلا ډول و جودنه لری . دو هم ـ دمړو په اروا حونو عقیده‌لرل (فرهنگ بزرگـ انگلیسی بـه فارسی ۱ـ۲۴۳ م) چی دلته‌نومو ړی‌قوم دهمد ی ډول عقیدی درلودو ـ نکی قوم دی . ادیتور

ورو دملی آزاد ی دلرلو په خو ند پوه شو ل اودپردیو په مقابل کـی راپاڅیدل .

دساده او ابتدایي ټولنو د بـــی توپیره او یوځه پاکیزه جوړښتونو سره دو ګړو دمو کرا تیکه روحیه اود برابری غوښتني( مساوا ت ـ طلبي) نه ډ ك ذهنیت تقابل کو ی. زموږ مقصد دادی چی ډیر ی ابتدایي ټو لني چې دتولیدي قواوو ، ا و تولیدی مناسبا تو په یوه ټیټـــــه سطح کې ژ و ندکوی اودبرا بر ی تجر به لری، ډیر ژر کیدای شي چې دمتر قي تیور ی له پاره دیو ی سمي ر هبری لا ندی و ګټهل شي.

په وروستیوو ختو نوکی اوپه زیاته اندازه هم ددی له پاره چی په مترقی تیوری کی یوه وا حده لا ره وښود له شی ،دانظر تقو یه شوی و چې مارکس او انګلس دآسیادتولید دډول څخه په او لوو ختو نو کـــی یادو نه هم ځای په ځای را غلی ده او دوی له بلی خوا دآسیا په با ب په هغه وخت کی دو مره معلو ما ت نه درلودل نو په آسیاکی هم فیو ډالیز م دی. موږ به دلته دمار کس دلیك څخــه چی په ۱۸۸۳ کال کی (۱) یی
vera zasulic
(۲) ته لیږلی دی هم څه نه وا یو ،ځکه چی هلته دروسیی څخه خبری کوی. خو مونږ پوره خبر یو چی دمار کس او انګلس تر منځ دکارو یش موجود و. په تیره بیا هغه وخت چی مارکس دکاپیټال په لیکلو بو خت شو ، نو فلسفه او بشر شنا سی او ځای په ځای نور کارونه یی انګلس تــــه پریښود ل.په انګلس باندی لکه چی دی په خپله لیکی(۳) په ۱۸۷۷ کال کی دآلما ن دسو سیال دموکرا ت له خوا فشار راو ړل شو چـــــی د Duhring دتیوری په مقا بل کی چی (( سیاست او قدر ت زیر ـ بنایي حیثیت لری او اقتصاد ی منا سبات دسیاسی منا سبا تو ، بـــه

---

(1) brief an vera zasulic MEW,Bd 38, S. Diete

۲ـ په ۱۸۸۳ کال مارکس مـړ شویدی.

۳ ـو ګوری مقد مه

Drietz verlag berlin anti duhring MEW, bd. 20, p.6.

او ټبتون کی تغییر کوی)) څه ولیکی انگلس ددی تیور ی په مقابل کی د
آلمان دسو سیا ل دمو کرات گوندد "vorwurts" اخبارته د
Anti Duhring ترعنوان لاندی مقالی و لیکلی چی په ۱۸۷۸-
کال کی دکتاب په شکل راوو ت . نوموړ ی کتاب دانگلس دمر گ نه
دوه کاله مخکی بیاپه ۱۸۹۴ کـــی ددریم ځل له پاره دچاپ څخه راووت
پدی وار انگلس اصلا حا ت هم پکی راو ستی وو اوځینی ځایو نه یی ور
زیا ت کړی وو . انگلس دلته هـــمویلی دی چی :(( داډیر آسان کار
دی چی دغلا می (مریی توب) په هکله په عمو میاتو کی ورسیږو او هغه د
یوی لو یی شر مندگی پـه څیـــــر وغندو . خو څه به وکړو بی له دی
چی وواېو چی دلرغونی نړی موسسات زموږ دننی عصر داحساسا تو او
ارز ښتونو سره برابرنه دی. خــو سره ددی بیا هم مونږ نه پو هیږ و
چی نو موړی مــو سسات څـــنگـــه منځته راغلل ... او په تاریخ کی یی
څه رول لوبولی دی . او که چیر ی وغوا ړو چی دغه ځانته معلوم کړ و
که څه هم ډیر متضاد اودشیطا نی نه ډك بر یښی ، مجبور یو وواېو چی
مریی توب په هغو شرایطو کی یوستر پرمختگ و. نن ور ځ دایووا قعیت
دی چی انسان دحیوانیت نه پیل کړی او بربری حتی حیوانی و سایلو ته
ته یی ضرورت پیدا شو یدی څوځان دبر بریت څخه راو باسی .

په هغوځا یونو کی په کومو کی چی لرغونی اشترا کی فور مو نه
پاتی شو ل ، دزر گو نو کالونو را پدی خوا د ختیځ استبــــــــد ا د ی
(orlentalische dispotismus) اسا س تشکیلوی اودهندوستان نه تر
رو سیی پوری ملکو نه یی نیو لی دی .خو بیا هلته چی منحل شو ل
(لرغونی اشترا کی فور مو نه ) ، ملتونو و کړای شو ل چی په خپل
زورسره پرمخ ولا ړ شی اودد و ی پر مختگ اود تولیدزیا توا لی د

مريانو دکار پهواسطه تر ســــــره شو (۱) »

انگلس په همدې ليکنه کې پــه ځوځو وار ی په همدې مفهوم سره دآسيايي ټولنو څخه يا دونه کوي. همد غسې مارکس دسياسي‌اقتصاد دانتقاد په اساساتو کې يو فصــل په هغوجوړښتونو، فور ما سيو نو باندې ليکي چې دکاپيټاليز م څخه مخکې دي. نودغه مفهوم يواز ی د ځو بی ار تبا طو ليکو نو سره تړلې ندی اود تاريخي شوا هدو څخــه او س موږ ته معلومه شوه چې‌دعلمي نړی ليد مو سسينو دآسياپه‌با ب ځانگړی فکر در لود . خو ددې‌ټولو نه زمو ږ مقصد يواز ی دا شی دی چې له يوې خوا هره ټو لنه‌په‌عمومي او کلي ډول سره تحليل کيدای‌شي. خو ددې نه مهمه داده چې په‌مشخص ډول سره تحليل شي چې‌د علمـــــي مشخص تحليل په نتيجه کې ، د طبقاتو دريځ اود هرې طبقې انقلابي او غير انقلا بي رسالت پوره څرگند شي اودزياتو اشتباهاتو څخه ځا ن وژغورو.



(1) F. Engels, Anti-Duhrin in MEW, Bd. 20, p. 168 dietz verlag Berlin. 1971.

# تولید او توزیع په پښتنو کی

## اول ـ ایکالوژی اود ځمکــو نو عیت.

## دانګام ، ګربز او ښو را وك :

دکونړ ولایت شمال ته د اسمار ولسوا لی ختیځ ته په تنګه دره‌کی ددانګام په‌نوم‌علاقه دار ی ددانګا م په کلی کی‌پرته ده اودعلا قدار ی ا و اسمار تر منځ فاصله پنځلس کیلو متره ده. دلویدیځ(اسمار) له خوا دختیځ په لور دره په ما یله تو ګه پورته‌کیږ ی چی په‌تو له دره کی د دانګام دکلی شاو خوا بر خه‌دتوری دری په‌تناسبد ځمکی پرا ختیـــا ډیره لری. دلویدیځ نه‌پر ته د دری له دریو خواوو څخه غرو نه راتا و شویدی . شما ل ته‌یی هسك‌غرونه ختیځ او جنوب ختیځ ته جندو ل، جنوب او جنوب ختیځ‌ته باجوړ او لویدیځ ته‌یی اسمار پروت دی .د غرو نو په‌سرو نو دنښترو (ارچه) او په لمنوکی یی دځیړ یو(بلوط) ځنګلونه دی.

ددانګام دکلی جنو بی لور ته د ګوریګا دره ده .ددی‌دری په‌وروستنی برخه کی دلوی ګوریګا کلی دی‌اوله دی‌ځای څخه لویدیځی خوا ته‌دباجوړ ما موندو برامد ك او جنوب ته د سالار زو بر سدین ته غرنی لیار ی تللی دی. ددانګام دکلی څخه‌دختیځ په‌لور پنځه کیلو متری کی لو یه‌دره د(خارا) او (قاسم) په نو مو نـــوجنوب ختیځ او شمال ختیځ ته په دوو تنګو درو و یشل کیږ ی .د خارا دری په پای‌کی دجنوب خواته د(لیتی) کنډو دی اوددی کنډو له‌لار ی دخارا او سیدو نکی برسدین

او باجوړ ته تګ راتګ کوی . د ق اسم دری په‌وروستی بر خه کی‌د قاسم کلی پروت دی اوددی کلی ختیځ ته د(نبشی) کنډو دی اوددی کنډوله‌لار ی ددانګام خلك دجندو ل برول کلی ته‌چی دمشوانو تاتو بی دی ښکته کیږی. دشمال په خـــوا کنډوو نه اود تګ راتګ لیار ی نشته. ددی برخی غرونه جګ دی او یواز ی‌شپانه د خپلورموسره د غرو نوپه‌څوکو تیریږ ی‌راتیریږی.

دخارا او قاسم له درو څخــــه دلویدیځ په لور خوړو نه را ځی او ددانګام دختیځ په‌پنځه کیلومتری‌کی سره یوځای کیږ ی اود لویدیځ په لوربهیږ ی.دد ا نګام څخه دو ه کیلو متره په‌لویدیځه بر خه کی ورسره دګوریګا خوړ یوځای کیږی‌او اسمار ته راځی اود اسمار د ولسوا لی په لویدیزه بر خه کی‌دکونړ لوی سین ته ور ګډ یږی .

ددانګام په خوړ کی دپسر لی اود برسات دبارانونو په مو سمو نوکی او به ډیر ی‌وی او تر اسمـــــــار پوری بهیږ ی . په اوړ ی او منی‌کی بارانونه یالږ وی او یاته کـیږی‌او پدی فصلونو کی او به لږی وی او بز ګر خپلی ځمکی دخو ړو نو د زیم او چینو په او بو خړوبوی.کوم کال چی په غرو نو پوره واور ه ، واوریږی‌ددری چینی بهانده وی او کوم کال چی په غرو نوواو ره لـږ پریوزی او یاونه شی دخوړ د چینو اوبه یالږ وی اویاچینی وچی وی.

ددانګام دخو ړونو شاو خوا ،د خلکو کورونه ،کلی اودکر ځمکـــی پر تی دی چی دایکالوژ ی له مخی‌د نفو سو په‌تناسب ددی ځای ځمکه ډیره کمه ده اودهو لو وکړودخوراك له‌پاره بسیانه کوی (۱) همدا علت

---

۱ـ موږ ز یار و ایست چـــــی‌د اسمار دمالیی دما مور یت ، ا و احصایی دما موریت څخه دځمکـــو او نفو سو احصا یی لاس ته‌راو ړو چی دسړی په سر څو مره ځمکـــه رسیږ ی .څرګنده شوه چی‌دمالیی اواحصایی معلو ما ت کره نه و ځکه چی دلته اکثره ځمکی په عر فــــ ی قبالو یاپه شفا هی تو ګه‌خرڅیږی او ډیری ځمکی مالیه نه لری.له‌بلی خوا په کو مو ځمکو چی مالیه تړ ل‌شو یده اصلی ځمکه او ما لیه هم فرق کوی . په قباله کی دلږی‌مالیی ور کولو په خا طر دځمکی اصلی اندازه لږه ښودل شویده .

دی چی د دری داو سیدو نکو څـه برخه دکار له پاره دافغا نستا ن ښارونو ته ځی. په دره کی آ بی،للمی‌او کار ینی ځمکی وجود لری.
ښوراو ك دایکالوژ ی په لحاظ یو ه شگلنه (ریگزاره) سیمه ده چی‌شمال ته‌یی اخکزی ،سپین بو لد کا و بلوڅ ، لویدیځ ته دریگ علا قـه داری (بلو څ)، ختیځ او جنو ب ته یی دبلوچستا ن سر حدی سیمـی دی. دسپین بو لدك څخه په شگلنه سیمه کی چی په للمی ډول کر لی کیږ ی ، دریگ په غونډ یو اوټیټو غرو نو باندی دښوراو ك په لور سرك تللی دی(۱).
دښوراو ك تر منځ یو خوړ چـی دوی یی لوړه بو لی تیریږ ی . لکه چی مځکی مو هم‌څرگنده کړ یده تقر یبا شپیته کاله پخوانښو راو ك آبی‌ځمکه وه او که یو من تخم ب ه‌وکرل شو شل منه حاصل به یی ورکاوه. خو وروسته‌کله‌چی‌دسرحد ته په‌پښین کی دخو شد ل خان‌بند وتړل شو نو بیاښو راو ك ته‌یوازی سیلا بی او به راتلی او ځمکی یی یو فصله شوی .دد ی سیلا بـی او بو له پاره کله چی‌دافغانستا ن دسر حدڅخه وز ی په نیشکی کی‌یو بل بند و تړل شو . په ۱۳۵٤ کال کی دښو راوك دځمکو دخړوبو لوپاره د پنځه شپیته ژو رو ځا گانو دکیندلو سر شته و نیول شوه . کله‌چی انجنیرانو د تمدن نه په یوه لیری ځای کی او په مشکلاتو سره دوه ځاهان و ایستل نود هغوسرونه یی‌پټ کړل او ویی ویل چی یـــو کا میاب او بل یی ناکـــام دی . کامیاب ته به موږ واټر پمپ راوړو.وروسته له هغه نه کامیاب ته واټر پمپ راوړ ل شو او نه دناکام ځاه پوښتنه‌و شوه چی په رښتیا سـره ناکام و او که یه ؟
په هر صور ت ښوراو ك‌دایکا لوژ ی اودځمکی دنو عیت له کبله یوه ډیره حاصلخیزه منطقه خو یی‌او بو ده . په‌ټول ښو راو ك کی‌حتی

۱ ــ موا صلا تی ارتبا طدښوراوك په‌لاره دو مره‌سست دی چـــی څوارلسمه او کله هم دیر شمه‌ور ځ کوم موټر دپوستی دمو ټر په نوم ښو راوك ته درو می.له دی‌کبله د ښو راو ك اکثر ارتباط له‌کو یټـی (کوټی) سره دی.

لس و نی نشته. ز ما په عقیده سره د تبخیر اندازه په کال کی ۵ یره.
زیاته ده او لدی کبله خلکو د خنباك داو بو له پاره لوی ډنډو نه ( ناور)
جوړ کړیدی.

د بنوراو ك خلك ورو ستته له دی چی ځمکی یی للمی شو ی، په زیاته
اندازه کوینی (کوتی) ته و لاړ ل او هلته په کار او سوداګری بوخت دی.

اوس د بنوراو ك په سیمه کی د پخوا په پرتله ډیر کم بړیخی او سیږ ی.
د ګربزو سیمه دخو ست جنو ب ته دخو ست دشمل دغاړ ی نه پیل او د
وزیرستا ن تر سر حد پور ی پر ته ده. دشمل دغاړ ی ګربز په آ بی
ځمکه پراته او دشمل دخوړ او یا د کاریزو نو او به یی په خپلو ځمکو
برابری کړ ی دی. دشمل دغاړ ی وروسته دجنو ب او جنوب ختیځ
لور ته دګر بز و صحرا پیل کیږ ی چی بیا دختیځ و خواته دتودی چینی
دره او ږده تللی او په سرکی یی دتودی چینی ګلی دی. دتودی چینی
په ختګ دلویدیځ لور ته دباړ ی په امتد ا د تر منبی کلی پوری
وړی او لویی غونډ ی پر تی دی چی کوچنی خو ړو نه یی دلویدیځ خواو
ته بهو لی دی. دباړ ی په بر ختګ کی دانځر کی دره د ګربزود صحرا
په لور را پری شوی ده. دانځر کی دری بری خواته د لیږی دره ده چی
د مغلګی تر سر حده پوری امتداد لری.

هغه ګربز چی په صحرا کی او سیږ ی ځمکی یی نسبتا زیا تی
او للمی دی. دو ی خپلی ځمکی دسیلاب داوبو په وا سطه خړوبوی
چی دخو ړو نو نه یی بندو نه او ویا لی ورت ه خیږولی دی.

دغرو نو اوسیدو نکی لږ ځمکی لری او ځمکی یی دخو ړو نو په
بهانده او بو او یا دجوړ (ډنډ) په واسطه چی ګربز یی خیلر بو لی اوبه
کوی.

دایکالوژی په لحاظ ددانګام ، او ګربزو دغر نیو سیمو دځمکو نو عیت
یوشان دی. دګر بزو ځینی ځمکی دخوست جنوبی لور ته په اواره
پر تی دی چی دغه شا ن په اواره پرتی ځمکی ددانګام په غر نیوبر خو
کی نه لیدلی کیږی. ددانګمام او بنو راو ك ځمکی هم یو تربلـه د
جوړ بنست او ایکالوژ ی له پلوه ، مشابهت نه لری بلکی دبنوراو ك

دځمکو ور ته‌والی دګر بزو داوارو ځمکو سره ليدل‌کيږی . د دری واړو سيمو ځمکی موږ په‌آبی‌اوللمی‌ځمکو و يشلای شو .

## ۱ -آبی ځمکی :

آبی‌ځمکی په مصنو عی تو ګه د ويا لو او لښتيو په‌واسطه‌خړوبيږی دابی ځمکو او به بهانده‌وی چی د بارانونو او سيلاو نو په‌و ختونوکی بی‌واره وی او په نو روو ختونوکی په‌وارځمکه خړوبيږی. دګر بز و او دانګام ځينی ځمکی دو يالوپه‌ځای دڼدو نو داو بو په‌واسطــــــــه خړو بيږی.ټو لی آ بی ځمکی‌يوشان ندی. په دانګام او ګر بزو کی هغه ځمکی چی خاوره يی ډيره‌وی او د شاو خوا غرو نو ځخه ورته‌سيلاونه خړه راوړ ی داشان‌ځمکی آ با دی‌وی اود ښو ځمکو په‌کتګور ی کی راځی.

دښوراو ك اوګربزو هغه ځمکی چی داو بو سر بندو نو ته‌نژ د ی پر تی دی ښی ځمکی ګڼلی کيږی.په دانګام او ګر بزو کی هغه ځمکی‌چی دغرو نو په‌لمنو کی يادخو ړو نوپه غاړه پر تی دی دسيلا وو نو اوبارا- نونو په‌و ختونوکی يی‌خاوره وړ له کيږی او په ځمکه دسيلاو نو له کبله شګه يا کاړ پريوز ی چی پـــــه محلی اصطلاح داسی ځمکو تـــــــه کاړ ينه ياشګلنه ځمکه‌و يل‌کيږ ی. په‌ښوراوك کی هغه‌ځمکی چی د سر بند ځخه‌ليری‌وی او يا‌ښوره ولر ی دوی ور ته ښوره ناکه خرابه‌ځمکه وايی.

په عمو می تو ګه په دانګام ، اوګر بزو کی آبی‌ځمکی دوه فصله‌دی. په‌ښو راو ك کی داوبو دکمښت له‌کبله يو فصله دی او يوازی غنم او اور بشی په کی کرل کيږی. په‌دوه فصله‌ځمکو کی په منی دغنمو ، او اور بشو کرکيږ ی اود ثور پـــــه‌مياشت کی په دری وا ړو سيمو کی دورځو په لږ تفاوت ريبل کيـــږی. دوی دجوزا په‌ورو ستيو ور ځو کی جوار ياشو لی کری اود سنبلی په‌پای کی يی ريبی. په منځنی تو ګه ښی ځمکی په‌يو جريب شپيته منه‌غنم ، اتيا منه اور بشی، شپيته‌منه جوار او شپيته منه‌شو لی حا صل‌ور کوی .په ښو راو ك کی‌تراو سه ويش رواج لری . دو يش ځمکه نه‌شی خرڅيدلا ی . سره له دی چی

په دانګام او ګر بزو کی خصو صی ملکیت و جود لری خو ډیر لږ خلك دځمکی خرڅلاو ته آماده کیږ ی . په و روستیو ختونو کی چی ځمکی خر څی شویدی دښی ځمکی د یـو جریب منځنی بیه اویازره او دخرابی ځمکی دیوجریب بیه څلو یښت زره افغانی دی.

**۲ ـ للمی ځمکی :**

په دری واړو سیمو کی للمی ځمکی شته . دللمی ځمکو اندازه پـــه ښو راو ك کی ډیره ده اودد انګام په تناسب په ګر بزو کی للمی ځمکی ډیری دی . للمی ځمکی جاری او به نه لری او په طبیعی تو ګه په بارانونو او بــه کیــږ ی . للمی ځمــکــی پــه منی کــی کــر لــــی کیږ ی . اویوفصل غنم یااور بشی حا صل کوی. په اورنده (بارانی) کال کی د ځمکو حاصل ښه و ی اوډ للمی او آبی ځمکو حاصل تقر یبا برابروی. په و چکالی کی حاصل یاډیر لږ وی او یافصل بیخی سوز ی دا بـــی ځمکو غو ندی للمی ځمکی هم ښی او خرابی ځمکی لری.

**۳ـ کارینی ځمکی :**

کارین په ګر بزو او ښوراوك کی وجودنه لری او یوازی ددانګام اود کونړ د نورو سیمو خاصه ده کارین اکثره په غرو نو کی جوړیږ ی .د یوه کلی خلك په ګډه سره یا یوه کورنی دغره په داسی بر خو کی چی تیږ ی یی په خاوره بدلی شوی وی ددغو بر خو ځنګلی و نی یـــا بوټی پری کوی او یا ور ته او ر اچوی او دکر نی پټی په کی جوړوی. دکارین پټی د هر غره د شرایطوله مخی په مایل ډول جوړیږی. کارین هم په دوه ډوله دی چی یو ډول یی آبی دی چی دغرونو دچینو دډندونـو په اوبو خړ و بیږی . په غـــرونوکـی دچینو د بها نـده او بـــو څخه ډنډو نه جوړ یږ ی . او به ډنډ ته راروانی وی او څه و خت چی ډنډ ډك شی بیایی ځمکی ته رااپله کوی. بل ډول کار ینونه للمی دی. داواری دځمکو په پرتله دکارین په پټیو کی یوی کول تکلیف غوا ړ ی . کـه ځمکه ما یله وی نو یوی ور باندی کیدای شی او که دښکته نه پور ته مایله ځمکه څه ناڅه نیغه پرته وی نو پداسی کارین کی یوی نه کیږی او خلك یی په لاسی و سایلوسره یوی کوی . داوار ی ځمکی بر عکس

دبارانونو پهوخت کی دکارین دځمکی خاوره او بهوړی اودو خت په
تیر یدو کار پهکی زیاتیږی. کارین بی خاوری کیږی او پهپای کی شاړ
پاتی کیږی.

دکارین حا صلات د آبی اوللمی ځمکو پهپرتله لږ دی.

بز گران آ بی او للمی ځمکو تـه حیوانی سره ورکوی اوخلورکلونه ،
کیږی چی ځینی بز گرا نکیمیاوی سره هم استعمالوی . دبز گرو د
تجر بی له مخی په کو مه ځمکهچی شو لی و کر لی شی شو لی د غه
ځمکه خواروی اود راتلو نکی فصل لهپاره پهکی دبل فصل دقوت مواد
نهپاتی کیږی . پدغه شا ن ځمکـو شو تله یا رشکه کرل کیږی، پوره
حیوانی سره ور کوی او تر څلو رو راتلو نکو کلونو پور ی دغه ځمکه
ښه فصل کوی.

داوار ی ځمکی پټی دیو بل څخهدپولو اود غرنیو سیمو پټی دبار ی
(دتیږو نه جوړو ړوکی دیوا لونه)په واسطه دیوبل څخه جلاکیږ ی . که
دمو قعیت په لحاظ ځمکه اواره اوپراخه وی پهکی لوی پټیجوړیږ ی
اودغه شان پټی تهپه محلیاصطلاح (گربز اودانگامی) ډنډه وایی .

**دهقانی منا سبات :**

مخکی مو یادو نه و کړه چـــی دو یش دزوال نه وروسته ورو ورو
دپښتنو پهټو لنه کی خواراوغر یب بی ځمکو دهقانان اود ځمکوخښتنان
راپیداشو ل . دگډ مالکیت پر ځای خصو صی مالکیت ټینگ شو . په
تیره بیا په هغه ځایو نو کی چیډ پخوا را هیسی دخانی سیستم اویا
ددو لتی جاگیر سیستمو نهرا منځ تهشویوو د ملکیت مناسبا تویوډول
فیو ډالیز م تهلوړ تیا ومو نده چیدخپلوی عاطفی ، فز یکی قدر ت ،
بیگار، او استثمار څخه اوبه خوری. داډول فیو ډالیز م همټینگ دیځکه
داستثمار په مقابل کی دنمک خوریاو روبنایی برابری څخه برخوردار
دی.

ددی سیستم دمناسباتو پهټولنیز اړ خ باندی بهپه خپل ځای کـــی
وژغیږو خو او س دلته غوا ړوچی اقتصاد ی مناسبا ت او تر ټو لو
دمخه دد هقان اودځمکی دخښتن ترمنځ منا سباتو باندی غور وکړو.

دلته د دهقانهغه چاته وېل کېږي چې یا خپله هیڅ ځمکه و نه لري او یا دو مره ځمکه ولري چې خپله گوزاره یی ور باندی نه کېږي او د بل چا ځمکه هم وکري. هغه څوك چې ځمکه د کرلو له پاره دهقان ته ورکوي دځمکی خاو ندیی بولو.

دهقانی مناسبات په ټول کونږکی په لږ تغیر سره په ټو لو قبیلو کی سره یو شی دی .مثلا په شو لتن کی که دهقان بذځه او قلبه و نه لري نو شپږ مه برخه اخلی . او که چیري بذځه و لري او قلبه و نه لري نو پنځمه اخلی ځکه بذځه د میږه سره کمك کولای شی . که بیا د هقان قلبه ولري نو په آبی کی دریمه اخلي او په للمی کی نیمه اخلی .دا چی تخم او اشر دواړه په مالك دی نو وابښه هم دتخم په حساب کی راځی او دهقان په هغوکی بر خه نه اخلی.

ددانگام په مشوا نیو او سالارزیو کی بیا که قلبه دځمکی دخاو نداوتخم هم دځمکی دخاو ندوی نود فصل څخه پنځمه دهقان اخلی او وابښه هم دځمکی خاو ند اخلی . که چیر ی دهقان قلبه و لري نو څلور مه برخه اخلی . خو په دویم حالت کی بیا شنه وا ښه دد هقان دقلبی له پاره دی.
په مروړه کی که دهقان قلبه ونلري یعنی قلبه دځمکی دخاو ند وی نو دهقان پنځمه بر خه اخلی اووابښه نه اخلی. داډول خلك چی ځمکه او قلبه و نه لري ، دهقان یی بو لی او برسیره پر پټی دکورکا ر هم کوی.

په حجره کی خدمت کوی، لرگی، راوړي،ژرنده کوی او استاز ی ( د احوال وړ ل راوړ ل) کوی ددهقان بذځه او ما شومان هم دځمکی خاو ند سره دو ښو په راوړ لو، دجا مو په مینځلو او دبروټی( دلرگوپیټی) په راوړ لو کی مر سته کوی. په مقابل کی بیاد ځمکی دخاو ند ډوډ ی ، خوری.

که قلبه دد هقان وی نود منی دریمه اخلی او داوړ ی څلور مـــه اخلی او وابښه هم په همدی تناسب وړی. داډول دهقان ته بر خه ایـــز وایی او یواز ی دپټی کار کوی او د ځمکی دخاو ندد کور، حجر ی ، او ژرندی کارونه نه کوی.

دشیګل په شینوارو کې هغــــه دهقان چې قلبه و نه لري دځمکــې دخاو ندسره سم کار کوي اودخپل کاراجوره دپنځوس تراتیا پورې دړې* په فصل اخلي. لدې کبله ورته غاړه ګري یعنی ملګری وایی . دلتــــــه فیو ډالي مناسباتو دځمکې دکموالي او له دې کبله چې دشیګل دشینوارو په لنه دزیاتو برابریو څخه بر خه لري ، زیا ت انکشاف یې ندی کړی. پدې لحاظ هغه چاته چې یویو غو یې قلبي ته سره جوړه کوي هم غا ړ ه ګري وایي.

خو که دهقان قلبه و لري نــــو دریمه اخلي او تخم دپټي دخاو ند وی او دوښو څخه هم دریمه اخــلي خو اکثرا وابنه دهغه چاکیږ ی چې تخم یې ور کړی وی.

دهقان یوازې خانانو ته په شیګل کې لر ګي ، وابنه، ژرنده اوياد حجری خدمت کوي مګر نورو شینوا رو ته په دهقانی کی دا کارونه نه کوي.

دکنړ او پکتیا په ولا یتونو کې له یوی خوا ځکه چې زراعتی ځمکې کمې دي او له بلې خواد ورونو تر منــځ ویش کیږ ی نود هر چا په لاس کې ځمکه کمه پاتې کیږ ی چې له د ې کبله دځمکې تمر کز او پدې ډول داقتصادی قدر ت پیداکول خوراګران تما میږ ی . له بلې خوا بورژواز ی مناسباتو دو مره پر مختګ ندی کړی چې په کلتور ی لحاظ د ځمکې (دپلار هډوکو) خرڅلاو میسر کړی نو پدې ډول دځمکې تمر کزصورت ومو مي . دپښتنو دد غو سیمو په خلاف بیاپه کندهار کې ځمکې دپخوا را هیسې تمر کز موندلی چې له یوې خوادنا در افشار او بیاد احمدشاه له خوا ابد الیو خانانو ته جاګیرو نه ورکړی شوي وو له بلې خواوروسته له هغې نه بیا محمد زیو خپلـــــو سردارانو ته ځمکې او مستمـــر ی تنخواګانی ور کو لی . په دې ډو ل دخانی مو سسې له یوې خوا پــــه زیر بنایی لحاظ مهمې وې او له بلې خوا داچې ددو لت دبیروکرا سی سره یې مستقیمې اړ یکې درلود ې په ځمکه باندې ملکیت ورته منحصر

* دړې یو دومره وزن دی چې دکابل دوه نیم چارکه یالس پاوه کیږ ی (پښتوقا مو س لو مړی ټــــو ك ٤٨٣ مخ)

پاتې شو *، دلته دد هقا ن‌اوما لك تر منځ ارتباط يو ډول فيو ډا لي مناسباتو ته‌ور ته دي چې په‌لا ندې ډول يې وړاندې کوو :.

**۱ کښتګر :**

پدې ډول فيو ډاليز م کې‌دتوليد فکتورو نه پنځمه دي .ځمکه ،اوبه، قلبه ،تخم او کار ځمکه او او به د دخاوند قلبه اوتخم دکښت ګر اوکار دبز ګروی . بز ګر پنځمه اخلي ، وروسته له هغې يې کښتګر ، اود ځمکې خاو ند دفصل پاتې بر خه‌سره نيمايي کوی .بز ګر دعرضه او تقاضا دقانون له مخې‌کله‌شپږ مه او کله بيا څلور مه هم اخلي .بزګر دکښتګر له پاره با مو نه‌کاه‌ګلوی‌او اوژ ر نده هم کوی .که چیر ی‌کښتګر بزګرو نه نیسی او په خپله ځمکه وکري نو دری برخې کښتګر اخلي او دوی برخې دځمکې خاو ند اخلي. نو کښتګر دبز ګر اود ځمکې‌دخاوند تر منځ‌یودلالي شکل دی چې قلبه او تخم‌لر ی اوځمکه نه‌لري.

دلويو خانانو په‌کورونو کې ، د بز ګرانو ښځې او ما شوما ن اوپه خپله بز ګر هم کارکوی ددوی‌داکار په‌زړو جا مو او ډوډ ی سره مقابله کیږی . خان یواز ی د مهمانخا نې‌مز دور ته تنخواه ور کوی چـــــې د میاشتې له دری سوه افغا نیواو ډوډې او کالو څخه عبارت دی .

دښوراو ك مناسبا ك مودو يش په‌سيستم کې لږ شا نته روښا نه کړل. د سپين بولـــدك ، شګـــې، ارغستا ن ، معرو ف‌اوخاکريـــــز، ولسوا لي ،ښوراو ك ته‌ور ته ا و ځمکې يې په زياته اندازه للمی اويا غرنی دی . ددې په مقابل کې‌دډنډ ارغندا ب ، ميو ند او پنجوا يې ، ولسوا لي بیاپه زیاته اندازه با غې‌زراعت لری او تولید یې هم دکاراو هم دحاصل له مخې شدید Production Intensive (زیات او زورور تولید) دی. حال‌دا چې‌په‌للمی سیستم کې که ځمکـــــه ډیره هم وی لاکن داوبود نشتوالی له‌کبله‌تولیدیې Extensive (دلته کمزوری او لږ)دی.

نور ټول کند هار دټولنیـــزو-اقتصادی منا سبا تو له پاره مـــوږ

---

* د زیاتو معلو ماتو له‌پاره‌وګوری‌عد۹۰مخ لمن لیك .

یوازی دپنجوا یی ولسوا لی چی پهاقتصادی لحاظ تر ټولو مخکی ده ذ
مثال په ډول نیسو . دلته پهزیاته اندازه ځمکه دلویو خانانو په لا س
کی ده چیځینی یی حتی اووه زره جریبه ځمکه لری . دځمکی تمر کز
ددی سبب کیږی چی په زیا ته ، اندازه خلك بیځمکی وی .ددی لویو
خانانو په څنگ کی یو ډولکوچنیاو لوی اجاره دارا ن او همد غسی
کښتگر دکلی دبورژ واز ی په څیرظهور کوی .دویمه کتگوری خلـك
(اجاره داران) دخه نغدو پیسو اویادتخم او قلبی په پیدا کولو ســـره
بزگر استثماروی . خانا ن اوزمیندارا ن او همد غسی اجاره دارا ن
بز گروته د(موك)* پهنوم قر ضـــهور کوی . هغهو خت چی بز گر د
زمیندار څخه ووز ی او غواړ ی د کومبل چاسره کاروکړ ی نوزمیندار
موكغوا ړ ی . داچی بز گرپه خپله پیسی نهلری نو مجبور دی چـــی
دکومبل ز میندار نه مو ك واخلی . نو دلته دی مجبور دی چی یاداو ل
زمیندار سره پاتی شی او یاداچی ددویم ز میندار سره په هما غـــه
شرایطو او یاهم تر هغو خرابو ، شرایطو سره بز گری وکړ ی .
خوبز گر هیڅوخت دبز گری نـــه خلاصیدای نه شی .نود کند ها ر

بزگر دسرما یه داریزړ یوکار گرو تهور ته دی چی مار کسدهغوی
پهباب وایی(( پهبور ژواز ی ټو لنهکی کارگر دا آزادی لری چی دیوه
سر ما یه دار څخه ولاړ شیاودکوم بل سرما یه دارسره کاروکړ یخو
په عمو میصور ت نهشی کولا ی چی هیڅ یوه سرما یه دار سره کار
ونهکړی(۱) »

لکهچی مخکی مو وو یل د میوی تو لید(انگور یا انار) کارپه کـــم
وخت کی زیات کار غوښتو نکـــی Labourintinsive دی .

---

* د ځینو پو ها نو په نـظر پهکندهار کی په یاد شوو دورو کی
د ځمکی مالکا ن یوازی ابدالیان نه بلکی نور مالکا ن هم د هغو ی تر
څنگ مو جودوو . که څه هم ، د وروستیو شمیر لږو . ادیتور

موك پهکندهار کی درشو ت یابډیمعنالری خود گر نی په مناسباتوکی
زیاتره تشویقی پیسو ، ایندو ـ سمنت منی Inducement money
معنالری چی دیو ډو ل قرار دادشکل یی غوره کړیدی . ادیتور .

(1) Labnarbeit U. Kapital, Dietz verlag, Berlin

داچې انګور او انار داسې یو حاصل دی چې باید خرڅ شي، نودباغوان او زمیندار دواړو مناسبات بازاري Market Relations یا په بل عبارت کاپیتالیستي دي ځکه انار، انګور او یانورې میوې نه شي کولای چې دغلو دا نو ځای و نیسي. داچې باغوان له یوې خوا زیات مصروف او له بلې خوا پیسو ته ضرورت لري نو مجبوریږي چې خپل مال ته ډیر ژر یو رانیوو نکی هما غلته ځای په ځای پیداکړي چې دی وکولای شي دنغدو پیسو په لرلو سره خپل کورته غله او جامې راو نیسي . نو اکثرو ختونه دا سې کیږي چې باغوان دغه حاصل بیر ته په خپل زمیندار باندې خرڅوي او یاداچې دخپل حاصل پیسې یې پخوا خوړلې وي.

« بزګر او باغوان نغدو پیسو ته زیاته اړتیا لري، ځکه باغوان خو هیڅ غله نه لري او بزګر که دخه وخت له پاره غله هم ولري نو دکالیو چای، بورې او نوروشیانو له پاره نغدو پیسو ته ډیر اړ وي . لدې کبله حتی ځینې کوچنی آزاد بزګران دخپلو ضروریا تو درفع کولو له پاره مجبور دي چې خپل انار، انګور او یا ممیز ډیر ژر خرڅ کړي.

له بلې خوا په کندهار کې دخرڅلاو کوپرا تیفو نه نشته چې بزګران وکړای شي دکوپراتیف نه نغدې پیسې او جنس وا خلي او بیاددوی مال په هغه کې مجرا شي. همدغسې زمیندارانو ته دوځکو (ممیزو) او یا انګورو قرار دادندی، معلوم چې دوی وکړای شي په ثابتو قیمتونو باندې خپله میوه خرڅه کړي او یادا چې هرو خت چې میوه خرڅه هم شوه خودبزګر لوموړ نی ضروریات دکوپرا تیف له خواپوره کیدای شوای. دغه مشکلات دي چې دممیزو او انګورو په سوداګرۍ کې یوازې لوی سوداګران ګټه کوي ((۱)

---

۱– مونږ ته د یوه متوسط زمیندار له خولې وویل شول چې پخوابه وچکې (ممیز) ګمرک ته راوړل کیدل او په ګمرک کې ځای ډیرو . او س هغه یوه کوچنی سرای ته راوړل کیږي چې هلته ځای کم او وچکې خرابیږي او دهقانان مجبوردي چې خپلې وچکې ژر او په کمه بیه خرڅې کړي.

له دی کبله بز گرا ن او باغوانا ن په زیاته انداز ه اودو خت په تیر یدو سره نوره هم په ز مینداری پوری، مربوط او پوروړی کیږ ی . دموك انداز ه لاپسی زیاتیږ ی او بز گـر هغه نه شی جگولای.

باغوان که څه هم یواز ی کارکوی او کاریی هم زیا ت دی لا کن دکار او (دتولیددشدت* Intensity له مخی باغوا ن شپږ مه بر خــه اخلی (۱). دبا غوا ن کاردادی چی او به لگوی ، انگور دگر می نه په پاڼو کی پټوی، بیلداری کوی ، تا ك بری کوی ، انگورو ته دیوال جوړوی دباغ دیوال کوی ، سره وړ ی ،د باموںو کاگل ،که نړیدلی گمبتــی او دیوالونه و ی ، هغه هـــــم جوړوی. همد غسی ویا لی پاکوی او ځینی نور کارونه لکه وا ښه راوړل هم ددو ی په لاس کیږ ی . کـــه با غوا ن او یابز گر دویا لوجوړولو ته رانه شی نو مجبور دی چی ناغه ورکړی.

په خو ست کی دد هقان دکلمی پرځای د(شریك) کلمه استعمالیږی. دخو ست په غر نیو سیمو کی د ځمکی دلږ وا لی له امله شر یکی وجود نه لری. یواز ی په اسمعیل خیلو ، مندوز یو او په زیاته اندازه په شمل او لکنړو کی شریکی وجود لری.

که تخم او قلبه دشر یك وی، نو دفصل نیمایی اخلی او بو ســـ (پروړه) هم نیما یی دهغه وی . د فصل شنه وابنه دواړه وړلا ی شی. داډول شر یکی په اوړ ی کی ده. په منی کی بیا جوار په پاسنی ډول سره وی خو په شولو کی تخم نیما یی مالك او نیما یی شریك راوړ ی . او در مند سره نیمو ی یعنی پروړه هم نیمه دیوه او نیمه دبل کیږی.

---

* د(شدت) له کلمی څخه مراد زیاتوالی دی چی دکم کار څخه زیات تولید ترلا سه شی او همیشه دغه کیفیت ولری یعنی په دی ډاډ ه وی چی په عمو می تو گه همد غه اندازه تولید لاس ته راځی او کمیږ ی نه ــ ادیتور.

۱ــ یو ملك مونږ ته داسی معلومات راکړ ل چی گوا کی با غوا ن پنځم من اخلی. خو بیا ددوو دهقانانو له خوا دده مخالفت و شو اودامعلو مه شوه چی شپږم من اخلی.

شر یك دځمکی دخاو ند له پاره بی‌دځمکی دکارنه بل هیڅ ډ و ل کار نه‌کوی . شریك‌که دلویو ما لکینو سره د مز دور مو قف ولری. یعنی داچی دکوم بل ځای نه را غلی‌و ی‌او خپله قلبه و نه لری نو یاپنځمه اخلی او یادا چی دمزدو ر ی پـــه‌شان قرار داد کوی.

دی نو بیاد ځمکی د مزور ی‌ځخه‌پر ته نور کارونه لکه دلرگوراو ړل او یاژرنده هم‌کوی!

## ۲- اوبه خوړ یا او به لگـول (آبیاری):

ددانگام ددر ی په ختیځـــــــــواو شمال ختیځو غرو نو باند ی د نورو غرو نو په پر تله دسلوا غی‌او کب په میاشتو کی دوری(حمل) دمیاشتی تر نیما یی پوری‌بنه‌ډیره واوره اوری .په‌ځینو کلو نو کی‌په عمومی تـوگـه دواوری او بـاران‌اوربنـت ډیر دی او پـه ځـینـو کلو نو کی لږه ددری غرونه‌دو مره جگ نه دی چی‌ټول کا لـور باند ی واوره زیرمه (ذخیره) پاتی شی او ددی ځای ځمکو ته بی واره جار ی او به ور کړی . دډیر اوربنت پـه‌کال هم دغرو نو واوره دغبر گولی تر پیل پور ی دغرو نو په څو کو پاتی کیږ ی اود تودو خی له امله په‌کراره و یلی‌کیږ ی.که‌په پسر لی‌کی بارانونه زیات شی نو واو ر ه ژرویلی کوی چی دواوری‌او‌بارانونو اوبه په خوړو نو کی جاری‌روا نی‌وی او سر بند ته‌دنژ دی ځمکوبز گرانـیـی بـی واره خپلو پټو نه اړوی. که چیری په خپل و خت په غرونو لږه واوره و شی اودپسر لی پـــه دوو لو مړ یو میاشتو وری ا وغوایی‌کی بارانونه لږوی نودو چکا لی یا کم اور بنت کال په اوړ دو کی‌د ندی ټول بز گر داو بو دکمبنـــت سره مخا مخ کیږ ی چی داو بـــو کمبنت ددوی دفصلو نو سو ځیدو ته لوی خطر دی . په داسی کال‌کی‌داو بو په‌واړ ډیری شخړ ی‌اوجگړ ی

راپیدا کیږی (۱) له بلی خوا ، د وچکالی په کال کی ددری دځوا نی انرژ ی ډیره بر خه دبز گری یا د ورځینی مز دور ی له پاره پیښوراو نورو سیمو ته ځی او هلته خپلـــه اقتصاد ی نیمگړ تیا پوره کوی.

ددری په خو ړونو اود غرو نو په لمنو کی ځای په ځای چینی مو جودی دی چی په دره کی ټول کلی دچینو خوا ته جوړ شویدی .په طبیعی ډول داور ښت په کلونو کی داو بو څه برخه په غرو نو او خو ړو نو کی جذبیږ ی چی دغه جذب شوی اوبه په اوړ ی او منیو کی دچینو داو بو اندازه زیاتوی . هغه چینی چـــی ډیر ی او بهاندی او به لری بزگران یی او به په مستقیمه تو گه په خپل وار پټو نه بیایی او هغه چینی چی لږی او به لری د وبو دذ خیـــره کولو له پاره یی د محل خلکو ډنډونه جوړ کړیدی چی لږی او به ډنډ ته راتوییږ ی اوڅه وحت چی ډنډ ډک شی بیایی بز گر په وار ایله کو ی او خپله کرو نده ور باندی خړوبوی.

دلته دخلکو په اقتصاد ی ژو ندکی او به عمده او اساسی فکتوردی اود ځمکی سره جو خت اوبه هم په خصو صی ملکیت کی را ځی . څوك چی ډیره ځمکه لری هغـــه په او بو کی هم ډیر ه بر خه لری. دعمده فکتور په توگه اوبه آبی ځمکه دللمی ځمکی څخه جلا کوی چی دآبی ځمکی تولید او نرخ دللمی ځمکـــی په پرتله ډیرو ی او هغه څو ك چی آبی ځمکه و لری او بل نفر په عیـــن اندازه للمی ځمکه و لری د آ بی ځمکی څښتن دتولید په و جه دللمی ځمکی دڅښتن په پر تله ښه اقتصادی ژوند لری. کله چی یو نفر په بل خپله ځمکه خرڅوی دځمکی دخر څلاو

---

۱ – زموږ دپښتنو په مقابل کی اکثر څوابونه داوو چی دو چکا لی په کال کی هر بز گر دازیار باسی چی خپله ځمکه پوره اوبه کړ ی. او به دو مره ډیری ندی چی تـــر ټاکلی و خت پور ی ټول فصـــل خړوب کړی. یو بز گر تل پلمه کوی چی داوبو وار یی نه دی پوره شوی او بل بز گر اوبه خپلو پټو تـــه اړوی چی دغه کار د شخــــړ و موجب کیږ ی.له بلی خوا داو بو په وار کی یو بز گر دبل څخه دشپی له خوا او به په غلا خپل پټی تـــه اړوی.

په‌وخت کی پلورونکی او اخیستونکی دواړه د او بو د ملکیت د موضوع په‌باب خبری نه کوی ځکه چی د واړه په‌دی پوهیږی چی د آبی ځمکی بیه او خراب نوعیت په‌او بو پوری تړل شویدی او د بیی ځمکی اساسی معیار او به ګڼل کیږی اوداوبو په‌وجه د ځمکی نرخ او چت ټاکل کیږی . او څه وخت چی ځمکه و پلورله شی دد ی ځمکی پوری تړلی شوی اوبه هم داخیستونکی په ملکیت کی راځی.

ددی ځای بزګرا ن د(زړی‌اوبه)او(نوی او به) په نو مونو دوه اصطلاحګانی استعمالوی .زړی اوبه‌دهغی ویالی یالښتی او بوته وایی چی‌ویاله یالښتی یی یو یاځو نسله پخوا جوړ شوی وی او پدی‌او بو کی دهو لی ځمکی داو بو وار اودوار نیټه معلومه وی . دزړو او بو ویالی ته‌نوی ځمکه اودویا لی څخه نوی لښتی نه‌شی ایستل کیدا ی. ددی علت دادی که‌دزړ ی ویا لی‌د او بوڅخه نوی آبادی ځمکی تــه اوبه‌ور کړل شی طبیعی ده چی ، پدی صورت کی دزړو او بو یــوه برخه دغی نوی آ بادی شوی ځمکی ته‌ځی اود نو رو بز ګرانو دځمکو په(حقابه) کی لږوا لی را ځی.که‌دیوی خوانوی‌آبا ده ځمکه یو نفر یاکورنی ته‌ګټه رسو ی په مقا بل کی نورو ځمکو ته تاوا ن اوړ ی . که‌چیر ی للمی او نوی آباد ی ځمکی ته دویا لو لښتی په واسطه د آ بی کیدو امکان مو جود وی ،دو یا لی‌یاد لښتی دجوړ یدو تر مخه یونفر یاکورنی مجبوره ده چی د کلی یـــا ګاونډ یو بز ګرانو ته‌داثابته کړ ی چی دځمکی آبی‌کید ل دهغوی پـــه‌او بو بده اغیزه نه کوی .که‌دویالی یا لښتی سر بند له دا سی او بو څخه پیل کیږ ی چی دغه او به په شګه یاپه شاړه ځا ی‌کی جذب‌کیږی اوځوك ور ځینی استفا ده نه شــی کولا ی نودغه شان اوبو ته بنداچول‌او ویاله جوړول او لسی کشا لــه نه پیداکوی اود غه شا ن ځمکی په‌آسانه آبی کیدای شی . اما که‌نوی ویاله یا لښتی دنورو خلکو پــــه‌ځمکو بده اغیزه کوی نود للمی یـــا نوی‌آبادی ځمکی د آبی کیدو پـــه نتیجه کی کور نی او کلی او یا د یوکلی او نورو کلیو دخلکو تر منځ شخړی راپیدا کیږی چی د غه شان شخړی په مر ګ ژو بله تما میږی. خلك د مر ګ ژو بلی دمخنیو ی له

پاره اود دښمني او بد ل داخيستو له ډاره دللمي او نوو آ با دوشوو ځمکو آ بې کيدو ته‌زړه نه ښه‌کوي. لکه چې مخکې ور ته اشاره وشوه که دنوي ويا لي يا لښتې جوړ يد ل دنورو خلکو په ځمکو بده اغيزه نه کوي ، پدې صور ت کې دکور نې ياکلي خلك په مشتر ك ډول نوي ويالي يالښتي جوړوي چې(نوواوبو)) کې دنوي آ بې شوي ځمکې دهر ي ټوټې (قطعي)«حقابه» داو بو دوا ر نيټه او و خت ټاکل کيږي چې د اوبو دبرابر و يش کارو باردميراواو کښبيانو * په‌غاړه وي.

## ۱ ــ ميراو :

ميراودبز گرانو تر منځ داو بو د ويش، و خت او نيټې ټـا کونکـي حاکم**ټ ه‌وايي . يو يا څو کلي‌په‌گډه سره يو نفر داوړ ي او منی د فصلونو داو بولگولو له پاره دميراو په‌توگه ټاکي .د ميراو اجوره ټاکلې حدنه لري بلکې دده اجوره دده‌اود کلي دبزگرانو د جوړ ي‌په‌اسا س ټاکل کيږي .که‌ځمکه ډيره وي اودځمکې او به خور يا اوبه لگو ل‌ډير وخت ډير کار اوداوبو لگولو د کارله‌پاره مرستيالان غواړي ميراو ته دده دکارپه مقابل کې ډيره غله ورکول کيږ ي .اوکه‌ځمکه لږه‌وي لږ وخت او لږ کار اوبې مرستيا لا نو ټول کارونه هغه په خپله تر سر ه کولای شي نو ميراو ته هم لږه‌اجوره‌ورکول کيږ ي. دډير کارپه صور ت کې ميراو (دکښبيانو) په نوم يويادوه‌تنه د مرستيالا نو په‌تو گـــــه استخدا مو ي . ميراو ديوامانتدا ر شخص په‌تو گه خلك ټا کی امـا کښبيان يوازي دميراو له خــــــوا انتخابيږ ي‌ميراو خلکو ته او کښبيان ميراو ته مسوو ليت‌لري.کښبيانو ته‌دکلي خلك اجوره نه‌ور کوي بلکـې دوي ته ميراو دخپلې اجورې څخه‌اجوره ورکوي. دکښبيانو اجوره هم ټاکلی حدنه‌لري بلکې دکښبيانو دغلي اندازه د ميراو اودده يادد وي

* د ميراو مرستيا لان چې‌په‌خپله‌دهغه له خوا ټاکل‌کيږ ي‌او اجوره يې هم دميراو په غاړه وي-اديتور.

** دد ي له پاره چې له دغې‌کلمې (حاکم) څخه دپښوا نې حکو متي حاکم او او سنی او لسوا ل معناپه‌غلطه وانه خيستله شي بهتره به‌وي چې دغه عبار ت ټاکو نکی(نفر يا سړی) و لوستل شي - اديتور.

ترمنځ د موافقې له مخې تا کـــــل کيږي.

که یو سړی د میراو ی دد ند ی په دوران کی داوبو دویش و خت او نیتې په لحاظ خلکو ته خپله اما نت داری ثابته کړی دغه شخص دمیراو په حیث هر کال بیاتاکل کیږ ی. که برعکس یو میراو دشخصی گټــی خپلوی او ملگر تیا له مخې داو بو په ویش و خت او نیتې کی گډوډ ی پیښه کړی دغه شخص نه یواز ی د میراو له دندی څخه ایستل کیږ ی بلکې دنورو کلونو له پاره د بـــد شهرت له امله دمیراو ی چا نس هم له لاسه ور کوی . همد غه شان کښبیان هم دگډوډ ی په صور ت کی د میراو له خواشړل کیږ ی.

میراو ته په مجمو عی لحاظ دټول کلی ځمکه او په مشخصه تو گه د هربز گر دځمکې انداز ه معلو مه وی. دی دویا لی او به په وارویشی .ده ته معلو مه وی چې دهر بز گر ځمکه څومره ده او څوور ځی ورو سته یې ځمکی ته داوبو وار رسیږ ی . میراو شپه او ور ځ په پارونو ویشی د مانښام نه ورو سته دشپې په دورا ن کی پارو نه دستو رو دراختلوحرکت او پریو تلو له مخې اود ور ځې له خوا دپارونو اندازه دلمر دحر کت په اساس ټاکل کیږ ی (١) میراو ته معلومه وی چې یو بز گر خپله ټاکلی ځمکه په څو مره و خت کی یعنی په څو پارونو کی خړوبوی . میراو هر بزگر ته د هغه داوبو دوار اطلا ع ور کوی . میراو او کښبیا ن شپه او ور ځ دویالی داوبوڅارنه کو ی . کښبیا ن بیلونه په لاس په ویاله گرزی چې دویالی څخه دلښتیو ور خو نه اوبه یونه سی او اوبه بلې خوا ته لاړی نه شی، او همداشا ن بل بز گرد بز گر دوار په و خت کی اوبه خپـل پټی ته په غلا وانه ړوی .که چیر ی دویالی څخه د لښتی ور خ او بـــه یو سی کښبیان وړ ل شوی ور خ ته خاوره او تیږ ی اچوی اوبندوی یې . که دسیلابونو په و خت کی دویا لی عمو مي سر بند او به یو سی میراو

١ ـ او س په ځینو کلیو کی میراو دساعت له مخې داو بوو خت ټاکی.

دکلي ټول بزگران راټولوي اوسر بند ور باندي له سره جوړوي. (۱)
که چيرې يو بزگر پهغلا خپل پټي ته او به اړولي وي اوداثابته شي
چي دغه کار قصداً شويدی ، ميراوددغه بزگر پټي ته ځي او گوري چي
دغلا او بوڅومره پټي خړوب کړی دی. داوبوغلا کوونکی بزگر
مجبور دی چي دخپلو او بو په وار کي هغه بزگر ته چي او به يې ور
څخني غلا کړيدي پدغه اندازه او بهور کړي او ياور ته په در مندکی
غله په تاوان کي ورکړ ي . دتاوان دغلی انداز ه دميراو له خوا ټاکل
کيږ ي . که د ميراو فيصلهونهمنله شي داوبو پهسر دبزگرانو تر
منځ شخړی راپيداکيږ ي .

## ۲- ويالي اودويالو دجوړ و لو تخنيک:

دويالو سر بندونه دآبی څمکو پهتناسب جگ واقع دی.دسربندونو
کاسی پراخي دی او له خوړ څخهډيري او به دبندونو پهواسطـــه
ويالو ته راگرزول شويدی .پهويالو کي داو بو ډېونه (ډنډونه) نه ليد ل
کيږي بلکي په ټولو ويالو کي اوبهمنځ پهځوړ چټکي بهيږ ي . ويا لي
دټو لي ځمکي ياد ډير ي ځمکي پهپور تنيوبر خو کي را غلي د ي‌اود
ويا لو اوبه دلښتيو پهوا سطـــه دځمکو په مختلفو ټوټوو يشلي‌شوی
دی.په ځينو غر نيو سيمو کيدويالومجرا داسی وا قع شويده چي او به
دپورتهنه ښکته دجوړ جوړ ي(آبشار) پهشکل راتوييږ ي اودويا لوپدغسی
ځايو کي ژر ندی جوړي شويدي‌اواو به دژرندو دناوو له لياري‌دو باره

---

۱- دلته دټولو ويالو سر بندونه کچه(خام) جوړ شويدي. پروړ ه‌يا
بوټي پهسر بند کي ږ دی تيږ ي‌ور باندي اچوي او بياور باندي‌خاوره
اړوي اودسر بند په هغه بر خهکي‌چي اوبهورتهراځي بوس( پرو ړه)
شيندي اود غه بوس دسر بند پـه درزونو کي‌ځای نيسی او او به دسر
بند څخه بلي خوا ته نهپريږ دی.دسيلاو نو پهو ختونو کي دغـــه
سر بندو نه وړل کيږ ي .

مستقیما بنکته ویالوتـــــه رابهیږ ی (۱).

ویالی هم لویې وی او هموږ ی .دویا لی لویوا لی او وړوکوا لی د ځمکی په ډیروا لی اولږوالی پوری اړه لری . که چیر ی دیوه کلی د ځمکی سا حه پراخه‌و ی او یا یوه‌ویاله دخو کلیو ځمکو ته او به ور کوی پدی صور ت کی‌ویا له ژو ره‌او پراخه جوړیږ ی . که دځمکـی ساحه لږه وی نوویا له یی هم‌وړوکی‌وی.

په دره کی‌تو لی ویا لی داو لس‌دګټه کار محصو ل دی(۲) دویا لود کیندلو له‌پاره‌د محیطی او له نو روځایوڅخه دواردشوو سا. ما نو نو څخه‌کار اخیستل شو یدی. دسپین‌ږیرو دوینااله مخی څه و خت چـی سالارز ی‌دلته راغلل په دره کی کافرو (نورستا نیو)* ځینو ځمکوته ویالی جوړی کړی وی او ځینی‌ځمکی‌للمی وی. دسالار زو دراتګ څخه وروسته کله چی به للمی ځمکو ته‌داو بو لګولو و یاله جوړ ید له د اسمار خان به دویا لی دجوړ یدوترمخه دکلی مشرا ن اودویا لو په‌کار پوه بز ګرا ن سا حی ته لیږل چی‌دخوړ اودځمکی تر منځ تو له ساحه سرو ی کړی اودویا لی دجوړ یدو په‌تو لو امکاناتو غوروکړ ی. هغوی

---

۱ ـ څوك پداسی ځا ی کی‌دژرندی‌دجوړو لو حق نه لری چی‌دویا لی اصلی مسیر بدل کړی او او بـه شاړی ځمکی ته‌لاړی شی او یابیرته خوړ ته‌تو یی شی .

۲ـ دکو نړونو په ولایت کی په کال اتلس سوه شپږ نوی کی د سپه سالار غلام حیدر خان څر خی په دوره کی یواز ی یوه لو یـــه (سالارویاله) جوړه شویده .دویالی‌سر بند دپیچ دسیند دشګی د کلی څخه پیل کیږ ی او تقر یبا تر شل‌کیلو متره واټنه دنر نګ‌ترعلا قه داری پور ی شپږ اوه زره جر یبه ځمکی ته او به‌ور کوی . دویا لی سربند خام دی او یوه‌ویا له پـــه‌ځینو ځایوکی په غره کی تللی ده او پداسی ځا یوکی ورته د پـخو خبتنو او ګچ دیوالونه جوړ شو ی دی.

* منظور پخوا نی نورستا نیا ن‌دی‌چی هغه‌و خت یی لا اسلام نه و منلی ـ ادیتور.

به خان ته خپل مشما هدا ت ورانډی کول بیا به خان د هغه کلی یا کلیو
او لس چی څمکه یی آبی کید له رابلل اوداو لسی جر گی سره به
یی په یو کندی د کاریگرو شمیر ا و دکیندلو داساسوآلا تو انداز ه
مطر ح کو له . دکاریگرو دشمیر اوساما ن آلاتو دانداز ی دمعلو میدو
وروسته به دکار دپیل ورځ ټا کل کیده.

دکار دپیل په ور ځ به خان اویا دهغه په نمایندگی دده ناظر(۱)
داولس سره یوځای د و یالی سر بندته دتگ په و خت کی به او لسی
ډما نو نغار ی اوسورنی و هل ، خلکو به خپل بیلونه پور ته غورځول
او په اتڼ اود خو شحا لی په نارو ویلو به روان و .څه و خت چی بـــه
سر بند ته ور سیدل دعا به و شوه یا به خا ن یا به یو روحانی شخص دخو
بیلونو په هلو دویا لی افتتا ح کوله چی د افتتاح وروسته بـــه د
ویا لی دکیندلو کار پیل شو . د کیندلو دپیل نه تر پایه به دکلی یا
کلیو خلك په وارسره کارته تلل اودخان نو کرانو اود خان له خوا ټاکل
شوو مشرانو به دکار او کار گرو مرا قبت اوڅارنه کوله چی دکارگرو
دغیر حاضر ی له کبله په پر مختگ کی څنډ پیښن نه شی .که چیری به د
ضرور ت له مخی یو کارگر کارته نه شو راتلای دی مجبورو چی خپل کوم
خپلوا ن یا ملگر ی کارته راو لیږ ی. که یو کارگر به دخپل عو ضی نــه
پرته له کار څخه غیر حاضر شو، دخان نو کرانو به دغه غیر حاضر
کار گر جر یمه کاوه .څه و خت چی به دویا لی دکیندلو کار پای تـــه
ور سید بیا به ټو لو څمکو ته لښتی جوړ یدل . په کو مه ور ځ چی به په
نوی ویاله کی او به راپریښود ل کیدی پد غه ور ځ به خان مالونه
حلالول او اولس ته به دخیرا ت ناری ورکول کیده . د اسماردخانی

---

۱ ـ ناظر دخان دڅمکوسرپرست دغلی د گو دا مونو او ددرمندو نوډ
ټاپی اعتما دی شخص و. ده سره به دگودام کلی وه او بز گرانو به له
ده څخه تخم اخیست ، دی به دخان په څمکو گرځیده ، ده به دخا ن په
رقعه روحانی خلکو بیوز له بز گرانو اود قبیلو مشرانو ته دبخشش غله
ورکوله اود درمندو نو په وخت کی به درشی ټا په کیدو نه یواز ی دی دتلو
او دخان د غلی د متصدی په حیث دبز گرانو سره رشه ویشله.

په‌له منځه تلوسره دخان ځمکی د کلیو په مشرانو او بز گرانوو پلورل شو ی اودغوځمکو د خصو صـــی ملکیت بنه‌غوره‌کړه . له‌دی وروسته دنوو ویالو دجوړ یدو کار کلی او او لس په‌گډه کاوه اود کار ا و کار گرو مرا قبت اوځارنه به دکلی مشرانو کو له.

**ترناو :**

پداسی ځایو کی چی دوړ و کو ویالو یالښتو داو بو د مسیر په مخکی ژور ځایو نه یالوی‌تر نګو نه‌راغلی دی او بل طر ف ته یی داوبو مجرابنده کړی ده هلته دنورستا نوله پخوا نی تخنیك ، تر ناو څخه کار اخیستل شویدی (۱). په ژورځای یاد تر نگ په مخکی دتیرو څلی یاد لرگو خاد ی درول شو ی‌دی چی پدی څلو یا خادو نـــاوی ایښودل کیږ ی . دناو ی یو سرد ویالی یالښتی په وروستی نقطه‌کی ایښودل شوی او بل سر یی بلی‌خوا لښتی ، ویا لی یاځمکی ته‌غزول شوی‌وی او پدی تر ناو کی له‌یوی‌خواڅخه بلی خوا ته او بـــــه بهیږی.

**۳- د بز گری سامان آلات :**

ددانګام ، گر بز و او ښو راو ك دبز گری په سا ما نو نو کی‌دو مره توپیر نشته.

**۱ - قلبه :**

دوو غو یو‌ته قلبه ویل کیږی.* دقلبی نر خ دغویو دنو عیت سره توپیر مو می . دښی قلبی نر خد اته‌زره افغانیونه تر پنځلس ز ره افغا نیو کیږی . د مایل کارین نـه علاوه ، آبی او للمی ځمکی په غویو قلبه‌کیږ ی . او پدی برسیره پـه‌غویو غوبل هم کوی .په ښو راو ك کی دغو یانونه علاوه خره هم پـــه‌غوبل تړل کیږی.

---

۱- محلی تر کانان دځای دفاصلی‌په‌تناسب د یو یاځو د نښتر و پـر- یړاو او ږدو لر گو یو مخ‌ژور توږی او ناوه تری‌جوړو ی چی دی‌ناو ی ته‌تر ناو ویل کیږ ی. په تـــو ل نورستان کی داوبه خور له پاره‌ځای په‌ځای دترناو په‌واسطه اوبه تیری‌شویدی.

* همدا رنگه قلبه په خپله یوی‌اودیوی کولو عملیی ته هم‌وا یی‌مثلا دآریاناقلبه اود مځکی قلبه یا یوی‌کول . اديتور.

**۲ ـ جغ :**

محلی تر کا ڼ یی د لرګی څخه جوړوی . جغ د غو ا یا نو په څټ اېښوول کیږی . تقر یبا د در یو لویشتنو په فاصله کی دهر غو یی د څټ په اندازه له دواړو خوا ووڅخه دجغ پهسوریو کی جوغونه ی( د لرګی څخه جوړ وړو کی موږی) ورمنډل کیږ ی . جو غو نه ی پهجغ کی د ننهد غویو (غو یانو)ورمیږونه نیسی اوغو یان دیوی را کښلو ته چمتو کوی.

**۳ـ سر بانډی:**

سر بانډ ی دغویی دځر منیڅخهجوړ شوی او یوډول کلك پړ یدی چی دیوی پهو خت کی دغویودمنځنی برخی په جغ کی اچول کیږ یاود یوی تیر یکی تړل‌کیږی .

**٤ـ یوی :**

یوی دتیر ، موټی ، کو ندی،پال اودلرګی او اوسپنو دوړ و کـــــوـ او غټو ټوټو څخه تشکیله ده چی دلرګی برخه یی محلی تر کاڼ اود اوسپنی برخه یی پښ جوړوی .

الف ـ تیرلږ خه کوږ اما او ږ دلر ګی دی چی دتیر سر پهسربانډی کی او سر بانډ ی پهجغ کی تړ ل شویوی. دتیر بل سر(لږ پریړدی) اوسپنی برخه یی پښ جوړوی .

ب ـ کو نده: کو نده دلرګی څخه جوړه شوی دپله تخته ده چی دقلبی پهو خت کی‌تخته په ځمکه پر تهوی‌چی ددی تختی‌په منځنی بر خه کی تیږ په مخکینی برخه‌کی‌یی پال او پهوروستی بر خه کی موټی‌ټکو هل شویوی. اوغو یا ن یی په ځان‌پسی راکاږی.

ج ـ موټی : موټی دکو ند ی پهوروستی بر خه کی ټکوهل شو ی رګی دی **چی بز ګر یی** دقلبی په وخت کی پهیو لاس نیسی اوپه بل

لاس چو که(لښته) ورسره وی ا وغوایی (غویان) پری وهی.

د- پاله : داو سپنی څخه جوړیږی مخکښی سر یی تیره وی .تیره سریی د کلکی او کاړ ینی ځمکی دپری کولو له پاره جوړوی.

**۵- تسکوره :**

تسکوره داو سپنی څخه جوړیږی دوه ډوله تسکور ی رواج لری چی یو ډول یی قلمی یا مخرو طی اوږده او تیره خو له لری او بل ډول یی پلنه او تیره وی . لو مړ نی ډول یی د تیږو په ایستلو او کلکی ځمکی د کیندلو په وخت کی استعمالو ی او له دو هم ډول څخه دپستی خاوری دکیندلو کار اخلی .په عمو مـــــی صور ت دتسکور ی څخه دویا لو، کورونو ، پټی او کارین دجوړولو دسامان په حیث کار اخیستل کیږی. دتسکور ی په سوری کی دلر گی لاستی ټکو هی او یو نفرور باندی کار کوی .

**٦ - چار ی :**

چاری دلرگی دیوی تختی څخه چی په خو له کی یی او سپنه وی جوړیږی او دیو نیم متر په اندازه د لرگی لاستی لری . دچاری په دواړو څنډو کی داو سپنی کړی وی پدی کړ یو کی دپړی دواړه سرو نه تړل کیږ ی.په چاری دوه تنه کار کوی . یو تن د چاری لا ستی او بل یی پړ ی چی د یوی لویشتی لرگی نه تاووی نیو لی وی.یو یی چاری په ځمکه کښ وی اوبل یی پړ ی راکاږ ی .په چار ی داو بو لښتی اودپټیو پولی جوړو ی اود ځمکی لوړ ځایو نه ور با ند ی اواروی.

**۷ - باکاری:**

دچاری غو ندی جوړ ښت لری خود چاری څخه وړوکی وی اوددوو تنو په ځای یو تن کارپه کوی.

**۸ -بیل یایوم :**

پلنه تخته یی داو سپنی څخـــه جوړوی دلرگی لا ستی یکی اچول کیږ ی . یو تن ور باندی کار کوی. دباکار ی په پر تله د یوم په واسطه

درانده کارونه کیږ ی .یوم د لښتي ویالو ، پولو دځمکی داوارو لو اود او بو دبندو نو او ور خو نودجوړولو لەپاره دبز گری اساسی سا ما ن دی.

**۹- بیلچه :**

دیوم وړو کی بڼه ده .

**۱۰- ماله:**

ماله دوه ډوله ده چی یوی تەساده اوبلی ته غابنوره مالەوایی . ساده مالەدلرگی دتختی څخه جوړیږ ی .اود غابنور ی مالی په یوه خوا د ځمکی په لور داو سپنی غابنونەوی.ماله لکه د یوی‌غو ندی په غویوپسی تړلەکیږی اود ځمکی دکرڅخـــــه وروسته بز گر په ماله پټی‌اواروی. کەځمکه پستەوی په ساده ما لــــه اواریږ ی او که ځمکه کلکه یاکاڼینه وی په غابنوره ماله باند ی لو تی‌اواریږ ی اودمالی پەواسطه دپټی‌په مخ پروت تخم دخاور ی لا نـــــدی کیږی.

**۱۱- غابنور (راکول):**

غابنور هم دوه ډوله ده چی یو یی وړوکی او بل یی لوی دی . په وړو کی غابنور باندی په او بـــو کی‌کار کوی او پەبلی باندی پەوچه. غابنور دلرگی څخه جوړو ی او د لرگی تخته یی پەسر کی او سپنه لری او په دواړو خواوو کی یی د او سپنی کړی پر تی وی. پد غو کړ یو کی پړی اچول کیږ ی اودغه پړی دغویو په جغ کی تړل کیږ ی‌او بز گر دنوی‌پټی یاد نا اوار پټـــــی‌دسطحی دجوړو لو پەو خت دیوی برخی څخه بلی بر خی ته خاوره پکی وړی.

**۱۲-زنبیل :**

په محل کی ترکان دلرگی څخه زنبیل جوړوی خو پدی‌و ختو کی د اوسپنی زنبیل هم رواج موند لی دی. داو سپنی زنبیل لەښارونو څخه اخیستل کیږ ی . دزنبیل پەدواړو خواوو کی داو سپنی کړ ی پر تی وی او پدی کړ یو کی‌دلرگی لاستی اچول کیږی . پەزنبیل دوه

تنه‌کار کوی. په زنبیل کی خاو ر ه‌کاړ ، شګه ، تیږ ی او ختهه و ړ ل کیږی.

**۱۳ ـ ماتوړ یاپلك :**

پلك داو سپنی څخه جوړیږ ی.دپلك وزن تقر یبا نیم سیر وی*او اکثره‌دښارونو څخه راو ړل‌کیږی . بز ګرا ن په‌پلك باندی دنوی‌پټی د جوړولو په‌و خت کی وړو کی‌تیږ ی‌ماتوی اودځینو ماتی شوو تیږوڅخه کورونو ، بانډو اوژ ر ندودیوالونه‌جوړوی . دسړ کو نو په‌جوړو لو کی هم دپلك څخه استفاده‌کیږ ی دپلك په‌سوری کی دلرګی لا ستی اچول کیږ ی . او یوتن ور باندی‌کار کوی . په‌بز ګری کی دپلك کارډیر درو ند وی او پلك‌وهونکی ډ یر ژر ستړ ی کیږی.

**۱٤ـ جبل :**

ټول داو سپنی نه جوړو ی . د جبل وزن له‌یو څخه تر دریو سیرو پوری‌وی . دجبل څخه دویا لو،نوو پټو او کورونو په جوړولو کی کا ر اخیستل کیږ ی . په جبـــــــل اکثرا دپټی، ویا لی اود کـــور جوړولو په‌ځایو کی دلویو تیږ ود چولو له‌پاره سو رنګ یا سور ی جوړوی . دوه تنه سو رنګ( پـــه جبل سوری) و هی اودیوتنا کلی‌حد ورو ستـه په سور نګ‌کی دا ر و اچوی . داروته دپلتی په وا سطـه اور اچوی اود درو په زور تیږ ی چوی ، همداشا ن دجبل په‌وا سطه له ځمکی څخه وړی تیـــــږ ی راباسی .

**۱۵ ـ لور :**

لرونه دوه ډوله دی چی یوته (اره‌لور) او بل ته (پټه لور) وایی. اره لور لکه داری غابنو نه لری او لدی لور څخه اکثرا دو بنو ،غنمو، اوربشو ، او شولو په‌ریبلو کی کار اخلی. پټه لور غابنو نه لری اود

* په‌پښتو کی د(سیر) له پاره‌چی‌شپاړس پاوه کیږ ی د(من) کلمه‌لرو او دلته هم دلیکوا لو مراد همد غه‌کلمه ده ـ ادیتور .

چاکو غو ندی تیره‌وی اودجوا رود لو له‌پاره یی پکاروی . دواړه ډوله لرو نه محلی پښتان جوړوی.

### ۱۶- ښا خی :

دلرگی څخه یی ترکا ن جوړوی. دښا خی دلرگی تخته وړو کی ده . ددی تخت ی‌په سر ک ی‌دلرگی دری اوږده غاښونه وی اود تختی پـــه منځنی بر خه کی دلرگی لاستـــــی ټکو هل شوی‌وی .څه و خت چی بزگر دغوبل له‌پاره دفصل گیډ ی در مند (۱) ته‌راوړ ی ځوور ځـــی یی دکوټی په حالت پرېږ دی ا و وروسته بیادغه گیډ ی په ښا خی خپروی .

### ۱۷ - راشپیل :

راشپیل یو مستطیل شکلـــــــه لر گینه دړه ده چی دلرگی لا ستی لری .څه و خت چی په ښا خی‌دانی او پروړه سره جلا شی بز گردانو دښه پاکوا لی له پاره راشپیـــل استعمالوی . په راشپیل در مندتر هغو بادوی چی گرد بیخی تری‌ولاړ شی . ورو سته د در مند دا نی‌په راشپیل راټولوی او را ټولو شوو دانو ته (رشه) وایی.

### ۱۸- ټاپه :

محلی تر کاڼان ټا په دلر گـــی څخه جوړوی .ټاپه د درمندو نو له پاره دیو مخصو ص مهر په شکل جوړیږ ی . په‌ټاپه کی یو ډو ل داسی مخصو ص شکلونه او ښښی کیندل کیږی چی د هغو په‌بر خه‌کی بز گرانو او نورو خلکو ته‌معلومات نه‌وی.

---

۱ –در مند په اوار او لږ خـــه‌پراخ ځای کی جوړ یږی . د غـــه پرا خ او اوار ځای اخیر شو یدی. په منځ کی(غوبلر گی) ټکو هل‌شوی وی‌اود در مند خواو شا دغنمـــــو ور بشو یاد شو لو گیډ ی دټو پ په‌شکل پر ت ی‌وی. دغوبل نه مخکی بز گر دټوپ گیډی په ښا خی په درمندباندی دغوبلر گی خوااو شا غورزوی او چی ټو لی گیډ ی یـــی خپری کړی بیایی یوه یادوه ور ځی اوار پرېږ دی چی‌لمراوهوایی نم‌و چ کړ ی .

څه‌و خت چی دغلی رشه جوړ ه شی دځمکی څښتن یاد هغه (ناظر) (۱) مخصو صی تا پی ســــره در مندو نو ته ځی اود رشی په‌سر یا منځنی اولاندنی بر خو کی لمده خاوره اچوی او بیاور باندی تا په لگوی . په لمده خاوره باند ی‌دتاپی شکلو نه او کرښی ځر گنـــد ی ښکار ی .

دتاپه کولو څخه ورو سته ر شه بز گر ته‌سپار له کیږی اود غلـــی دو یش له پاره و خت‌تاکل کیږ ی. دتاپی ورو سته بز گر ډیر احتیا ط کوی چی دتاپی نښی ړنگی نشی. که چیر ی دتاپی نښی ړنگی شی‌نو دا معنالری چی درشی دا نی غـلا شویدی اودغلا مسئو لیت د بز گر په غاړه لویږ ی .په تاکلی و خت‌په خپله تاپه گر راځی اود تا پی‌دکرښو له‌لیدلو ورو سته در شی غله‌دځمکی دڅښتن او بز گر تر منــــځ ویشی (۲).

## ۱۹– توکری :

توکری دغنمو دو چوړنه ر و (یلالو) یاد لوخو څخه جوړیږ ی توکری دغلی دو یش اصلی پیمانه ده. لو مړ ی‌د تو کری پیمانه کیږی اودتو کری تاکلی انداز ه غله په‌تله تلل کیږی چی په‌یوه تو کری کی‌څو

---

۱– څوك چی ډیری ځمکــــی لری هغه دنا ظر په نو م نو کـــر ساتی او ناظر ته د ځمکی څښتن‌د اوړی او منی په در مندو نو کی تاکلی اندازه غله ورکوی . نا ظـر دد ر مندو نو حجری اود ځمکی د څښتن او خلکو تر منځ دارتبا ط وظیفی په غاړه لری.

۲ – درشی داخیستلو( ددا نو ویش) په‌و خت کی ملا، چړ یا ن، نایی، پښ ، تواچی، میراو او ، د شیرینی په‌نو م ناداره خپلوا نودرمند ته‌راځی. دځمکی څښتن او بز گرپه گډه درشی څخه له‌سره‌د (بر کت) په‌نوم څوتوکری دانی یوځای اړوی او لدی دانو څخه راغلو خلکو ته‌د خیرات، زکات او حق په نو مو نو برخی ور کول‌کیږی. دځمکی څښتن خپلو ناداره خپلوانو ته شیر ینی ور کوی او پدی‌و خت کی بز گرپه در مند باندی خپل سود او پــــور خـلاصو ی او پاتی غله کورونو ته وړل کیږی.

منه غله راځي. دټو کرې دپيمانـې داندازې وروسته پهٔدغې ټو کر ې
درشې غله دځمکې دخښتن اوبزګر تر منځ ويشل کيږي چې دو يش
په نتيجه کې د رشې اصلي اندازه هم معلوميږي.

**۲۰ــ چوی :**

دغر نيو وړ ختوله لښتو څخه جوړيږي . ښځې په چو يو کې پټو
ته حيوانـې سرهٔ ورې اوحيواناتو ته پکې دپټو نه وا ښهٔراو ړي. بر-
سيره پردې څه و خت چې مشوانې او ګو جر لهٔيو ځاې څخه بل ځاي
ته ځـې ددوی ښځې په چويو کې د کور ساما ن ږدي او پهٔسر يـــې
وړي.

**۲۱ــ کجاوه :**

کجاوه هم دوړ ختو څخه جوړيږي کجاوه دچاو ې پهٔتناسب لويه ده. په
دې کې نارينه پهٔشا پټو تهٔسره وړ ې اود پټو څخه پکې وا ښه راو ړي.
مشوانې او ګوجر پکې له يو ځا ی څخه بل ځاي ته سا مـــــــان
وړي.

**دو هم : غرو نه ، څړځا يونهٔاو مالداري :**

دکونړ ولايت ددرې پـه دواړو خواوو جنو ب ته غزيد لي غرونه لوځ
شويدي خو دجنوب لويديځ پهٔلورد باډيل، ديو ګل ، مزار اودلويديـځ
پلو ته دپيچ ، دختيځ په خوادمرووي اود شمال ختيځ لور ته دشوړ تن،
دانګام اود شما ل لويديځ خوا تهٔ د کا مديش درې پهٔو نو او بوټو پټې
دي. په ټولو غرونو کې د مـيشت قبيلو تر منځ اود هرې قبيلې ، د
خيلو نو او په خيلو نو کې دپښتنو تر منځ دغرو نو بر خې ،دځنګلو نو او
څړځايو نو حدود معلوم دي چې له ټاکلې سيمې څخهٔديو ځاي اوسيدو-
نکې دبل ځاي داوسيدو نکو داجازې نهٔپر ته دځنګل دو نو او بوټوډيرې
کولو اود څړځايو نو داستعما ل حق نهٔلري.

په دانګام کې دخلکو تر منځ د غرو نو ،ځنګلونو اوڅړځا يو نو د
ويش دغه عمو مي عنعنو ې عمليهٔهم وجود لري .جنوب ، جنوب ختيـځ
او ختيځ تهٔپراته غرو نه دسالارزو، جنوب لويديځ غرو نه دما مو ندو

اود شمال لور ته غرو نه دمشوا نو دی. دلته دنورو قبیلوپه تنا سب په غرو نو ،ځنګلونو اوځړ ځا یو نو کی دسالار زو بر خه ډیره ده . د باجوړ دبر سدین او برا مد ك د سالار زو اود دانګام دسالا ر زوپه غرو نو ،ځنګلونو اوځړ ځایو کی خپل تر منځ حد معلوم کړ یدی اما قطعی ویش یی نه دی کړی.په دره کی دکځو نو غر دیوی ګو ریګا اود وړو کی ګو ریګا داوسیدو نکو د سواتا ن غر دسیان داوسیدو نکو دلیتی غر دډیر کی داوسیدو نکو اود تری پما ن غر دخاره داوسیدونکو دی. همدا شان ما مو ندو اومشبوانو هم دخپلو خیلونو او پښو تر منځ دغرو نو اوځنګلونو حد معلوم کړی دی. دهر ځای او سیدو نکی یوازی دخپلو بر خو دځنګل څخه و چلرګی راوړلای شی، په خپل حد کـــــی دنوو کورونو دودانولو له پا ره د ضرور ت وړونی او بوتی و هی او په خپل غره کی رمی پیایی (۱).

دډیرو غرو نو تیږ ی په خاو ره بدلی شویدی اودداسی غرو نو په ډیرو ځایو کی دخاور ی لو یـــی غونډ ی پر تی دی . دغرو نو پـــه پور تنیو بر خو کی دنښترو ، په منځنیو بر خو کی دځیړ یوځنګلونه ولاړ دی او په غرو نو کی دګورګرو ممانو ، وحشی انارو او نوریو نی اود غوږ اسکو تر خی، وړ ختی او نور بوتی هم ډیر دی .د هر کلی اوسیدو نکی دځنګله دو نو، بو ټو، اوځړځایو نو په باره کی ډیر احتیاط کوی اود خپل پخوا نی دودپه اساس ځنګل په دوو یادریوبر خو و یشی.

**ناغه :**

په ځنګله کی یوه یا دوه برخی تل ناغه و ی . دنا غی دا یښودو په ور ځ دکلی مشرا ن راټو لیږ ی او پدغه ور ځ دځنګل یوه یا دوی برخی

---

۱ ــ در می شمیر دپنځو سو وزو او میږو نه نیو لی تر دوه دری سوه و زو او میږ وپوری رسیږ ی په مشوانو کی ځینی کورونه لویی رمی لری چی دخپلو ر مو له پاره شپانه، نیسی ځینی کورونه یایوکلی خپلی وز ی او میږ ی یو ځای کوی ر مه تری نه جوړ وی او بیایی شپون ته سپار ی اوځینی خلك د خپلو رمو په خپله شپنی کوی.
شپون ته دمیاشتی دری سوه افغانی او جا می او دوډ ی ور کوی.

دځلورو یا پنځو کالو له پاره ناغه کوي. دناغي په ورځ دکلي مشران داپریکړه کوي چې دنا غي پهموده کې دځنګل پهنا غه شوې برخهکې دکلي خلك دو چولرګو دراغونډو لو اودمالونو دځړ اجازه لري خوهیڅوك شنه و نه او شین بو ټي نه شــي وهلي . دنا غي له ایښود و څخــه څخه ورو سته دکلي مشرا ن دناغه شوي ځنګله بر خه ، موده اودناغي دماتولو یعنی پدغه ځای کې د شنې ونې او بوټي دو هلو دجر یمــــې اندازه ټول او لس ته ابلا غوي .د نا غي په موده کې دکلي نر او ښځې دناغه شوي ځنګله څارنه اومراقبت کوي. که چیرې دنا غي په موده کې دکلي یو اوسیدو نکي نارینهو یاو کهښځه شنهونه یابوټي وو هي او وربانډې اثبات شي دکلي مشرا ن دناغه ماتوو نکي څخه یو سیر لې یاپسه او دوه نیم سوه افغا نــي جریمه اخلي. څهو خت چې دنا غي موده پای تهورسیږ ي نو د کلي مشرا ن راټولیږ ي اودناغه شو ي ځنګل ناغه ما توي اود ځنګل نورهبرخه ناغه کوي چې دځنګل ناغه په دوراني شکل دوام مو مي. دنا غــي په موده کې دناغه شوي ځنګلهونې او بوټي ګور (ګڼ) شوې وي. دکلي مشران شپنو او ښځو تهلا ر ــ ښوونه کوي چې دشنو و نواوبوټو څانګې په احتیاط پرې کړ ي چېد ونو او بوټو نوروځا نګو او تنوته زیانو نهرسیږي.

**قلنګ :**

دخلکو دوینا له مخې د اسمارد خاني په دوره کې ددرې ټول غرونه دخان ملکیتوو . په لو مړ نیـــو وختو نو کې دسالار زو او لســـي خلکو ډیر ې ر مې در لودې اوډوي به دخپلي رمې د درې په غرو نو کې (پوولی) خان دسالار زو اوماموندو سره قبیلوي ارتباطا ت در لود ل اود قبیلوي ارتبا ط په لحاظ یې د مشوانو او ګجرو په پر تنهددو ي سره ښه سلوك کاوه. خا ن دسالار زوڅخه د(څرځایو نو) د اجار ي

په مقابل کی سیرلی، گډی(پسونه)غوړی او وړی د قلنگ (۱) په نوم
نه اخیستل خو مشوا ټو او گجر و دقلنگ داجاز ی په مقابل کی‌دکال
یو شمیر سیر لی،پسو نه ، غوړی، او وړ ی ور کولی . دقلنگ اندازه
ثابته نه وه بلکی درمی په شمیرد (پوولو) په‌و خت اود څړ ځـــای
په نو عیت پوری یی اړه در لوده‌او دغه اندازه به دخان او‌درمی دخښتن
دموا فقی په اساس ټاکله کید له . دسالار زو اقتصاد ی عواید دکرنی
او مـا لداری له لیاری وو چـــی دغو گڼو عوایدو دوی ته دځمکـــی
داخیستلو اود محلی تجار ت له‌پاره بنه‌پانگه په‌لاس کی‌ور کو له ،څه
وخت چی داسمار خانی له منځـــه ولاړه دوی دخا ن ځمکی په‌نغدو‌پیسو
واخیستلی اود ځمکو داخیستلو‌څخه وروسته یی دما لدار ی په ځـــای
کرنی ته مخه کړه او او س‌دمنډ واړو په‌پرتله په دوی کی مالداری مخ په
لږیدو ده. دوی دوزو او میږو درمو په‌ځای غو. گانی ، مینبنی اوپیښوزی
وزی ساتی چی دغه ما لدار ی د مارکیټ له‌پاره نه ده بلکی یواز ی
په‌کورونو کی دغوړو ، شیدو،مستو او نورو دکیفیت له پاره ده او لږ
غوړی په محلی‌سو داگرو خرڅیږی. له‌بلی خوا په مشوا ټو کی او س‌هم
دلوی اکثر یت ژو ند په مالدار ی ولاړ دی (۲) دخانی په دوره کـــی
مشواڼو ته دما لڅړو نو (څـــــړ ځایو نو) داجازی نه پر ته په دره
کی د میشت کیدو ، بز گر ی ، سیری اود ځمکی داخیستو چا نس

---

۱- پخوا دکونړ ولایت په ټولو سیمو کی قلنگ عمو میت در لود.
او س په ځینو ځایو کی دقلنگ رواج له منځه تللی دی اما دپیچ په
پښتنو او نورستا نو دشیگل پـــه شینوارو اود کا مد یش پــــه
نور ستان کی او س هم قلنگـــ مو جود دی. که دپښتنو یاگجرو
رمی دنور ستانو یاد گجرو ر می د پښتنو څړځایو نو ته راځی دوی د
څړځایو داجاز ی په مقابل کی‌قلنک ورکوی چی دقلنگ‌اندازه د دوا ړو
ډلو په موا فقه ټاکل‌کیږ ی . دلته‌د کورنی او اولس په نو مو نو دو ه
ډوله قلنگ‌و جود لری. که څړځای دکورنی وی قلنگ دکورنی مشرته
ورکول کیږ ی او که داو لس‌شریك وی قلنگ او لس اخلی.

ډیر لږ و ، همدا علت دی چــــــــی دسالار زو او ما موندو په تناسب دمشوانو دمیشت کیدو عملیه‌داویا کلونو څخه زیاته سابقه نه‌لری او په‌کلیو کی‌ددوی‌د میشت کیدوعملیه اوس‌هم روانه‌ده.

**مالداری :**

دمیدانی سیمو دافقی Horizontal مالدار ی په‌عکس په دی غر نیـــو سیموکی رمی دښکته نه پور ته اودپورته‌نه ښکته عمودی Vertical حرکت کوی.

۲ــ دمالداری عواید په‌لا ند ی ډول دی :

| ډول | نرخ په افغانیو |
|---|---|
| ۱ــ سیرلی (پنځه‌کلن) | ۱۵۰۰ افغا نیو |
| ۲ ــ پړامه ( یوکلن ور غومی) | ۳۰۰ افغانیو |
| ۳ ــ وچه‌وز ه | ۷۰۰ افغا نیو |
| ٤ ــ بلاربه اولنگه‌وز ه | ۱۰۰۰ افغانیو |
| ۵ ــ گډ | ۱۲۰۰ افغانیو |
| ٦ــ گډ وری (یوکلن وری) | ۵۰۰ افغانیو |
| ۷ ــ وچه میږه | ۷۰۰ افغانیو |
| ۸ ــ بلاربه اولنگه میږه | ۸۵۰ افغا نیو |
| ۹ ــ دقلبی‌یو غویی | پنځه‌زره افغانی‌تر اوه زره افغانی. |
| ۱۰ ــ خو سی | دوه زره پنځه سوه‌تر پنځه زره افغانی. |
| ۱۱ ــوچه غوا | دری‌زره افغانی ترپنځه‌زره‌افغانی |
| ۱۲ ــ لنگه غوا | پنځه‌زره افغانی‌تر اته‌زره‌افغا نی. |
| ۱۳ ــ لنگه میښه | اووه زره افغا نی تر دولس زره افغانی. |
| ۱۵ــ غوړی یوسیر (یومن) | ۸۰۰ افغانی |
| ۱٦ــ وژغنی « « | ۵۰۰ افغانی . |
| ۱۷ــ وړ ی رر رر | ۵۰۰ افغانی |
| ۱۸ــ دغواپوستکی (څرمن) | دوه‌سوه تر پنځه‌سوه افغانی . |
| ۱۹ــ دوزی پوستکی رر رر | شل افغانی تر دوه سوه افغانی. |

هر شپانه (۱) ته‌په ټو لو غرو نو کی دخرڅایو نو اودیوځړ ځای څخه تر بل پوری فاصله اودر مــــید رسیدو موده معلومه وی. په ځینـو غرو نو کی شپنو درمو دخرڅایونو دهستوګنی له‌پاره بانډ ی (۲) اود

(۱) اکثره شپانه محلی خلك دی. دسالارزو ،ما موندو ،مشوا نـــو ګجرو او نورستانو شپا نه یو شان لباس لری. شپون پکول په‌سروی، دکمیس دپاسه اودپرتوګ په ځا ی دوړ یو څخه جوړ شوی ګنډ ی او ګډین اغوندی .دګنډی د پاســـه دپوستکی پټی دملا چاپیره‌تړی.
ګډین دپنډ یو تر بر نیو بر خو رارسیږ ی او دپنډ یو له ښکتـــه برخو څخه دوړ یو پیتاوی تاوو ی اودپوستکو پاژولی په‌پښو کوی . ددغه‌لباس داغوستلو په‌و جـــــه ځنګلی بو ټی اواغز ی‌ددوی‌و جودته زیان‌نه‌شی رسولای. شپا نه‌دمالونودحلا لولو له پاره چاړه ، د لاس‌په لاس جګړی له‌پاره کټیره،دو نـــو دښاخونو دو هلو له‌پاره تبر،دلیوانو اوپړانګانو دویشتلو اودمقابل لو ری‌سره‌د لیری‌جګړ ی له‌پاره ټو پـــك دځانونو سره ګرزوی .بر سیره‌پدغو شپانو چاکواو ډانګ‌هم لری.

(۲) بانډه : دری ډوله با نـډی وجودلری.
اول ــ هغه‌څوك چی دګلی څخه‌جلا په‌څه فا صله لری دخپلی ځمکی خواکی‌کور جوړ کړی دګلی خلـك دغه شان ځانګړ ی کور ته با نډه وایی .
دویم ــ ځینی خلك په اواره او په‌غرو نو کی ځمکی لری.دوی په غرو نو کی دخپلو ځمکو خوا ته‌څو کوټی جوړ ی‌کړی وی .څه‌و خت‌چی دجوزا په میاشت کی‌ګر می ډیر ه شی ، دځینو کورونو ټول وګړی‌یا ځینی‌نارینه دخپلو میرمنو اوماشو ما نو سره خپلو بانډوته ځی اود جوزا نه‌د سنبلی تر پایه په‌بانډوکی اوسیږ ی.اوچی هوا سړه شـــی بیر ته دکلیو کورونو ته‌راکښتـــه کیږی.
دریم ــ دشپنو بانډی اکثره په خرڅایو نو کی‌جوړ ی شویدی . بانډه یوه یا دوه څلور کونجه‌کو ټی دی‌او څلورواړه دیوالونه یی دوه‌یا دوه‌نیم متره جګوالی لری.دیوالو نه‌دتیږو اوختو څخه جوړیږ ی اوپه‌هر نیم مترکی دنښتر اوږده لرګی په دیوالونوکی دی‌چی دیوالونه ټینګ وساتی.دبانډ ی‌دروازه یایوه دړه یاارېکی دوړ ختو (غزو)دلښتوڅخه**

زمی له پاره شپو لونه(١)جوړکړی‌دی. دحوت په میاشت کی رمی لـه
کلیو څخه حرکت کوی‌اوپه‌غرونوکی مخ پور ته دڅړځایو نو خوا تـه
روانیږی که‌کال بارانی وی او د څړ ځایو نو وا ښه‌پریمانه و ی ،
شپانه خپلی رمی دمینی یا د هوا ترسړ یدو پوری دبانډو په شاو خوا
څړځایونو کی‌پیایی . که کال و چ وی، دبانډو دڅړځایو نو وا ښه‌بسیا
نه‌کوی نو مشوانی له خپلو بانډو نه‌کوی نو مشوانی له خپلو بانډو
او څړځایو نو څخه تیریږ ی او د مالخرو نو په‌لټه ځینی جندول‌ځینی
دشینوارو شیګل او ځینی دنور ستا ن غرو نو ته پورته‌کیږ ی . د
وچکال په دوران کی د مشوا نیو ګو جرو او نورستا نیوشپنوتر منځ
په مالخړو نو خپل منځی شخړ ی‌اوجګړی‌پیښیږ ی . دسنبلی‌په میاشت
کی دمشوانو رمی بیر ته د دری په‌لور حرکت کوی اوپه غرو نوباندی
دسړو دپیل کیدونه مخکی دری ته‌راښکته کیږی . شپا نه دعقر ب ،

---

**اوبدلی دروازه)لری دواده‌لرو نکو شپنوسره دهغوی ښځی‌اوماشوما ن
درمو سره یوځای‌بانډوته ځی. پد ی برخه‌کی دپښتنواونورستانیانو دود
توپیرلری .په‌نورستا نیا نو کـــی‌دنارینه او ښځی تر منځ‌دکارو یش
داسی شو یدی چی ښځه دزرا عت‌او نارینه دمالدار ی کارکوی.

دنوروستا نیانو دود له مخی ښځه بانډی ته‌نه شی راتلای .دوی‌عقیده
لری چی که‌ښځه بانډی ته‌را شی‌د هغی راتګ دوزو،میږو اوغواوو په
شیدو او کوچو ناوړه اغیزه کوی. پښتانه شپانه درمودحرکت په‌وخت
کی دخوړو شیانو، دکورضرور ی سامان اونور په خروبار بانډو تـه
وړی . بانډ ی ته درسیدوورو سته دکلی او بانډی ترمنځ‌تګ را تګ
جاری‌وی .شپانه دبانډو څخه په‌خرو بارغوړ ی ،وړی ، وژغنی ،چکه د
حلال شوو ما لونو غو ښه‌او پوستکی کلی‌ته وړی اود کلی څخه‌دخپلـــو
اړتیاوو شیا ن په‌ګو ډو کی بانډو ته‌راوړی .برسیره پردی کله‌دشپانه
خپلوا ن او کله درمی څښتن هم بانډی ته‌ځی.

(١) شپول: شپول دشپی له‌خوادرمی دپنډولو ځای ته وایی . شپانه
دبانډی‌خواته په‌اوار ځای کی تا دو (بنست) کینی. په‌تادو کی چاپیره‌د
څیړیو لوی ښا خونه نیغ درو ی ،دښاخونوپه‌بیخ کی‌تیږی ږدی‌اوبیا"**

قوس او جدی په میاشتو کی ر می دکلیو شاو خوادغرو نو په لمنوکی پیایی ،پروړه ور ته اچوی اود غره دبی نا غی بر خي څخه ور تهدخیړیو دپاڼو د کی ځا نگی راوړ ی .

**دریم - کسب او کار :**

دپښتنو دټو لني ټو لنیزه طبقه بندی پهدوه ډو له کیدای شی چی یو یی دوینی ارتباط اوبل یی طبقاتي جوړ ښت دی.

دلومړی ډول نه زموږ مقصددادی چی هغه و خت چی پښتنو پر د ی (غیر پښتني ) قبیلـــــــــــی ، لاندی کړی ددو ی سیمی یی دقبیلوی جگړو پهنتیجه کی په خپل منځ کی سره وو یشلی نو هغو غیرپښتنو عناصرو تهچی دجگړی څخهوروسته ژوندی پاتی شوی‌وو او بلی سیمی تهونهشړ ل شو ل ،په ځمکه کـی برخه ورنهکړای شو ه.

کله چی له یوی خوا ځمکه د تولید مهمهو سیله ده او له بلی‌خوا دپښتنو ټو لنه دو یش او قبیلوی جگړو پهو خت کی دټولنیز تحر ك Social mobility څخـــــه برخوردارهنهو ه، همدا ډول دپښتنو

* پهتادوکی‌خاوره اچوی. دخیړیو ښنا خو نه دوړ ختو (غزو نو) پــــه لښتو دیوبل سره کلك اوبی او د خیړ یو دښناخونو څخه دیـــــو ال جوړیږ ی . دشپول پهیوه بر خهکی اړیکی دی . همدغه شان دورغو مو او ورو لهپارهوړو کی شپول‌جوړوی. شپانه په ما ښام کی دراستنیدو وروسته رمه شپول تهننباسی.شپانه اوددو ی میر منی پهما ښام‌او گهیځ کی لنگی وز ی اومیږ ی پهشپول کی لوشی .ور غو می او ور ی له وړوکی شپول څخه را ایله کوی‌چی‌په لوی شپول کی شیدی وروی.د شپاله چاپیره دشپی له خوا در می‌سپی پیر ه کوی اودور ځی سپی د رمی‌سره ځی. دشپنو میر منی‌مستی شاربی، دخوور ځو کو چیو ځا ی وپلي کوی غوړی ټو لوي اود غه غوړ ی یوځای کلي تهوړل کیږی.

دخپل منځی مساوا ت غو ښتنی‌له‌مخی ممکن نه‌و چی پردیو ته په ځمکه کی دپښتنو سره مساو ی برخه ور کړی (۱)

برسیره پرد ی دپښتنی ټو لنی ځینی ضرور تو نه مو جود وو چی ددوی د مساوا ت‌غو ښتنی له مخی یو پښتو ن نشوا ی کولا ی چی د مثال په‌تو گه دبل پښتو ن ږیر ه وخریی . له دی کبله پر دی پا تی شوی عنا صر دکسبی ضرور تو نو له پاره و گمارل شو ل . که څه هم ځمکه لرو نکی پښتانه اوپردی‌کسب گریودبل سره برابر نه‌وو خو پــــه خپله دپښتنو په قبیلوی جوړ ښت کی دمریی نیولو او مر یی کولو خصو صیا ت هم نشته . پر دیو عنا صرو یوازی دکسبگرو په‌جامو کی دکاست Caste او یا پاریا Paria حالت غوره کړ ی دی. که‌څه هم F.Barth دپښتنی ټو لنی کسبگرو ته‌کاست وایی(۲) خو زمو ږ کسبگر ،دمو جوده وا قعی کاست دټو لنی مثــلا (هندو ستان) سره زیات تو پیــر لری.

البته ځینی پښتانه هم د ځینـــو کسب گرو سره تر خپله و سه‌واده نه کوی اوددوی کسب نه غوره‌کوی خو بیا ډوډ ی ورسره خور ی ، په یو ه‌ځای دلمانځه په صف‌کی و ر سره دریږی او داسی نور.

له بلی خوا هغه کسبگر چــــی پښتانه یی کسب نه خو ښو ی د شمیر په لحاظ دو مره ډیر ندی ا و داسی نده لکه په هندو ستا ن کی چی ټو له ټو لنه له‌سر نه تر پا یه‌پوری په کاستو نو ویشل شوی‌وی.

---

۱ ـــ و گوری ریسنر: په پښتنو کی دفیو ډالیز م دراولا ړ یدوفعل، آیادا چی پښتنو دهندی قو مو نو څخه چی په‌بز گری بلدوو څـــــه زده کړیدی او کنه زمو ږ نظردادی چی حتما به‌یی زده کړی وی.

2: F. Barth Political ledership Among the swat pathans. P.P 16—22.

دپښتنو دسیا لی شعو ر له مخې‌یو پښتو ن دبل پښتو ن سره مساو ی دی اود هغه سره زور هم‌کوی . خو دا چې دیوه کسبګر سره ځان نه مساوی کوی نو لا نجه هم‌ورسره نه‌کوی. مثلا په‌قبیلوی‌جګړو کې‌په هغه چاوز ی نه‌کوی چې و رسره مساوی نه‌و ی لکه نایی،ښدځه، او یا ما شوم .ځکه‌که چیر ی پـه‌قو می جګړه کې له‌یوی خوانا یی‌او له‌بلې خوا کوم پښتون ولګیږ ی نودواړه سره مساوی شو ل، نو داچې نا یـــی او پښتو ن سره مساوی‌نه دی بایده دی چې دهغه سره‌دزور نه‌کار وانه خلی . نو هغه نامساو ی‌حالت چې دپښتنو او کسبګرو تر منځ مو جود دی بیرته دد ا ســـی Taboo په واسطه انډول کوی .*

بر سیره پرد ی انډول کو لو په‌زیاتو پښتنو قبیلو کې پخوادا سی رواَج مو جود و چې کله به چې‌ځنې‌مهم کسبګر لکه سلمانیان د خپل اقتصاد ی حالت دښه‌وا لی له امله‌هغه حدته ورسید ل چې دو ظیفی دنه اجرا کولو ډار به ځینی پیـداشو نو بیابه ټول کلی راپاڅید ه‌او هغه‌به یی چور کړ . او س چـــی‌پښتنی قبیلی دپخوا نی تجر ید ی حالت ځخه‌و تلی اودماشین او پا ښی(پاکی) رواج زیات شویدی نـو د

---

* دا اصطلاح د هغه څه له پاره استعمالیږ ی چې په یوه ټا کلـــی ټولنه‌کې‌مخصوصاپه اخلاقی اومذهبی‌لحاظ ناروا او ناجایز ه بلل کیږی. دلته منظور دادی چې دپښتنا نه‌د پاره نا مناسب او ناروا کار دی چې ځان دیوه کسبګر سره‌په‌سیا لی‌کی‌وا چوی . دا البته د پخوا نیوابتدایی دودو نو له مخی ده چې دپښتنی ټو لنی له او سنیو ارز ښتو نوسره سر نه خوری.

سلمانيانو په مقا بل کې هم هغـه پخوا نی رټ سخت و ضعیـت

له منځه تللی دی. دپښتنی قبیلو ، تجر یدی حالت او دا چی ټو لنیـز

تحرك په ډیره کمه اندازه سره مو جود و نو همدا ډول دپښتنو دکسبی

کر کی له کبله د پښتنی قبیلو ورو سته وا لی لا پسی محکم کړ. پښتنو

یواز ی سوداگری او بز گری کوله حتی دکاندار ی هم دهندوانو او یا

نورو پردیو اتنیکی ډ لو کارو(۱).

حتی هغه و خت چی پښتنو ددرانی احمدشاه په و خت کی یو مر کزی

دو لت جوړ کړ اکثر مهم کسبونه دغیر پښتنو په لا س کی وو . له دی

کبله دتولید ی قواوو انکشا ف دیوه غیر پښتو ن اقلیت په لاس کـــی

ور غی چی دخپل کم فز یکی قدر ت له امله یی دچټك پر مختگ مخـــه په

ځان کی نه لیدله.

---

۱ ــ و گوری انگلزد Afghanistan ترعنوان لاندی مقاله MEW, 14 Bd.

Wirtschaft und SozialSystemeein Zentralasiem, eine Kompara tive Analyse Entwicklug StrategineMunster /W. 1974

همدا ډول و گوری جان زیر کیا ردډاکتر ی تیز س: Stammesgesellsch: af, Ibid.

وو اوځينو غړو دنورو غړوپه‌مقابل کی کوم داسي زيات شيان نه در ـ
لودل چي هغوی دسلطي لا نــدی راو لی اودوی ور باندی حکمفرمايي
وکړی. بيا هم دقبيلوی ژو ند د شرايطو له‌کبله قبيلوی ټو لنــی
مجبوری وی چي ددا خلي اوخار جي چارو له پاره داسي مشرا ن ولری
چی له يو ی خوا دقبيلي دواحدونو تر منځ امنيت‌و سا تی ،خپل‌منځی
شخړ ی اواری کړی او له‌بلي خوا دباندنيو قبيلو سره دسو لی ا و
جګړی په دوران کی لاربنوو نـــه‌وکړی . پدی دوره کی دمشری له
پاره‌فزيکی قو ت، شخصيـــــت ، استعداد ، پو هه او زړور تيااساسي
خصو صيات‌وو.

هر چاچي دغه خصو صيـــــا ت‌درلودل هغوی د قبيلي دواحدو نو
مشر توب تر لا سه کاوه .دمشرانو صلا حيت ا و قدر ت به خپل سرنه
وبلکی دوی (په‌برابرو کی اول) Primusinter Pares حيثيت‌درلود.
دو ی په ټولو قبيلوی چارو کی يا دقبيلي دوا حدو نو دغړو او يا د
وا حدو نو دمشرانو سره جر ګــه او مشوره کو له چی تل‌دمشرانو
دجر ګی او مشوری ورو سته‌دټولو مسالو په‌باره کی پريکړی او اقدام
کيده . د ګډ قبيلوی ملکيت پــه سيستم کی د ملکی او خانی‌موسسو
ځای نه در لود او له دغه‌و خت را هيسي‌تر او سه ددو ی دټو لنيز و
روابطو څخه منځته را غلی .په‌پښتو ژبه‌ک ی‌دملك او خان له‌پاره‌مترادف
اصطلاح و جود نه لری . دوی په پښتوژ به کی‌يواز ی د «مشــــر»
اصطلاح لری چي دغه دعمرپه‌لحاظ مشر( مشر ورور، مشر تره ،مشر
دتره زوی ، دکور مشر،مشرنيکه ) اودټولنيزو سياسي مو قف په‌لحاظ
مشر ( دکهول مشر ،دپلر ګنی‌مشر، دخيل مشر، دقبيلي مشراو نورو)
له‌پاره يو شان استعمالوی .د(ملك) اصطلاح له عر بی ژبی څخه او د
«خان » اصطلاح له مغلی ژ بی څخه‌مروج شويدی . عربود «ملـــــك»
اصطلاح دپاچا يا مشر له پـــا ره‌استعمالوله او په مغلی ژبه کی(خان)

دقبیلی مشر ته‌ویل کیده چــــــی دچنگیز په دوره کی اوله چنگیزنه وروسته «خان»د مغلی امپراتورانو لقب‌و.

دپښتنو له تاریخ څخه‌څرگندیږی چ ی‌په دوی کی د«خان»په‌پر تلــــه د (ملك) اصطلاح مخکی رواج‌مو ندلی‌دی څکه چی دپښتنو سیمو ته له مغلوڅخه عرب مخکی راغلی دی . همداشا ن ددوی داقتصاد ی ا و سیاسی تکا مل څخه څرگند یږ ی‌چی دخانی مو سسه د ملکی‌دموسسی پرمختللی بڼه ده. داو سنیو قبیلو دملکی او خانی دمو سسو څخه هم څرگندیږ ی چی ملك دخا ن په پرتله په اقتصاد ی ،سیا سی ، او ټولنیز لحاظ په دو یمه در جه کی‌راځی او یوخان په خپله سیا ســی حوزه کی څو نفره ملکان تر لا س‌لاندی لری.

په قبیلوی ټو لنو کی دخا نی مو سسه دزما ن او مکا ن‌په‌لحا ظ توپیر‌کوی . دتاریخی تکا مل له‌مخی په‌ځینو قبیلو کی خانی دمر کز ی دو لت دجاگیر په واسطه اوپه ځینو قبیلوکی دخپل ټو لنیز اقتصا د ی تکا مل په اساس منځته راغلی ده. تراو سه ځینی داسی قبیلی‌و جو د لری چی په هغو کی په وا قعی‌مفهوم دخانی مو سسه وجود نه لری اوتر او سه ددوی مشرا ن دملکانو پــه‌نو مو نو یادیږی. هغه قبیلوی‌ټولنی چی مخکی دمر کز ی دو لت‌داداری لاندی را غلی دی او یاپه سیاسی لحاظ مخکی‌ورسره مر کزی دو لت ارتباط پیداکړ یدی پدی ټو لنو کی هم دخانی مو سسی مخکی سر را پورته کړی دی. (دپیښور ختك‌اود کندهار ابدا لیان ).

په ا و لسمه پــیړی کــی د هند مغلی دولت دپیښور په وادی سیاسی سلطه ټینگول غوښتل .په دی و خت کی دختکو دقبیلی ویش دود دزوال سره مخا مخ شوی‌و او په قبیله کی شخصی ختیځ ډو له خصو صی ملکیت انکشا ف کړی و اودیوسفزو په‌پرتله په دوی کی‌زیات اقتصاد ی‌او ټو لنیز توپیر څــــای‌مو ندلی‌و .ختك په اقتصاد ی ، او ټولنیز لحاظ بهر نی نفوذ ته‌آ ماده‌وو. دختکو مشر اکوړه دلویو لیارو دساتلو دحفاظت په بدل کی‌دمغو لو له خوا جاگیر(۱) وما نه. دجاگیرله

کبله دقبیلی دننه داقتصـــاد ی ، اجتماعی او سیاسی توپیر له امله‌د خانی مو سسی طبقا تی بنه غوره کړه. داحمد شاه درانی (۱۷٤۷ - ۱۷۷۳) تر مخه دپخوا را هیسی‌دهند او ایران دجاگیر عنعنی داحمد شاه په هغو قبیلو کی چی‌دمر کزی دولت داداری لاندی راغلی وی اویا اداری واحدو نو ته نژ دی‌پرتی‌و ی دخپلو مشخصو شرایطو لاندی‌رواج موندلی‌و .احمد شاه دجاگیر عملیه پراخه‌کړه . ده دابدالیانواود نو رو قبیلو مشرانو ته جاگیر و نـــــه ورکول.

پدغی پیړی کی چی په ختکو کی جاگیر داری خاي‌و نیو په‌یوسفزو کی‌و یش دود په تول قو ت روان‌و. دې وسفزو دتو لنی دو یش دود د اقتصا ی جوړ ښت او اجتما عی روابطو له‌کبله باندنی سیا ســـی سلطی ته ځای نه‌شو ورکولا ی . همدا علت‌و چی دوی تل د مغلـــی دولت په ضد په جګړو بو خت‌و.د یوسفزو دخانی مو سسی دد وی د داخلی او خار جی عوا ملو له‌کبله وده‌کړی‌وه دو یـش په دو ر ه کی هغو مشرانو چی‌تر شا یـــــی قبیلوی فز یکی قوت (ملا تړ) ولاړ و دشخصی استعداد په واسطه یې‌د قبیلی دوا حدو نو لار ښوو نه‌کوله. دوی به دمشری داضا فی لګښت‌په خاطر دګه ملکیت ځخه ځه ځمکـه‌د (مشرانی) په نوم ور کول کیده.له‌یوی‌خوا په‌و لسی ځمکه کی دد وی

---

(۱)دلږ بارانه سیمو مر کز ی دو لتونو به دشا هی کور نی غړو، لویوبیرو کرا تانو، عسکر ی لو ړ رتبه سر دارانو او قبیلوی مشرانو ته دهغوی دخد متونو په مقا بل‌کی دو لتی یا؛ دربار په ضد دباغیا نو ضبط شو ی ځمکی دجاگیر یااقطاع په‌نوم ور کولی . جاگیر دار مکلـف وچی و فادار وی . دضرور ت په‌و خت کی یی پوځی ملاتړوکړ ی. دو لتی مالیه راټو له‌کړ ی ا و مخصو صا قبیلوی مشر خپله قبیله ددربارد خد مت له پاره چمتووساتی دلویدیځی نړی دفیو ډا لی دور ی دخصو صی ملکیت بر عکس جاگیرخصو صی بڼه نه درلوده او ځـه وخت چی به دجاگیر دا ربه‌وفاداری شك پیدا شو دهغه جاگیر به نورو ته‌ور کول کیده.

حق‌خو ندی و او له بلی خوادمشرانی ځمکه دو لسی و یش شخه و تله او ددوی په لاس کی یی تمر کز کاوه قبیلوی فز یکی قوت دنوروپه‌تنا سب تقویه شوی اقتصاد ،شهر ت‌او په آینده کی نورو اقتصادی‌گټو دیو سفزو مشران دی ته هخو ل چی په گاو نه یو پښتنو او غیر پښتنو قبیلو یرغلو نه وکړ ی . ددوی ځمکی و نیسی او په‌نوونیول شوو ځمکو کی دمشرانی په نوم نور ی ځمکی ترلا سه‌کړ ی . د یوسفزو غو ندی دباجوړ ، دیر اوجندول په تر کا ڼی (تر کلاڼی)قبیله کی د ملکی اود ملکی ځخه دخانـی‌مو سسی تکا مل کړیدی .

پیښورته‌دانگریز انو د را تگ څخه وروسته دځمکو دریفور مو نو په‌وجه دانگلیسانو دادارې سیستم‌لاندی داوار ی سیمی دیو سفزیو او نورو قبیلو پخوا نی اقتصـــــادی‌سیستم له منځه ولاړ اود هغه په ځای خصو صی ملکیت را منځته شو . همد غه شان په کال ۱۹۲۸ کی‌دسوات په سیمه کی و یش‌دود پای‌ته ورسید او دلته هم‌خصو صی ملکیت ته لاره خلا صه شوه. له‌دی وروسته هغو اشخاصو چی د یری ځمکی او ډیر زراعتی تولید یی درلود داضا فه تولید دعوایدو په‌نغدو پیسو یی‌نور ی‌ځمکی هم‌وا خیستلی‌چی په نتیجه کی دځمکی دزیا ت تمر کز له‌کبله دخانی مو سسه‌قوی‌شوه اودخانی‌د موسسی سره‌جوخت دشتمنو او نیستمنو طبقوتر منځ توپیر هم زیات شو.

په افغا نستان کی دپخوا راهیسی‌ځینی قبیلی دمر کز ی دو لـــت دادار ی سیستم دباندی نیم‌آزا ده‌او سیدی چی داحمدشاه نه ترامیر عبد الرحمن خان (۱۸۸۰-۱۹۰۱) پوری مر کز ی دو لت‌ددغو قبیلود عنعنوی قبیلوی جوړ بنت دننـــــه‌مستقیمه مداخله‌نه کوله. مر کز ی دولت ددغو قبیلو مشرانو ته جـا گیرو نه او نور امتیازا ت ور کول چی دغه مشرا ن ددو لت او قبیلو ترمنځ ارتباطی رول و لوبوی او د هغوی په‌واسطه دغه نیم آزاده‌قبیلی‌مرکزی دو لت ته و فاداره و ساتی اود مر کزی دو لت په ضد د هغوی‌دبغاو تو نو مخنیو ی وکړ ی.امیر عبد الرحمن خان ځینو نیم آزادو قبیلو ته مر کز ی اداره‌وغزوله.

دمرکزي دو لت داستحکام په پلمه د ځینو قبیلو هغه مشران چې یاد مر کزي دو لت دېرا ختیا او مدا خلې په ضد وو یا هغه ته وفادار نه‌وو یادده در قیب ملګري وو او یاپه آینده کې ددرباروړخنې ډارکیده ، بندیا ن ، فرار او مړه کړل. خو بیا هم ددې عمل په‌نتیجه کې‌کوم زیربنایي بدلون رانه غی. بلکې دایو ډول دختیځ د دو لت په بڼه کې د ځیر و بد لول‌و. دو لت خپل‌مخا لفین لرې کړ ل اما دهغوی ځای یې خپلو و فادارو قبیلوی مشرانو ته ور کړ . پخوا به قبیلوی مشرانو دمر کزي دولت او قبیلي تر منځ ارتبا طي رو ل لوباوه .او س نوو ځیرو په محل‌کې دمحلي بیروکراتانو او قبیلي تر منځ دامنیتي چارو دساتلو دنده په غاړه‌وا خیستله.

دوی په امنیتي چارو کې مرسته‌کو له ، خپله قبیله یا دقبیلي ، واحدو نه یې دربار ته‌و فادار ساتل اود دربار په ضد عنا صرو په ضد یې‌عمل کاوه چې د محـ لي بـیرو کراتانو سره مر سته په‌وا قعیت‌کې ددوی له خوا دربار ته دعملي‌وفاداري ثابتول‌و.

دامیر عبد الرحمن نه تراو سه پو‌رې تغیر دمر کزي دو لت‌اود قبیلوی مشرانو روابط په خپل حال پاتي دي *

دپښتني قبیلوی ټو لنې دخاني‌او دلویدیځ دکلا سیک فیو ډالیز م د موسسو تر منځ توپیرو نه و جو د لري. دزما ن او مکا ن اود لویدیځ او ختیز د مشخصو شرا یطوله‌کبله توپیرو نه ډیر دي اما مونږ دلته په ډیر اختصار دخاني او فیو ډا لي دمو سسو تر منځ اساسي او عمده توپیرو نه پـه‌لاندې ډول وړانـدې کوو:

۱ ـ قبیلوی روابط :

دفیو ډالیز م په دوره کې‌قبیلوی روابط له منځه تللي وو. دخاني د مو سسې یو عمده خصو صیت ، قبیلوی روابط دي. کوم خان چې

---

* دغه ټکي د ۱۳۵۷ کال د ثو ردانقلاب څخه مخکې و ختونو ته‌متوجه دي . او څر نګه چې دغولیکوا لوخپل ریسر چ او لیکنـه پـه ۱۳۵٦ کال کې پای‌ته‌رسو لې وه‌نو ددوی دا خبره درسته ده- اډیټور.

قبیلوی فز یکی ملاتړ ونه لری هغه د کورنی دسیال (تربور) یاد قبیلی د وا حدو نو او یادنو رو قبیلو ، د سیالا نو درقابت او مخالفت پــــه مقابل کی کمزوری وی.

قبیلوی روابط او فز یکی قو ت (ملاتړ) هغه دی ته مجبوروی چی د قبیلی دغړو ، دقبیلی دوا حدونــو اودنورو قبیلو دمشرانو سره تـــر خپله و سه ښه روابط و سا تی اود پښتو نو لپی دکود په اساس قبیلوی چلند وکړی. قبیلوی غړ ی دآزادو ایجنټا نو (نمایندګانو) حیثیت لری. په قبیلوی ټو لنه کی حجره دخان د اجتما عی او سیاسی مو قف ، د ساتلو اساسی مر کز دی .په حجره کی د خلکو اجتماع او جرګی کیږی. خان دحجری په واسطه دقبیلی دغړو اود قبیلی دوا حدو نو اودنوروقبیلو دمشرانو سره روابط سا تی او دخپل اجتما عی او سیاسی مو قف دساتلو په خا طر په حجره کی په ډوډی ور کولو او میلمستیا وو خپل زراعتی اضا فی تولید مصرفوی . که چیر ی یو خان قبیلوی روابطو نه ساتی ، ډوډ ی او میلمستیا و ی ورنه کړی نود هغه دقبیلی غړ ی د هغه د مخالف سیال تر شادرېږ ی. په قبیلوی ټو لنه کی دفز یکی ملاتړ اړ تیاو ی اود قبیلی دغړو دسیال نفوذ هغه خپل سره چلند اومطلقی وا کمنی ته نه پریږ دی. همدا علت دی چی د قبیلی دعمده مسا یلــو دحل اساسی مر جع دخان په خا ی ولسی جر ګه ده.

## ۲- خصو صی ملکیت :

د فیو ډا لیزم په دوره کی، د فیو ډال خصو صی ملکیت قانو نا تثبیتو ، پاچا او دو لتی ارګانو نو دهغه دمصا در ی او ضبط اختیار نه درلود.

دخان خصو صی ملکیت در بار او دو لتی اور ګانونه په هرو خت کی چی د هغه په و فاداری شک پیدا شی مصا دره اوضبطولا ی شی .د ختیځو ټو لنو دتاریخی مشخصــــو سیاسی شرایطو له کبله خصو صی ملکیت قانو نی مصوو نیت نه در لود بلکی هرو خت چی دربار غو-ښتلی له یو شخه یی اخیستلی او بل ته یی ور کړی دی.

**۳ ــ Monogamy يا يوه ښځه کول او Polygamy پولی گا مي يا ډيری ښځی کول:**

دعيسوی مذهب د حکم سره سم فيو ډال پهيوو خت کی ديوی ښځی سره نکاح کو له. خان دښځو ،د خپلوی پهواسطه دنورو قبيلو سره دروابطو ټينگولو ياد ډيرو زا منو دفز يکی قوت په هيله پهيوو خت کی ترڅلورو ښځو دنکاح اجازه لری *. طبيعی ده چی ديوی ښځی اولادلږ اود ډيرو ښځو اولاد ډيروی .

**٤ــ ميرا ث :**

دعنعنی له مخی دفيو ډال(جاگير) دهغه دزا منو تر منځ نهويشل کيده بلکی ټول جاگير ياد هغه مشر زوی ته او ياد هغه دوصيت په اساس يوازی يو وار ثتهرسيده . دفيو ډالی اساسی اقتصا د ی بنسټ ځمکه ، نه تجز يهکيده بلکید پلا رڅخه زوی دزوی څخه لمسی اوداسی نورو ته سلا مته پاتیکيده او ترآخره يی پهکورنی کی تسلسل مو ند ه. دخان خصو صی ملکيتدهغه دزا منو يانورو وار ثا نو ترمنځ مساو ی ويشل کيږ ی. دخـــا ن خصو صی ملکيت يعنی ځمکهدهغه دډيرو ښځو دډيرو زا منو تر منځ وروسته دلمسو اوداسی نورو را ــ تلونکو نارينه اولا دی تر منځ توټه ټوټه کيږی چی په دوه دری نسلونو کی دځمکی دير له پسی تجز يـــی په نتيجه کی دخان اولاده تش پـــه نوم خانان پاتی کيږی . دوی دواړه مالك(خورده مالك) قشر ته راښکته کيږی، چی د اقـــتصاد ی بنســـټدکمزور تيا له کبله د هغوی د نيـــکه غوندی نو کر او بز گر نهشیساتلای دوی مجبوريږ ی چی يا په خپله د ځمکی بز گری و کړی او يابل کسب غوره کړی. دځمکی تجزيه کيد نه

---

* دڅلورو ښځو دنکاح اجاز ه داسلام ددين له مخی لری نه ديوی دغسی هيلی له مخی ــ اديتور.

اساسی عامل دی چی په قبـیلوی ټولنوکی دډیرو ځمکو او بی ځمکو پهپر تله دلږ ځمکو شمیر د پرزیات دی.

### ۵ ـ دپاچا بدلون :

دفیو ډال په خصو صی ملکیت سیاسی او ټولنیز دریز( مو قف) اغیزه نه کو له . هغه دخپلی حوزی دننه دسیاسی عدلی، اداری اوقانونی چارو مسوو ل و. خپل عسکر ا و نو کریی لرل . دضرور ت پهو خت کی هغه دپاچاعسکری ملاتړ کاوه مالیه یی ور کو له اود فیو ډالا نو دپار- لمان دغړی په حیث دپاچا سیاسی سلا کار هم و.

دپاچا بد لون دخان په خصوصی ملکیت ، سیاسی او ټو لنیز در یځ اغیزه کوی. هغه په خپله سیمه کی سیاسی، عدلی ، اداری او قانونی چاری نه تر سره کوی بلکی دد ی چارو دچلولو له پاره دمر کز ی دو لت ما مورین موظف دی. نوکران لری اماشخصی عسکر نه شـــی ساتلا ی. دضرور ت پهو خت کی دپوځی ملاتړ له پاره هغه دقبیلی غړی او شخصی نو کرا ن لیږ ی. پههغو قبیلو کیچی د خانیموسسی وده نه ده کړی مشران یید ملکانو پهنوم بلل کیږ ی. ملکان دوهډوله دی:

اول ـ دقبیلی یو نفر دحکومتی اورگانونو اود خلکو په خو ښـــه دملک پهنوم ټاکل کیږ ی. ملك د محلی بیرو کراسی اودو لس ترمنځ ارتباط دی . ملك په دو لتی چارو کی د محل د مختلفو شعبودماموریتو سرهمرسته کوی. دی ډول ملکانو ته دو لس له خوا په در مندو نوکی غله یانغده تنخواور کوله کیږی.

**دو یم— هغه قبیلوی مشران چی** په‌قبیلوکی دملکی حیثیت لری.

په دوی کی ځینی دا سی ملکان (**لکه دما مو ندو عبد الحکیم ، او شازاده) شته چی داقتصاد ی ، اجتماعی او سیاسی مو قف په‌لحاظ دډیرو خانانو څخه پورته مو قــف لری.ځینی کور نی دملکانودکورنیو په‌نوم شهر ت لری . یوو بخت‌ددوی** مشران لوی ملکان وو اما او س **په اقتصاد ی او اجتما عی لحا ظ دتیرو مشرانو موقف‌نه لری .ولس ورته دکورنی په‌و جه ملك وا یی . په ما موندو ، مشوانو گر بز و، او بړیڅو کی خانان نشته .ددو ی‌مشرا ن دملکانو په نو مو نو بلــل کیږی.**



# قبیلوی او ټولنیز جوړښت

تولی پښتنیٔ قبیلی یو ډول ټولنیز اقتصادی جوړ ښت‌نه لری . د کوچیانو ، نیم میشت او میشت قبیلو جوړ ښت اوټولنیز روا بط دوی داقتصادی تولید اودمرکزی ، دولت‌سره دسیاسی او ادا ری ارتباط در لود لو اویانه درلود لو په لحاظ توپیرلری . هغه میشت پښتنی قبیلی چی د مرکزی دو لت دسیاسی پولو دباندی په آزادوسیمو کی اوسیږ ی. په‌ځینو کی یی د خانی مو سسی منځته راغلی دی‌او خانان د مسلط سیاسی قدر ت‌په حیث دلاس لا ندی قبیلوداقتصادی، اجتما عی او سیاسی چارو ادار ه‌چلوی(۱) او ځینی دخانانواوروحانی شخصیتونو نه پر ته په نسبی‌توگه‌مساو یانه دقبیلوی دو دو نو په اساس و لسیژ و ندکوی .(۲)ځینی قبیلی آزادو قبیلو ته څیر مه پرتی دی ، دو ی دآزادو قبیلو سره د وینی ارتباط لری .په سیاسی لحاظ دوی دمر کز ی‌دو لت‌تداداری لاندی‌دی ، اما په‌وا قعیت کی دا قبیلی ډیری چاری دمر کز ی قوا نینوپه‌ځای دقبیلوی دو دو نو په اسا س

---

(۱) لکه دباجوړ دبرم خیلـــو خانان ، دو زیر ستا ن روحا نـــی شخصیت نیاز علی خان او نور ...

(۲) دباجوړ سالارز ی ،ما موند مهمند او نور.

**فیصله کوی (۱) ځینیقبیلیدمرکزی** دولت داداری **وا حدو نو دننه یادغو وا حدو نو ته نژ دی پر تی دی . هغوی تر او سه قبیلوی جوړ ښت ساتلی دی اود مر کز ی دو لت** قوا نیناو **قبیلوی دو دو نه دو اړه** پهدوی کی چلندلری.

پهځینوقبیلوکی دښار یتـــو ب **ژو ند پر مختللی دی او دښاریتوب پهو جه دمر کزی دو لت قوا نینو** دقبیلوی دو دو نو ځا ی نیو لـی **دی(۲)**

## ۱ـد پښتنی قبیلوی ټو لنـــیټـــو ټـــه یـیز (Segmentary) خصو صیات:

مخکی له دی چی دپښتنیقبیلوی ټو لنی ما هیت او خصو صیا تـو تهراشو ښه به داو ی چی د هغـو ټولن پو ها نو نظریی وړ اندی کړو کو مو چی پښتنو قبیلو تهور ته پهنورو قبیلو ځیړنی کړی دی . فرا نسوی ټولنپوه ورکها یـم (Durkhaim) دټوټه ییـــز و (Segmentary) ټـــو لـــنو پـــه هکله وایی چی په دی ډول ټو لنو کی میکا نیکی ملا تړ مو جودوی، دکارویش پکی لږ دی او لهیونژاد څخه متشکله دی .ددی ډو لټولنو سیاسی تما میت دمر کز یت پـه خـا طـر نه بلـکـی د (Lineage) (نسب) یاټبر په اساس وی او د ټو لنی هر وګړ ی دیوه (Lineage) یانسبغړ ی وی.

---

۱ ــ ددانګام سالارز ی،ما موند دخو ست ګر بز او نوری . زمونږ دځیړ نو اساسی سا حی داقبیلی تشکیلوی .

۲ ــ پهپښتنی ټو لنه کیدکند هار ښار دپښتنو دښاریتو ب ښه مثال دی. احمد شاه درا نـــی (۱۷۴۷ـ۱۷۷۳) دکند هار او سنی ښار دمر کز ی دو لتپایتخـــت وګرزاوه. هغه د مختلفو قبیلو یـو شمیر غړ ی دښار په مختلفو ناحیو کی میشت کړل . سره له دی چی اوس هم دښار ناحیی دقبیلوپهنوم یادیږی اما دوی د ښاری تـــو ب (Urbanisation) د عملیی پـــــه وجه قبیلوی دو دو نه له لا ســه ورکړی دی.

همدا شان انگلیسی ټو لنپوه ماير فور تس (Mayer Forts) دافريقا دتالين زی (Tallensi)قبيلی دمطالعی په‌ترځ کی وايی په‌ټوټه‌ییزه ټو لنه کی داسی یو شخص یا څو اشخاص وجودنه لری چی‌حکو متی يا اداری قدرت یی په لا س کی‌وی بلکی قدر ت دډلو (گروپونو)ترمنځ په افقی تو گه په مساو ی ډول‌ويشل شوی دی او په سیاسی لحا ظ د ټولنی ټول وا حدو نه یو شـــان دی.

دټو لنی دغه گرو پو نه یـــــا وا حدو نه دټو لی قبیلی جوړونکی برخی‌دی او له‌پورته څخه‌ښکته‌ټول وا حدو نه دیو بل سره ار تباطلری او له‌ښکته څخه وړو کی وا حد په‌پورته لوی وا حد کی ننوځی...لکه دحجرو په‌شا ن داټول کو چنـــی‌وا حدو نه دلوی وا حدپه‌و جود کی په مساو ی او مشابه ډول یوځای‌شوی دی . . .ايوانسس پر يچا رد (Evens—Pritchard) او ما یر فور تس په( افریقا یی سیا ســی سیستمو نه) نو می کتا ب کـــــی ټوټه ییزی ټو لنی (Legmentary) په‌لا ندنی تو گه په دوه ډو لـــــه ویشی:

اول- په داسی ټو لنو کی ځینی یی مرکزی حاکمیت اداره او قضا لری. په‌کو موټو لنو کی چی‌مرکزی حکو مت منځته راغلی دی پـــــه اقتصادی لحاظ دا ټو لنی‌پرمختللی دی اود اقتـ صاد ی مو قف په‌و جه ځینی اشخاص سیاسی امتیازا ت او قدرت لری . دوی په دی ډ له کی دافریقا زولو (Zulu)نـیـــو ا تـــو (Nywato) بیمبا (Bemba) ، کید ی (Kede) او نـــــو ر شا ملوی.

دویم - دو همه ډله هغه ټولنی‌دی چی مر کزی قدر ت(۱)مرکزی

---

۱ - زیگریست دانگلس‌اوویبر په استناد وایی چی مر کز ی‌مقام یو(عا مه) قدر ت دی‌چی خپل ، کنترول و جیبه او لزوم د هغـــــو فر یکی مجازاتو په‌واسطه‌تحمیلولی شی کوم چی دعوا مو له خوا منل شوی وی.

حکو مت یا اداره او مر کزی قضا نه‌لری . په دی ټو لنو کی پـــه اقتصاد ی لحاظ پر مختګ نه دی شوی اودټو لنی دغړو تر منـــځ اقتصاد ی او اجتما عی مو قـــف تقریبا یو شان دی. دافر یقـــا تاینیزی او نــــور (Nuer) قبیلی د دی ګروپ بر خی دی. هغـه قبیلی چی مر کز ی‌حکو مت‌نه‌لری ایوانس پریچارد یی ، بی سره یا بی مرکزه (Acephalous) قبیلی بولی (۱) دډیرو انتروپا لو جستانو اوټولن پو ها نو دخیړ نوخخه جو ته معلو میږ ی چی‌دافریقا او آسیا یو شمیر ټو لنی او س‌هم‌دمرکزی قدر ت نه‌پر ته خپلی‌ټولی چاری پرمخ بیایی او په‌تیرو و ختو کی‌خه‌و خت چی طبقا ت منځ تـــه نه‌وو راغلی دداسی ټولنو شمیر بیخی ډیرو .

فریدریك انګلز په‌د (کور نــــی‌خصو صی ملکیت اود دو لت‌منشا) نو می اثر کی دابتدا یی قبیلو ی ټولنو دتشریح په تر خ کی‌دیونان او روم ابتدا یی‌قبیلوی جوړ ښت ته داسی اشاره کوی :.او په خپل ټول ما شو متوب( ابتدایی تو ب) کی ددی قبیلی جوړ ښت عجیبه‌دی. هر شی یی دعسکرو، ژاندار م یا پولیسو ، بی له اشرا فو،پاچاهانو والیانو او قاضیانو بی‌دزندا نونو او محاکمو څخه په منظم ډ و ل چلیږی. دقبیلی غړی یاټو له‌قبیله‌خپل منځی شخړی او قضیی‌پخپله حل کوی (۲)

پښتني قبیلوی ټو لنه ټو ټـــه یــــــز (Segmentary) پـــــلا ر و ا کـــه (Patriarchal) او د خپلــــــو ی (Kinship) یانسبی خصو صیا ت لری ، هره قبیله دپورته نه ښکته دو ینــــی یا خپلوی دټینګ ارتبا ط په لحاظ په خیلونو، خیل په پښنو،ټبرو نو، پښنه په‌کهو لونو یاپلر ینو ا و پلر ینه په‌کور نیو و یشل شویده چی دښکته‌خوانه کورنی په کهو ل یاپلر ینه ، پلرینی په پښنه ، پښنی،

(1 Sigrist Regulierte Amarcire of cil. p. cooff,,
(2) K. Marx and F. Engles: selected works Vol, III, Mascow. 1977. P. 266

ټبـرو نه خپل او خپلو ن په قبيلـه اوقبيلی په مليتکی ننوزی (۱)هره قبيله مشخصه سيمه ، مشخصـه لهجه اود دود او دستور په لحاظ څه ناڅه توپير لری.

دهری قبيلی دغړو شمير پوره نه دی معلوم او نه داحصا يی ،د معلو مو لو لهپاره مر کز ی يـــا قبيلوی اداریوجود لری. هرهقبيله په اټکلی تو گه دقبيلی نارينهغړی چیزلميا ندی او ملا تړ کولای شی

---

۱ ـدپښتو ن ملت لویاکثر يت پهجنو بی ، جنوب ختيځ او جنوب لويديځ افغا نستا ن کیاوپاکستان،اوافغانستان ترمنځ په آزادو سيمـو کی پهپښتو نستا ن اوبلوچستا ن کی ميشت دی. پهتيت او پرکتوگه دپښتنی قبيلو ځينی و لسو نه په منځنی او شما لی افغا نستا ن کی پراته دی. پردی بر سيره دپښتنو قبيلو څخه ځينی په ختيځ ايرا ن، پاکستان ، هند او نورو هيوادو نو کی وجود لری چی دو خت دتيريدو پهو چه دوی ددغو هيوادو نودنورو ولسو نو نهيوی تو لنی څخهبلی نهدکلتور نفوذکولو (Aculturation) دعمليی لا ندی راغلـی او اوسد دغو هيوادو نو دکلتور بر خـــه گرزيدلی ده. دټول پښتو ن ملت وا قعی احصا ئيه تراو سه نشته امادځينو منابعو په حوا له پـــه افغا نستان کی ددوی شمير لس مليو نه او په پاکستان کی اتـــه مليو نه اټکل شوی دی. دپښتنو عامو لس دقام يا مليت اصطلا ح ديوثابت مفهو م په اساس نـــه استعمالوی بلکی پښتا نه کلهدقام اصطلاح دټول پښتون مليت ،کله دقبيلی او کله دخيل په مفهـــوم استعمالوی .ځينی تاريخپو ها ن لکهسيد بهادر شاه،ظفرکاکا خيل «پښتانه دتاريخ پهرڼاکی»(۱۳٦مخ) په عنعنوی تو گه پښتون نژا د د عبد الرشيد ، مشهور په قيس ، څلورو زامنو سړ بن ،غر غښت ، بيټنی او کرلاڼی ته منسوبوی او ددی ډلی تاريخ پو ها نو په نظر دپښتنو هره قبيله له دغو څلورو زامنو څخه ديـوزوی داولاد سره*

حسابوی او په‌عنعنوی تو گه ددوی په‌اړکلی شمیرکی ښځې، نجو نی، ماشوما ن او همسایه نه‌راځي. لکه څنگه چی دقبیلی یو غړی دخپلی زیړ یدنی نیټه دلویو پیښو لکه‌دیو پاچا دتخت دکښینا ستلو په مړ ینی یاد یوی مشهوری‌جگړ ی‌یا دوچکالی یاد آفت دکال او نورو له مخی اټکلوی، همدغه شا ن دقبیلو دنارینه غړو شمیر هم دجگړو په دوران کـی د ملاتړ ، یاد څمکـــو ، غرو نو ،څنگلونو او اورشودویش یا مر کز ی حکو مت ته‌دقو می یا ملیشا یی عسکرو او نورو مسایلو په‌و خت کی تخمینوی او ترڅو چی نوی مو ضوع منځته نه‌و ی را غلی

---

*ارتباط لری.معاصر تاریخ‌پو هان دپښتنو دسا می نژاد نظر یـــه تردیدو ی او دوی پښتنا نه‌دآریایی‌قبیلو څخه گڼې د پښتنو د تاریـــخ په‌باره کی دپښتو خیړ نو بین المللی مر کزځینو نا متو افغا نی تاریخ پو ها نو ته‌پروژه ورکړی ده.دلته مو ږ د تاریخی اړخ څخـــه صرف نظرکوو .د (ټبر) کلمه په پښتو کی په عمو می تو گه‌یاقبیلی او ان په ملت اطلاقیږ ی.وگور ی پښتو قا مو س لو مړی ټوك ۲۸۲ مخ . خودا چی دغولیکوا لو په دی‌ښه دلته استعمال کړی ده ښا یـــی په هغه سیمه کی‌یی پښتنا نه پـــه همدی مفهوم سره استعمالوی چی ریسرچ په کی شوی دی:.ادیتـــور

په ځینو پښتنو سیمو کی لکه غزنی، کندهار ، او نورو کی د پلر ینی په ځای (پلار گنی)کلمه د دغه واحد له پاره* کارول کیږی .

قبيله پخوا نی اټکلی شمير اسا س ګڼي (۱) دټولو قبيلو دغړو شمير
يو شا ن نه دی .دځينو قبيلودغړو شمير دو مره ډير دی چی ترمليون
پوری رسيږ ی ، اودځينو قبيلو شمير دزر ګو نو څخه تجاوز نه
کوی. دقبيلو دغړو شميردقبيلی په خيلونو ، پښنو او کهو ل باند ی
تاثير لري. که دقبيلی دغړو دشمير انداز ه ډيره وی په دی صورت کی
دقبيلی دخيلونو څخه نيو لی تر کهو ل پوری ددوی دشمير اودغړيو
تعداد ډير دی او که دقبيلی دغړيو شمير لږ وی نو خيلونو څخه تر
کهول پوری ددو ی دشميراودغړيو تعداد لږوی. په مختلفو قبيلو کی
ديو کهو ل دنسلو نو تسلسل توپير کوی اما په عنعنوی تو ګه
پښتانه تر اوم پښته پور ی ديوی پلرينی مړه اوژو ندی نارينه او
ښځی ديوه کهول غړ ی ګڼل کيږی. دوی دوينی دارتباط له مخی کهو ل
جوړوی اوددو ی په کهو ل کی هغه اشخاص چی دد وی سره دو يني
نسبی ارتباط نه لر ی نه راځی . په قبيلوی جوړ ښت کی کور نی
وروستی کو چنی وا حد دی.

هره قبيله شفا هي يا ليکلی نسبونه (شجره) لری «۲»د اکثره
قبيلو دشجرو په سر کی وا قعي يا افسانوی«پلار» ولاړ دی . له يوه پلار

---

۱- دامير عبد الرحمن خا ن (۱۸۸۰-۱۹۰۱) په دوره کی
حکو مت دپکتياو لا يت دقبيلوڅخه مليشا يی عسکر نيو ل.قبيلودملاتړ
د شمير له مخی شمير و کړ اود قبيلو دشمير له مخی يی حکو مت ته
مليشا ور کړه. سره له دی چی او س ددغو قبيلو دو ګړو شمير
زيا ت شوی دی اما تراو سه خلك ددغه و خت شمير ته اشاره کوی.
اوپه خبرو کی ځدرا ن نه زره ، منګل نه زره ،تنی دری زره، ګربز
يوزر او مندوز ی زر تنه ملا تړ ګڼي .

۲- ځينو داخلی او خار جی بو ها نو دپښتنو دتاريخ ليکلو په
ترڅ کی دلويو قبيلو شجری ليکلی دی. هر ليکوا ل په خپل و خت
کی دځينو قبيلو شجری ترکهو ل رارسو لی دی .ځينی شجر ی
پخوانی دی او په ځينو نوو شجرو کی ياد ځينو قبيلو ذکر نشته اويا
دځينو قبيلو خيلونه نه دی در ج شوی.

ځخه ټوله قبیله سر چینه ا خلی او دقبیلی ټول غړ ی دو ینی دارتبا ط په لحاظ ځانو نه دغه یوی «پلرینی» ته منسوبوی . ډیر ی لړی قبیلی داسی هم شته چی دپلار په ځای یی د «مور» په نوم شهر ت پیداکړی دی. لکه ځنګه چی قبیله دیو پلار په نوم شهرت مو می ، خیل، پښنی، کهول او کور نی هم دیو نا متو مشر په نوم شهرت پیداکوی .
څو مره چی و خت تیر یږ ی هومره دقبیلی نفو س زیاتیږ ی.د و خت دتیر یدو او نفوس دزیا تیدو له کبله کورنۍ په پلر ینو *(پلرګنو) پلر ینی په پښنو او پښنی په خیلونو بدلیږ ی چی داعملیه دقبیلی پـه چـو کـات کی دننه دپـو ر ته نه کښته دقبیلی ځا نګی زیاتوی .په پښتنی ټو لنه کی دو ینی یا نسب په و جه نږ دی وا لی اولری وا لـی مهم افکتور ګڼل کیږی . که چیری دو ینی دنږ دی ارتبا ط په و جه دوو یا دریو قبیلو دشجری له مخی دیو پلار او یوی مو ر ځخه نشات کړی وی دغه قبیلی دهغو قبیلو په پرتله چی دیوپلار ځخه و ی او مور یی بیله و ی ځانو نه (سکه) بو لی او دمیر نی مور ځخه قبیلی ناسکه، که چیری قبیلی د دوو وروڼو په نومونو بیلی شوی وی ، په دی صور ت کی دمیری مور ځخه ناسکه قبیله د(تره) داولادی ځخه دجوړی شو ی قبیلی په تناسب دوینی دارتباط په لحا ظ نږدی ګڼل کیـږی او دلته دتـره د اولادی ځخه جوړ ه قبیله د(ناسکه) شکل غوره کوی چی په قبیلو ی جوړ ښت کی دنږ دی یالیر ی یاد سکه او ناسکه عملیه تر کور نـی پوری رارسیږ ی . دقبیلو ځیـنـو مشرانو ته دقبیلی نه ترکور نی یا دکورنی ځخه ترقبیلی دخیلونو ، پښنو او کهول تر منځ دسکه او نا سکه شجره معلو مه وی. که چیری دیوی قبیلی غړی د خپلی قبیلی بل غړی ته ځان معر فی کوی د هغـه تعر یف دکور نی ځخه پیل کیږ ی او که چیر ی دبلی قبیلی غړی ته ځان معر فی کوی نو هغه دکور نی نه تر قبیلی پوری ټول وړپیژ نی . ټو لی پښتنی قبیلی له پخوا را ـ هیسی په ځا نګړو سیمو کی پرتی دی اودغه سیمی دقبیلی دخیلونو، پښنو او کهو لونو تر منځ ویشل شوی دی اودکهو ل یاپښنی غړ ی دخپلو ځړځایو نو او زرا عتـــی ځمکو شاو خوا په کلیو کی اوسیږی چی د نو رو سیمو او سیدو نکـی د شخصی سیمی او سیدو نکی د

---

* ـ ځینی پښتانه پلر ینـــه پلر ګنی یاپلار ګنی بولی.اديتور.

قبيلې دنوم په ځاى دسيمى په‌نوم اود يوى سيمى او سيدو نكى يوبل دكلى په‌نوم هم بو لى (۱).

دافغا نستان ځينى مليتو نه لكــه تاجك ، هزاره او نور دپښتنـــو غو ندى دو ينى په اساس ټينګــك قبيلوى ارتباطات نه لرى او دوى دقبيلو يا خيلو نو په ځاى د سيمو په نو مو نو شهرت لرى اودنورو سيمو او سيدو نكوته ځانو نه د سيمو په نو مو نو وريپيژنى (۲)د پښتنى قبيلو دو ينى اړ يكـــــــى «ارتباط» لكه دتاجك، هزاره اونورو غو ندى په يوى شخصى سيمىا و محيط پورى محدودنه دى. دد وى دوينى په لحاظ قبيلو ى ارتبا طد سيمى او محيط نه پر ته هم ساتل كيږى . كه دخه عوا ملو له كبله‌د يو محيط څخه دقبيلى ځينى افراد يافرد بلى سيمى ته ولاړ شى او په‌پلار نى سيمه كى د قبيلى‌دنورو غړو غو ندى ځمكه‌و لرى ددو ى مهاجرت په‌پلر نى قبيله كى ددوى‌د وراثت په حق تاثير نه كوى او نه‌دقبيلى سره دو ينى ارتباط تغيير مو مى اودوى په خپله قبيله كى‌د ملكيت او قبيلوى امتياز حقو قهم له‌لا سه نه‌ور كوى .كه چيرى د مهاجر ت څخه د مخه يا ورو سته ځمكه خر څه كړى اودوى په بله سيمه كى ميشت كيږ ى په د ى صور ت كى دوى په پلار نى‌سيمه‌كى د ملكيت حق‌له‌لا سه ور كوى‌اما ددوى دوينى قبيلو ى نــو م ا و قبيلوى روابط تغيير نه‌كوى.

**فرد او قبيله:**

دپښتنى قبيلوى ټو لنى محققينو دوه ډو له نظر يى وړاندى كړ ى دى . هغو ځيړو نكو چى دټو لنى دغړو په‌واسطه دقبيلوى دو دونو

---

۱ ــ دكونړ او سيدو نكى‌ددانګام اوسيدو نكو ته دانګا مى، ددا نګام اوسيدو نكى دمثال په‌تو ګه‌دډيرى دكلى او سيدو نكو سالار زو تــه ډيروال وايى.

۲ــ دكابل شمال ته دپروا ن ولايت دپنجشير په‌سيمه كى تاجك او سيږ ى .دوى د پښتنو غو ندى قبيلوى روابطنه لرى اود نو ر و سيمو خلك يى پنجشيرى بو لى . همدا شا ن دهزاره جا ت دسيمى هزاره په محلى نو مو نو لكه‌ده‌زنګى جاغورى او نورد محل په‌نو مو نو ياديږى.

دعملی کیدو شدت یی لیدلی دی دقبیلوی اصالت یو اړخیزه، افراطی نظر یی ور کړی دی. ددوی په نظر فرد دقبیلوی دودونو په لاس کی یو ډول میخانیکی او زار (سامان آلات) دی، فرد دقبیلوی دودونو څخه غاړه نه شی غړولای قبیلوی دودونه فردی نظر، فردی نوښت «ابتکار» او حتی دفرددټول فعالیتونه دټولنی په خدمت کی استخدا موی او په قبیلوی چوکاټ کی دننه دفردی شخصیت ځانګړی هویت او دفر دی حقوقو او امتیازاتو له پاره زمینه په نشت حسابیږی. په لنډه وینا دوی فرد دقبیلوی دودونو داصالت دلوی ماشین یکی یوه پرزه ګڼی. ددوی په نظر څهوخت چی دفردد شخصی او قبیلی دعمومی ګټو ترمنځ تضاد پیدا شی نو په داسی حالت کی فرد مجبور دی چی دډله ییزو ګټو په خاطر دخپلو شخصی ګټو څخه تیر شی او ګروپی یاډله ییز اصالت ته غاړه کیږدی. له بلی خوا هغو محققینو چی په پښتنی ټولنه کی یی دفرد دانفرادی ګټو له پاره فعالیت اود فردی حقوقو څخه شدیده دفاع لیدلی ده دوی هم په افراطی تو ګه دفرد په فردیت زور اچوی. ددوی په نظر پښتون پواز ی خپلی شخصی ګټی اوفردی عزت په نظر کی لری او څه وخت چی د قبیلی دډله ییزی (ګروپی) او د فرد دفردی ګټو تر منځ دانتخاب سوال راپیداکیږی نو پښتون حتما دخپلو شخصی ګټو او فردی عــــزت (Honour) تر شا دریږی.

که موږ دپښتنی قبیلوی ټولنو اقتصادی تاریخ ته په شاو لاړ شو اوددوی داقتصادی روابطو په اساس د فرد اوټولنی تر منځ اجتماعی روابط او یودبل حقوق او امتیازات وڅیړو نود څیړنو په نتیجه کی به راته داخرګنده شی چی پورتنی دواړه نظریی دپښتنی قبیلوی ټولنی داقتصادی اواجتماعی واقعیتونو سره سمون نه خوری بلکی له دواړو نظریو یو سنتیز (Synthesis) ددوی دژوند عکاسی کوی. دپښتنی قبیلوی ټولنو اجتماعی روابط دوی دګډ قبیلوی ، خصوصــــی ملکیت داوږدی عملیی سره ژور ارتباط لری. دویش سیستم په دوره کی هره قبیله په یوه ټاکلــــی سیمه کی میشته وه اود خپلی سیمی ټوله ځمکه دقبیلی ګډ ملکیت ګڼل کیده. د قبیلی ګډ ملکیت او د ګډ

ملکیت دوراني و یش دګډقبیلوی ملکیت ددفاع دضرورت له کبله ټینګ ساتل کیده اما پهٔ وا قعیت کی دقبیلی ګډ ملکیت په دورا نی شکل پر له پسی دو یش په نیته کی‌لومړی دخیلو نو، بیاد پښو ، ورپسی دکهو ل وروسته دکورنیو او په پای کی سړی سرو یشل کیده چی‌دراتلو نکی و یش تر نیتی‌پوری ځمکه دفرد خصو صی ملکیت و. په دی دوره کی دفردو جایب اوحقوق معلوم‌وو . فرد مکلف‌و چی‌دقبیلی دنورو غړوسره یو ځای دګډقبیلوی ملکیت څخه دفاع وکړ ی اوداحق یی نه در لود چی خپله ځمکه‌خرڅه یاګروکړی. ددی‌و جایبو ســـره ټو لنی فرد ته داحق ورکړی وچی تربل و یش پور ی هغه دخپلی ځمکی دتولید نه آزادانه استفاده وکړی. لکه څنګه چی فرددکورنی کورنی دکهول، کهو ل دپښی ، پښه د خیل او خیل دټو لی قبیلی ددفاع فز یکی قوت و همد غـــه شا ن له قبیلی څخه ترکور نـــی هیڅچا داحق نه‌در لود چی پـــــه نور مال حالت کی هغه دخپلی‌ځمکی اویاد ځمکی دتولید دحق څخه په زور محروم کړی دزور د محرو ـ میت په صور ت کی دټو لنی‌دود دو نو هغه ته حق ورکړی و چی په انفرادی ډول یادنڅ دی‌خپلوا نو په ملاتړ د هر تیر ی کوو نکی په مقابل کی دخپلو حقوقو څخه دفاع وکړی. په دی دوره کی دوینـــــی قبیلوی روا بط او په قبیله کی د غړی توب پهٔو جه پهٔګډ قبیلوی ـ ملکیت کی حق پیدا کول دوه‌عمده فکتورونه وو ځکه چی دقبیلی‌غړ ی توب او په ملکیت کی مساو ی‌حق هغه ته دقبیلی دنورو غړو غو ندی مساوی دریځ‌ورکړی و . هغه دوینی داړ یکو او اقتصاد ی مساو ی‌دریځ پهٔبر کت دقبیلی دهر غړی(سیال) و اود مساو ی دریځ له‌کبله هغه له‌کور نی څخه تر قبیلی پور ی په ټولوټولنیزو چارو کی د مساو ی برخی اخیستو حق او امتیاز د ر لود . له بلی خوا هم دی دریـــځ دقبیلی په ټو لو غړو کی دما ت شوی( مغلوب) او لس بز ګرا نو او همسایه په تناسب دبر تری او قبیلوی ارستو کرا سی احساس هم پیاوړی کړی‌و چی ددی احسا س له‌کبله‌یی‌ځانو نه پور ته او نوروته یی په ښکته نظرکتل اود ما ت شوی او لس ،بز ګرا ن‌اوهمسایه یی خپل سیال ګڼل .

دو یش په دوره کی مر کز ی مسلط قدر ت و جود نه در لودخو دمر کز ی مسلط قدرت نشتوا لی دا معنی نه در لوده چی‌گو ندی په قبیله کی خپل سری (انار شی ) اویاد ځنگل قانون چلیده. بر عکس دقبیلوی ټو لنی دماد ی اومعنوی ژو ندوا قعی شرایطو څخه راوتلی او منل شو ی کود(پښتو نو لی) دقبیلی اقتصاد ی او ټو لنیز ژوند ټول اړ خو نه تر تنظیم لا نـــد ی راو ستلی‌وو. پښتو نو لی قبیلو ی ټو لنه خپل سری ( انارشی) ته‌نه پریښوده اود قبیلوی جوړ ښت د (Regular Anarchy)
ننه یی ټولو فعا لیتو نو ته‌دمنظمی انار شی
بڼه ورکړی وه او په قبیله کی‌یی‌د فرد او فرد ، دبنځی او نارینـــه دفرد او ټو لنی،دهمسایه اودمحلی ټولنی دغړ ی اود یوی قبیلی ا و بلی قبیلی تر منځ روا بط ، حقوق،جزایی او اخلاقی مسایل، اخـــلاقی دو دو نه او اجتما عی او کلتوری ارزښتو نه تنظیم کړی‌وو . پــــه لنډه و ینا دګډ قبیلو ی ملکیت په‌دوره کی (پښتو نو لی) دټو لنـــی داقتصاد ی اوټولنیز چوکاټ د ننه‌دفرد او قبیلی په اړ یکو ژو ر ه اغیزه در لوده. دواړه مکلف‌ووچی‌دقبیلوی ژو ندد‌نظم دساتلوپه‌خاطر خپل و جایب و پیژ نی ، یود بل حقوقو ته غاړه کیږ دی ، دقبیلی نور مو نه په عمل کی پیاده‌کړ ی‌او دقبیلی دعمو می نظم له پاره د عمو می او خصو صی گټوتر منـــځ دشعوری در ك په‌رڼا کی شعور ی چلند وکړی.

## ۲ ـ دگډ قبیلوی ملکیت پا تی شونی اودځمکی دنه خرڅلاودود:

### الـــف ـ دگډ قبیلوی ملکیت پاتی‌شونی:

سره له دی چی دبړ یخونه‌پرته‌او س په پښتنی قبیلوی ټو لنو کی دگډ قبیلوی ملکیت و یش دودځای‌خصو صی ملکیت نیو لی دی خو بیا هم دو یش ددور ی دگډقبیلوی ملکیت ، دځمکی د نه خرڅلاو ، د وینی د اړ یکو په لحاظ دسیا ل نفوذ ، دفز یکی قوت‌برلا ســـی (بر تری) ،قبیلوی ارستو کراسی، اودپښتو نو لی ددود پاتی‌شو نـــی (بقایا) تر او سه په لږ تغیر سره په قبیلوی ټو لنو کی وجود لری. دخصو صی ملکیت دمو جود یت سره سره دقبیلی په‌پخوا نـــی

روبنایي جوړښت کې د تغیر د نه راتګ اساسي علت دادی چې د پښتوا په‌شان هره قبیله او د قبیلـــــــی وا حدو نه په خپله مشخصه‌سیمه کې پراته دي . لکه څنګه چې د قبیلو ترمنځ د ځمکو ، او بو ، څړځایو نو، ور شو، غرو نو او ځنګلونو ټاکلی یا نا ټاکلی حدود معلوم دي. همدغه شان د قبیلی په‌ځا نګړ ې سیمه‌کې د هر یو وا حد او په پای کې د فرد دخصو صی ملکیت انداز ه‌او د قبیلی په‌ګډ ملکیت، لل‌مي ځمکې، څـــړ ځایو نه ،ورشو ،غرو نـــــه ا و ځنګلو نه(۱) کې یا د وا حدو نو او یاد فرد دخصو صی ملکیت بر خه معلو مه ده . دو ینی قبیلو ی ارتباط او د ګډ قبیلوی ملکیت عملیو دیو بل په‌تقو یه کې زور تا ثیر پری ـ اینبی دی څکه چې تراو سه پوری خصو صی ملکیت قبیلوی چو کاټ او ګرو پی شعور نه دی‌مات کړ ی او د خصو صی ملکیت په ارتبا ط فردی شعور تکا مل نه‌دی‌موندلی. تراو سه پوری د قبیلی هروا حد ځان دبل وا حد غړی بو لی او لا تراو سه دخصو صی ملکیت پـــه اساس د قبیلی دغړو تر منځ ویشل شوی ځمکی ته(زم و ن) دځمکی په نوم اشاره کوی.

دمثال په‌تو ګه څه‌و خت چـــی د قبیلی یو غړ ی یو بانډ نی‌شخص ته خپله سا حه او‌ځمکه ور بـــښی‌لو مړ ی هغه د‌ټو لی قبیلی دسیمی حد، بیا دوا حدو نو برید ونـــــه (حدود) وروسته دکور نی او پـــه پای کې خپله بر خه ور ښښی ا و «زما» اصطلاح محدوده یواز ی د خپلی بر خی خصو صی ملکیت له‌پاره په‌کاروی . همدا ډول که‌چیری د‌بانډنیو قبیلو دیووا حد له خواد قبیلی دیووا حد په خصو صـــــی ملکیت یاد قبیلی په نا مو ســـــ د قبیلی دیو غړ ی په شخصیت( مړ زخمی یاتو هین شی) تیری و شی‌نود قبیلی نور وا حدو نه‌دخپلی قبیلی دوا حد دملاتړ له پاره‌را ځی‌او د پردیو د تیری په مقابل کې په ګډه دفاع کوی.

---

۱ ـ تراو سه په‌سالار زو،ما موندو ، ګربزو تنیو او نو ر و کې پدی شیانو ګډ ملکیت و جودلری.

## ب- دځمکې دنه خرڅلاو دود:

لکه چې مخکې ور ته اشاره شوی ده دو یش په دوره کې دقبیلي غړی یوازې دګټې قبیلوی ملکیت دتولید څخه داستفاد ی حق درلود اما هغه داحق نه درلود چې ور رسید لې ځمکه ګرو یا خر څه کړی. ، د خصو صی ملکیت د منځته راتګ او په خصو صی ملکیت د حـــق دتثبیت له کبله او س دځمکې خښتن دځمکې دخرڅلاو، بخښلو، ګروولو او اجاری ور کولو پوره واك او حق لری خو په عمل کې لاتر او سه د ځمکې دنه خرڅلاو پخوا نی دودپه لږ تغیر په خپل ځای پاتی دی.ځکه چې تر اوسه په قبیلوی ټولنه کـــی دځمکې خرڅلاوته په ښه نظر نه کتل کیږی او د ځمکې خر څلاوځینې قبیلوی اوټولنیز محدود یتو نـــه لری. نارویجی و ګړ پوه فرید ریك بارت دسوا ت دیو سفزو دخیړ نو په تر خ کې دی مو ضوع ته داسی اشاره کوی: « په سوات کې دځمکې دخرڅلاو ځینی محدود یتو نه داپه خرګندوو ل ښیی چې دو یشـــــ سیستم له منځه تللو سره دبیاو یشس پر ته بل هیڅ شی له منځه نه دی تللی . دګروپ دوحد ت مفکوره چې په ځمکو باندې دګرو پ دحقو قو سره تړلی ده په خپل ځای پاتی ده . دخرڅلاو محدود یت دا معنی لری چې ... ځمکې دی باید لومړی نژ دی خپلوا ن ،وروسته ګاونډیان اوکه دوی یې نه شی اخیستلا ی نودکلی مشرا ن دی واخلی. کــــه چیر ی دوی دغه ځمکه وانه خلی نوبیا یې سیدان او روحانیون داخیستو حق لری . په پای کی هغوکسا نو ته چې دځمکې دپلورونکی دپښت او نسب څخه نه دی دځمکې داخیستو حق ور کول کیږ ی»(۱)

دځمکې دنه خرڅلاو اوپه خرڅلاو باندې محدو دیت دپښتنو قبیلو په قبیلوی اوټولنیز جوړ ښت کـــی پروت دی. تر او سه په قبیلو ی ټولنو کی ځمکه دتولید اساســـی وسیله اودځمکې د ملکیت په اساس اجتما عی هیرارشی ( مر تبه ییزه لړی یاسلسله مراتب) * اوټو نیز

(1) F. Barth, the system of social stratification in swat, combrid ge p — 1960

* ددغې کلمې پښتو معنـــــی (دمر تبو سلسله)ښود له شو ی چې کولای شو مر تبه ییزه لړ ی یې هم و بولو . انګریزی کلمه یـــــی Hierarchy ده . ادیتور.

روابط جوړ شوي دي او په تولید ی وسیله باندی دملکیت حق درلود ل یا نه در لودل په قبیله کی دفرد ټولنیز دریځ ټاکی. په زرا عتی ـ اقتصاد کی ځمکه او دځمکی ټو لیدیوازینی پانگه که د ځینو اړتیاوو له کبله لکه دواده ، مړ ینی ،دښمنی او نورو لگښتونو له پاره یوڅوك یاکور نی ځمکه خر څه کړی پدی صورت کی دی یواز ی دو ینـــی داړ یکی په لحاظ د(سیال) دریـــځ ساتی اما په قبیله کی دااقتصادی نابرا برېو څخه بی برخی کیږی. په ټولنیز ، مر تبه ییزه لږ ی کـــی ښکته لوېږ ی اود ټیټ دریځ لـــه کبله دپخوا په شا ن دقبیلی پـــه ټولنیزو چارو کی برابره بر خه نه شی اخیستلای . په یو و خت کی مساو ی او اوس دځمکی دنه در لود لو له کبله دغیر مساو ی شخص دکورنی دسیالا نو په منځ کی د بز گر ، کارگر ، مز دور اوهمسایه په څیر ددو یمی در جی دریځ غوره کوی چی دغه مو قف یا دریځ دهغه دسیا ل دتر زیق شوی رو حیـــی منافی عمل دی او په را تلو نکـــی کی هغه اود هغه کور نی دروا نی ستو نزو سره مخا مخ کو ی. دسیا لا نو په منځ کی دسیال ددریـــځ څخه رالویدل اوددویمی در جی په دریځ کی دسیال دلا س لا ند ی کارکول په خپله سیمه کی دکار څخه پردی وا لی (بیگا نگی) منځتـــه راوړی دی.

یو پښتون دکار له پاره دا سی سیمی ته ځی چی هلته دده قبیلوی سیال و جودو نه لری. دلته هغـو درندو او شاقه کارونو کولو تـه آماده دی خو په خپله سیمه کی دسیال دلاس لا ندی کارته غاړ ه نه ږدی.

په قبیلوی ټو لنه کی دځمکـــی خر څلاو په پلو رونکی، اخیستو نکی اود قبیلی په وا حدو نو ناو ړ ه اغیزه کوی. پلورونکی دخر څلا و دعمل په نتیجه کی پلار نی سیمه پریږ دی . په قبیله کی دکور نی (نوم او ننګ) له لا سه ور کوی د نږ دی خپلوانو دارتباط اودپلر ینی له هد یر ی څخه محرو میږ ی چی د قبیلوی دود له مخی داډول محروـ میتونه یو پښتو ن ته سخت او گران تماميږی.

سره له دی چی دپلورو نکـــی ځمکه دهغه دکهو ل ځخه دباندی نه ځی .دهغه نږ دی خپلوا ن ته لیږ دول کیږ ی اود خپلوا ن پهلاس دملکیت دزیات تمر کز پهو جه دهغه اجتما عی دریځ لوړیږ ی خوبیا هم په قبیلوی ټو لنه کی دخصوصی ملکیت درو حیی او غوښتنی سره سم خپلوان هم دځمکی خرځلاو ته ځوی چیپه عمل کی دخرځلا و عملیه ډیره ورو (بطی) ده. کهدیوی خواشتمن خپلوا نپه دیوپوهیږی چی دځمکی داخیستو پهو جه دهغه ټولنیز مو قف لوړیږ ی اود ځمکی داضا فی تولید په مقابل کی نوره ځمکه هم اخیستلای شی له بلیخوا هغه په دی هم پو هیږ یچیپـــه قبیلوی ټو لنه کی دفرد دمو قف پهځای دټو لی قبیلی دریځ ا و د خصو صی ملکیت پهځا ی دکهو ل فز یکی قوت او ملا تړ مهم رو ل لری.

که چیری شتمن خپلوا ندځمکی دخرځلاو عملیه تشویق کړی اود ځمکی دخرځلاو نهورو ستهدکهولکورنی نورو سیمو ته ولاړی شـی نو ددی عملیی په نتیجه کی دقبیلی ټول وا حدو نه دفز یکی قوت ا و ملاتړ په لحاظکمزوری کیږ ی چی پهپای کی دفز یکی قوت اوملا تړ کمزور تیا په خپله قبیله دنو رو په مقابل کیکمزور ی کوی. همداعلت دی چی دخصو صی ملکیت دتمرکزسره سره د قبیلی ټو ل واحدو نه او قبیله دفز یکی قوت اوملا تـــړ دساتلو او پیاوړ تیا اودقبیلو ی فزیکی قوت اوملا تړ دکمزور ی کیدو دمخنیو ی په خا طر دځمکی دخرځلاو دهځو نی په ځای دځمکی دخرځلاو ممانعت کوی.

دځمکی دخرځلاو د محدودیتونو پهبر خه کی دفر یدریك بارت دا نظر چی ځمکه لو مړی نـــژ دیخپلوا ن ... او په پای کی باندنی خلك اخلی دقبیلوی ټو لنی دو ینیداړ یکو اهمیت څرگندوی . پـــه قبیـلـوی جوړښت کـــی د نـــژدی او لری خپلوا نو اود پر دیومفکوره یـــا مفـــهـــوم (Concept) دپښتنو دټو لنیزو روابطو سره نه شلیدو نکی اړ یکی لری . دنژ دی، لری او پردیو مفا هیم دوینیدارتباط پهلحاظ منځتهرا غلی دی .دامفاهیمنسبی بڼه لری او په نسبی تو گه که دیو کهو ل دننه دیوی تا کلی کورنی غړ ی دکهو لدنور وکورنیو

په‌تناسب نژدی خپلوان وی او د کهول دنورو کور نیو غړو ته‌لری خپلوان وا یی . همدا شان ددی ټاکلی کور نی دکهو ل دنو رو ، کور نیو غړی دپیښبی دنوروپلر ینو په‌تناسب دنن دی خپلوا نو په‌نوم بلل‌کیږ ی . دو ینی دارتبا ط پـه‌لحاظ دنن دی او لری خپلوانو دا نسبی عملیه دقبیلی په ټو لـــو وا حدو نو کی‌و جود لری چی د ا پروسه یواز ی دیوی ټا کلی‌قبیلی په‌وا حدو نو پوری محدوده نه‌پاتی کیږی بلکی نورو قبیلو ته هـــم‌خپریږی . په عنعنو ی‌تو گـــه پښتانه تر اووم پښت پور ی‌دکهول غړی دنن دی خپلوا نو په‌تو گـــه منی. دپښی نورو پلر ینو ته لری‌خپلوا ن او یاور ته پردی هم‌وایی. دپردی اصطلاح دقبیلی دننه دنورو پلر ینو ، خپلوانو او هم دقبیلی دباندی دنورو قبیلو اود پښتنو نه‌پر ته دغیر پښتو ن عنا صرو له پـاره یو شان ا ستعما لیـــږ ی. دنن دی خپلوا نو او پردیو تر منځ دی لرغونی دود په قبیلوی اړ یکو کی دقبیلو تر منځ دسر حدو نود ساتلو روحیه ټینګه‌سا تلی ده‌چی پاتی‌شو نی یی تراو سه په‌اوسنیو قبیلو کی‌لیدل کیږ ی.

لکه چی مخکی ور ته اشاره‌شوی ده دګډ قبیلوی ملکیت څمکه ، د قبیلی‌دښکته واحدو نو ترمنـــځ ویشل کیده‌چی په‌پای کی‌دکور نیو غړو ته بر خی ورکو لی کیدی . دکور نی‌غړو دکهو ل دنوروکورنیو په مقابل کی دخپلی بر خی‌دځمکی او همداشان پور ته دوا حدودنورو وا حدو نو په مقابل کی او پـــه مجمو عی لحاظ ټو لی قبیلی دنورو قبیلو په مقابل کی د ملکیت لـــه حقوقو څخه دفاع کو له . څر نګه چی دیوی کور نی غړو دکهو ل د نوروکور نیو غړو ته په خپل‌ملکیت کی‌ځای نه‌ور کاوه همدغه شا ن پور ته‌وا حدو نو دقبیلی نو ر و وا حدو نو ته او په‌سر کی ټو لی قبیلی په‌ګډ ملکیت کی دنوروقبیلو د راننوتلو مخنیوی کاوه .دپخوانی قبیلوی دو دو له مخی په او سنیو قبیلو کی هم نژ دی خپلوان نـــه غواړ ی چی لری خپلوا ن‌او پردی دځمکی داخیستو له‌کبله ددو ی په‌ملکیت او خپل منځی ټو لنیزوچارو کی حق پیدا کړی.

دځمکی دخرڅلاو په باره کـــی داسلا می شر یعت دشفع مفهو م هم دقبیلو ی دو دو نو سره مغایرت نه لری . دشر یعت دحکم سره سم دځمکی داخیستو لو مړی حق هغه شخص لری چی دپلورو نکی سره په ملکیت کی متدا خل وی( ورور یابل نژ دی خپلوان) ،په دو یمه در جه کی هغه شخص دځمکـــــی داخیستومستحق دی چی دده اود پلورونکی ځمکی دیوی ویا لی څخه اوبه خور ی او یاد دوا ړو ځمکوته یوه لیاره تللی وی اوپه در یمه درجه کی هغه شخص ته حق ور کول کیږی چی دده اود پلورونکی ځمکی یوبل ته نږ دی پر تی وی. دشفع داصولو سره سم په قبیلو ی ټولنو کی یواز ی نژ دی خپلوا ن دپلرینی په ملکیت کی متدا خل وی،دنږدی خپلوا نو ځمکی دیوی ویا لی څخه او به خور ی ،ځمکو ته یی یو ه لیاره تللی وی او ځمکی یی یو بل ته نږدی پر تی وی. سره له دی چی په اکثره قبیلو کی دېری ځمکی د شر عی قبالو په ځای په عرفی قبالو او یاپه شفا هی تو گه ، د شا هدانو په مخکی پلور لی کیږی خو بیاهم دشر یعت دشفعی حکم د قبیلوی دود په لیار کی کوم مذهبی خنډ نه دی اچولی او نه په نږ دی خپلوانو د ځمکی خر څلاو له قبیلوی دودسره ټکر کوی . همدا شا ن مذ هبی او روحا نی اشخا صو ته دویش په و خت کی دسیری په نوم ځمکی ور کول کیدی چی دمذ هبی ارتباط په وجه اوس ددوی دقبیلوی جوړ ښت او قبیلوی ژو ند نـــــه بیلیدو نکی بر خه ده.

ددوی په نظر ځوك چی دپلار ، نیکه ځمکه خرڅوی هغه یو بد ـ عمله او د پلار نیکه د هـــړو کوخــر څوو نکی شخص دی.

دځمکی دنه خرڅلاو دعنعنو ی تلقین او تبلیغ څخه باید دا مطلب وانه خلو چی گوا کی دقبیلـــــی وا حدو نو دیو بل او یا دباندنیو پرمخ درواز ی ترړ لی دی. دقبیلی په وا حدو نو کی باندنی خلك چی ددوی مساوی دی یعنی دښځو د خپلوی دلیاری رانوتی دی یا یی دوی ته پناه راوړی ده او یا غیـــر مساو ی اشخاص لکه همسا یـــه او کسبگر او نور ددوی سره یو ځای په کلیو کی او سیږ ی. البته دغه عنا صر دو خت په تیریدوسره دقبیلی دوا حدو نو بر خه گرزیدلی

ده او دوی دقبیلي په واحدو ټو کي دننه ځمکي اخیستي دي اما پـــه پرتلیزه تو گه بیا هم ددغه شا ن د ځمکو اخیستو نکو شمیر بیخـــي لږ دی. دقبیلي وا حدو نه په هغو باندنیو اشخا صو یا شخصــــــــس ځمکه نه خرڅوی چي د هغوی را ننوتل دقبیلي دوا حدو نو تر منځ مروج مساوا ت او برابر تیا دگډ وډی سره مخا مخ کوی او یا پـــه آینده کي دغه اشخا ص دلوړ تیاو برلا سی دریځ ترلا سه کوی.

ځمکه داقتصاد ی اوټو لنیــــــز دریځ بر سیره دکور نی‌داقتصاد ی ستو نزو دلیری کولو له پار ه، اساسی پانگه ده . که دځمکــــــــي دخرڅلاو د محدود یتونو له کبله‌دځمکي پلور ل عمو می رواج نه‌لري لاکن داړ تیا وو په و خت کي د ځمکي ښنبتن په دی امید چي پـــه آینده کي به دگرو پور خلا ص کړي خپله ځمکه دنغدو پیسو یا جنس په مقابل کي گرووی. دگر ویدوپه‌صور ت کي دځمکي تولید پــــه گرویدار پوری اړه مو می او کوم وخت چي گر وو نکي د خپلي‌ځمکي دگروپور گرو یدار ته ورکړي‌ځمکه بیر ته دځمکي ښنبتن‌ته‌ور کو ل کیږ ی *.

---

* په ځینو سیمو کي مثلا د غز ني دشلگر په‌سیمه کي گرو ی عمو ما داسي‌شکل‌لري چي ځمکـــه گرویدار ته نه‌سپار له‌کیږ ی بلکي په خپله دځمکي دخاو ند له خـــوا کرله‌کیږ ی اود هغي اندازی ځمکي حاصلات گرو یدار اخلي چي‌دگرو کولو په‌و خت کي ټاکله شوی‌وی . مثلا که چیر ی یو سړی یو چارك (د محلي و یش دود په اساس د ځمکي ډیره زیاته اندازه شواروزاو ډیروړو کي مقداریي خورد او نیـــم خورد بلل‌کیږ ی) ځمکه و لري نو کولای شي چي یوه بر خه یي‌گرو ورکړ ی اود خپلي نور ی ځمکـــي سره یي په خپله وکری او حاصل یي گرو یدار ته ورکړي. دغه‌دیوی برخي گروول هم دوه ډو له دي‌چي یوی ته یي پخه‌گروی وایي . دپخي‌گروی مثلا پو خ چارك ځمکه پـــه صورت کي دگرو شوی بر خي له‌حاصلو څخه دځمکي خاونددهقاني اجوره‌نه‌شي گرزولا ی او با یـــد حاصل یي پوره گرو یدار ته ور کړي . بل ډول یي خا مه گروی‌ده‌چي‌په‌هغه‌صورت کي دمځکي‌خاوند**

همدا شا ن كه يو شخصـــــــس بلى سيمى ته ولاړ شى او يادځينو ستنو نزو لهکبله په خپله دځمکى سر پر ستى نهشى کولا ى هغه خپله ځمکه يو چا ته په اجاره ورکوى چى اجاره دارټاکلى غله پـــه ټاکلى و خت دځمکى څښتن ته ور کوى . دگرو ى معکو س د ځمکى څښتن هرو خت چىو غوا ړ ى خپله ځمکه داجاره دار څخه پـــه خپل تصر ف کى راوړلاى شى.

لکه څنگه چى دقبيلو ى ټو لنو دمرگ،ژو بلى دپيښو څخـــــه څرگنديږ ى ډيرى پيښى دځمکىپهوجهرامنځتهکيږ ى . کهيو شخص يا اشخا ص په زور ، جعلاوټگمارى سره دنو رو ځمکهو نيسى نو د ځمکى څښتن د دانگام دخلکودد ىوينالهمخى (کهسړى نارو غ شى، وزه يا ميږ ه ور ته حلاليږ ى اودهغه پو ستکى ناروغ ته اچو ل کيږ ى . که ځمکه نارو غه شى نو سړ ى ور باندى څانحلالو ى او خپل پو ستکى نارو غه ځمکى تهاغوندى »تر مر گه دخپلى ځمکى د ملکيت څخه دفاع کوى.

**۳- سيا ل:**

دگټ قبيلوى ملکيت په دوره کىدقبيلى غړى توب هر غړ ى ته په ځمکه کى برابرحق ور کاوه چى اقتصاد ى برابرتيا په خپل وارهغه تهپهټو لنيزو چارو کى دنورو غړوسره يو شان دبرابر تيا( سيا ل) شعور ور بخښه . په دى پړ اوکىطبقا تى توپير نهو .ټول غړ ى په يو شا ن اقتصاد ى ټو لنيز و اوکلتورى شرايطو کى او سيد لاو اقتصاد ى اوټو لنيز قدر ت پــــه نسبى تو گهدټولوغړوتر منځمساوى

---

** خپله دهقانىلهگرويدار څخهاخلىگرو يدار يواز ى هغهو ختدمځکى پالنهپه خپله کوى چى د هغـــــىدڅښتن څخه ټو له مځکه گروکړى. په دى توگه دځمکى خاو ند ترهغهوخته له خپلى مځکى سره کار نه لرى چى دگرو يدار پيسى بير تهورکړىدگروىسيستم ځينىنورىبڼى هم لرى چى دلته يى لهتفصيلڅخهتيريږو. اديتور

ويشل شوي و . يوه غړي دنورو په تناسب کومداسي زيات شي نه در لود چي د هغه په واسطه نورغړي ترخپل نفوذ او سلطې لاندي راولي او په هغوي قدرت وچلوي .

په او سنيو قبيلوي ټولنو کي دسيال او برابر تيا پخوا ني شعور پهلړ توپير سره په خپل ځاي پاتي دي. په قبيلوي ټولنو کي سيال او اوس هم د برابر او رقيب په دواړو مفهو مو نو استعماليږي . دويني ارتباط ،ځمکه در لودل او په اجتما عي چاروکي برابره برخه اخيستل دسيال مکمل خصوصيات دي.

که چيري دقبيلي غړي ځمکه ونه لري هغه په اقتصادي او اجتماعي مرتبه ييزه لړي( هيرارشي) کي رانښکته کيږي خودويني دارتباط په لحاظ دنورو غړو سيال دي او کسبگرو او گاونډيانو(همسايه ) څخه لوړ موقف لري. که دغه شخص دقبيلي دبل شخص دلاس لاندي هيڅ دريځ په در لودلو کار کولو ته چمتوشي لاس باندي ، شخص لاس لاندي شخص دويني دارتباط په لحاظ مساوي گڼي او د هغه سره داسي سلوك نه شي ، کو لاي چي د هغه شخصيت اوعزت-النفس ته صدمه ورسوي ، ځکه چي دتيري په صورت کي هغه د سيال په حيث دتيري کوونکي څخه دبدل داخيستو حق لري.

دويني اوټولنيز ، اقتصادي برابري Egaliterianism

په قبيلوي ټولنه کي د سيال او برابر تيا شعور دو مره تر زيق کړي دي چي وررور لهورور، دتره زوي دتره له زوي ، کورني له کور ني ، دقبيلي يو واحد له بل واحد او يوه قبيله له بلي قبيلي څخه ځان ښکته نه گڼي او نه په ښکته دريځ قانع کيږي .د غه د برابر تيا شعور په قبيلوي جوړښت کي ديووالي او بيلتون ياو حدت او مخالف يو ډول دوه اړخيز والي (Dualism) منځته راوړي دي چي دغه دوه اړخيز والي دقبيلي دټولو واحدو نو په خپل منځي اړيکو کي دعمل او عکس العمل په بڼه ليدل کيږي.که چير ي دکورني دغړو يادنورو واحدو نو تر منځ کو مه داسي مادي او معنوي لانجه چي ددوي د برابرتيا شعور ته صدمه رسوي

اوددو ی دپارونی او مخالفت‌موجب کیږی و جودو نه لری نوپـــه دغسی نور ما ل حالت کی دوا حدو نو دغړو تر منځ روا بـــط د مرستی دروحیی او گرو پـــی (ډله‌ییز) احساس له مخی پر مـــخ ځی. دقبیلوی شرایطو منظمـــــی انار شی «بی‌قانو نی» دقبیلی ټولو غړوته داشعور ور کړی دی چی دکورنی غړی دکور دپر ستیـــج (حیثیت) دساتلو او په‌کور نی‌کی دگه‌وډ ی دمخنیو ی په خا طرخپل منځی اړیکی ښی و سا تـــی او کور نی دتجر ید دبدو عوا قبوڅخه دڅغور لو په هڅه کی باید چی د نورو مر سته او ملا تړ جلب‌کړی. دملاتړ او مر ستی دجلبولو له‌پاره‌هر وا حد دنورو سره دښوروابطو دټینگولو له پاره زیار باسی . د منظمی انار شی دشعور ی در ک‌په رڼاکی لکه څنگه چی دیوی کورنی کشرا ن دخپلو مشرانو درناو ی کوی دخپلی کور نی پت اوحیثیت‌ساتی اود خپلو گټو ساتندو ی‌دی همدغه شان باید دوی جدی پاملـرنه وکړی چی د نورو و ا حدو نو دمشرانو شخصیت مادی گټو ا ومعنوی حیثیت ته صد مه‌و نـــه رسوی . لکه څنگه چی دکور نی مشرا ن مکلف دی چی دکورنی د کشرانو دسیالی او برابرتیاشعور دبی‌ځایه تو هین دشخصیت درا ټیټولواود حقوقو دغصبو لوپه‌وجه زیانمن نه‌کړ ی نو همد غه شا ن توقع دنورو وا حدو نو دغړو څخه هم‌کیږی.

که دتره زامن(تربرو نه) په خپل منځ کی اقتصـــــاد ی ، اجتما عی او کورنی شخړی و نـــه‌لری دوی خپل منځی اړ یکی‌دښځو دخپلوی له‌لیاری لاتقو یه کوی او‌په دی‌وسیله دکور نی دو حدت او فز یکی قوت دلری تر برو نو په‌مقابل کی پیاوړ ی ساتی .په‌نورمال حالت کی دکهول غړی دیو بل‌سره دمړینی او واده په‌مراسمو کی ،د اشر په‌و خت کی یاپه اصطلاح دغم‌او ښادی په‌ور ځو کی دیو بل‌مالی مرسته او فز یکی ملاتړ کوی . په‌ټو لنیزو چارو کی مالی مرسته او فز یکی ملاتړ یو ډول ټولنیز پور دی. په ټو لنیزو چارو کی ماد ی مرسته او فز یکی ملا تړ ددو ی‌د سیالی شعور ته کو مه صد مه نه رسوی اونه‌یودبل‌په مقابل کی‌خپل مساوی مو قف له‌لا سه ورکوی .

که یو یاځوتنه یایو وا حد د یـو شخص ځو اشخا صو یادیووا حد مالي مر سته او فز یکي ملا تـړ کوي مقابل لور ی دټولنیز پور له کبله مکلف دی چی داړ تیاوو په وخت کی دغه پور اداکړ ی. که چیری پوروړ ی ټولنیز پور ادا نه کړی دهغه یاد هغوی د غه اقدام دټولنیز نور م په ضد عمل انګیرل کیږ ی اود غه شا ن اشخا ص په راتلو نکی کی دنورو له خوا دمالي مرستي او ملا تړ څخه محرو ـ میږی.

دقبیلوی وا حدو نو او دقبیلو ترمنځ اکثره شخړ ی په ځمکه، اوبو مالدار ی ،څرځای ،غلا،ځنګل ، ښځه ،رتلو ، و هلو، سپکاو ی ، وژنی او نورو پیښیږ ی پیښی تل دهغووا حدو نو تر منځ واقع کیږی کوم چی یاګډ ملکیت و لری او یایو بل ته نږ دی پرانه و ی . دهری پیښی شدت او اغیزه دیوی بلی په پرتله توپیر کوی.

که پیښه وړو کی و ی اودیوی کورنی دسکه یاناسکه (د میز ی مور زوی) دوروڼو تر منځ وی ددغی پیښی اغیزه په وروڼو پوری محدو ـ دوی او یواز ی دورونو تر منـــځ خپګا ن پیداکوی . که پیښه د تره دزا منو تر منځ وا قع کیږ ی ددی اغیزه دکور نی د دوو پلر نیو ، (پلر ګنیو) په اولا دی کیږ ی .د وروڼو په پرتله دتره دزا منو ترمنځ دشخړ و او پیښو شد ت ډیرو ی ځکه چی دتره زا من یودبل سیال او دکورنی دمشری له پاره پټ ا و ښکاره رقیبان دی . دښځو دخپلوی سره سره دپیښو په صور ت کی دسیالا نو تر منځ دمر ستی اوملاتړ پخوانی رو حیه ډیره چټکه پــــه تربور و لی (تر بګنی) بدلیږ ی .د تربګنی په اساس ر قابت ، ا و مخالفت دتره دزا منو تر منځ پیل اود غه عملیه دقبیلی دټولوواحدونودننه په مختلفو بڼو وجود لری.

دتربګنی نرم ر قابت اوددښمنی سخت مخالفت دمو ضوع دشدت په کموا لی او زیا توا لی پوری اړه لری. دعادی مسا یلو په دوران کی تربوران (تربرونه) په ظا هر ی تو ګه دیو پل سره یو ډول سا ړ ه روابط ساتی

دوی دیو بل سره خبری کوی دغم او ښاد ی پهور ځو کی ګډو ن
کوی، خو بیاهم ددوی پهروا بطـوکی د خپګا ن ښښا نی مو جودیوی.
دمتدا خلو اشخا صو یاوا حدو نو ترمنځ تر هغور قابت روان وی ځو
چی دوی دغه عادی مسا لهپه خپل منځ کی او یا دباندنیو منځګړ وپه
واسطه حل کړی. که چیر ی د دوو وا حدو نو تر منځ پهځمکه یاښځه
ښښته پیښه شی او پدی ښښتهکـی لهیوی خوا له دواړو خواوو څخه
مرګ ژو بله کیږی نو مسا لهحادهبڼه غوره کوی . چی په دی صورت
کی مساله دتربګنی در قابت څخهددښمنی د مخالفت تر حدهرسیږی.
دهری سیمی ډلی غړی پهاتوماتیک ډول دخپل وا حدپه نوم راڅو -
لیږ ی اوټول په ګډه د مقابل‌لوری پهضد دریږ ی . په داسی موا ردو
کی د دواړو ډلو تر منځ روا بـطشلیږ ی او هره ډ لهبلی ته دمادی
اوځا نی تاوان رسولو اومخصوصازیانمن لوری دبدل داخیستلو له
پاره هلی ځلی کوی .په قبیلوی‌ټولنه کی دښمنی اود ښمنی عوا مـل
پیچلی بڼه غوره کوی چیدغه شان مسایل دبدل داخیستو یاد قبیلوی
دو دو نو له مخی دتاوان‌دور کو لو اودنورو شرایطو دپوره کولو نـه
پرته په آسانه حل نهمومی . د دښمنی مساله کهلهیوی خوا پـه
دښمنو ډ لو مستقیم تاثیر لر ی‌نو لهبلی خوا دقبیلی نوروا حدو نه
یا اشخاص هم له دښمنی‌څخه بـی اغیزی نهشی پاتی کیدای چی د غه
شان دښمنی یاپه ټولو وا حدو نو یاپه ځینو وا حدو نو تاثیر کوی.
پهځینو ښښتو کی دقبیلی ټـو ل‌وا حدو نه یادوینی دنږ دی‌ارتباط
یاد ښځو دخپلوی لهکبله او یا د ټولنیز پور یعنی دپخوا نی‌مر ستی
اوملا تړ پهو جه پهدووبرخوو یشل کیږی‌او هر یو دیوی ډ لی پـه
طرفداری دریږ ی چی دداسی ، دښمنی په دوران کی ټول‌واحدونه
ددښمنو ډلو بڼه غـوره کوی . دا ډول دښمنی تر هغو روانی‌وی څو
چی باندنی قبیلی مدا خله و کړی‌او دښمنی ډلی خبرو ته چمتوکړی.
پهځینو دښمنیو کی دقبیلی ځینـی‌وا حدو نه یا اشخا ص داخلیږ ی
اوځینی نور له مداخلی پر تهخپلهبی طرفی ټینګه ساتی چی دغـه
بی طر فه یاپهخپله او یادنو ر و قبیلو د منځګړو سره یو ځـای‌د
دښمنو ډ لوتر منځ دسو لی لهپاره‌زیار باسی.

دقبیلوی ټولنو په ژوند کی تر بګنی او دښمنی دیوی بلی سره تړل شوی عملیي دی. لکه چی ، مخکی ور ته اشاره شویده د دوو تر برو نو دتربګنی ر قابت دځینو پاروو نکو عوا ملوله کبله ډیر ژر په داښمنی بدلیږ ی . همد غه‌شان دروغی په صور ت کی د دښمنوډلو تر منځ دښمنی مخکی شدت له منځه ځی اما دد ښمنی له دور ی څخه دتر خو خاطرو څه ناڅه‌بقایادتر بګنی د رقابت‌په بڼه پاتی‌کیږی.
همدا علت دی چی دځینو قبیلواو‌دځینو قبیلو دوا حدو نو تر منـځ تر بګنی او دښمنی له پخواراهیسی راروانی دی او له تیرو پلرو نو څخه راتلو نکو نسلو نو ته پاتی شوی دی او اوس یی یوډو ل ، عنعنوی‌بڼه غوره کړی ده . څـینو عنعنوی تر بګنیو او دښمنیو پـــه ځینو قبیلوکی دکور نی د ښکته وا حد دتربرو نو څخه نیو لی د قبیلی تر حده په‌ټو لو پورتـــــه‌وا حدو نو کی درز اچولی اوډ لی ټپلی‌یی را منځته‌کړی دی. همدا شان په ځینو سیمو کی ځینی‌لویی قبیلی هم دو ینی دارتبا ط او یا نورو عوا ملو له مخی په‌دووسیاسی ډلو و یشل ی‌شوی دی (۱)
دبرابری او سیا لی په شعو رولاړ ددی درز او ډ لو ټپلودوالیزم (Dualism) پـــه نتیجـــه کـــی دمشخصو سیمو قبیلوی واحدونه او قبیلی په‌رقابتونو او مخالفتونو اخته دی . دپښتنی ټو لنی په‌باره کی‌د انګلز داتحلیل چی د هغو ی (پښتنو) دحکمفر ما یی څخه ر ټ نفرت اود انفراد ی آزادی سره‌مینه دهغوی یو پیاوړ ی ملت دجوړولو

---

۱ ـ په ډیرو سیمو کی‌پښتنی قبیلی په سیاسی ډ لوو یشلی‌شوی دی. ددغو ټو لو له جملی څخـــه‌بڼه مثال دپکتیا دخو ست‌دسیمی قبیلی دی . دلته د(تور) او«سپین» ګو ندو نو په‌نو مو نو داقبیلی په لاندی ډول و یشلی شو ی‌دی:
سپین ګوند : ځدران ، تنی، مندوز ی ، ګر بز ، سیری او شمل.
تور ګو ند: منګل ، اسمعیل‌خیل،متون، لکڼ ، کوندی، منکس،لندر سورك او تیری زی.

پەلیارکی یوازینی خنډونه دی‌صدق‌کوی (۱) همدی خنډونو پەدوی کی عمومی دسپلین او مرکزی‌قدرت ته داطاعت روحیه ضعیفه ساتلی ده او برعکس به دوی‌کی‌یی قبیلوی احساس دومره پیاوړی کړی دی چی دقبیلوی ټولنو اکثره غړی یاد خپلو وا حدونو او یاد ټولی قبیلی ترسر حده دخپلو مادی او معنوی ګټو پەباره کی فکر کولای‌شی .

مونږ ددوی دسیا لی شعور تەدزور او قدرت پەضد شعور هم ویلای شو . که په قبیلوی ټولنه‌کی‌یو شخص یا اشخاص دمقابل لوری زور او قدرت تەتسلیمیږی اویاور ته دخپلو مادی او معنوی حقوقو شخه تیریږی پەوا قعیت کی دغه شان عمل دشخص یا اشخاصو دسیالی شعور تەتاوان رسوی چی په نتیجه کی دد غسی یوعمل پەکولو هغه یا هغوی د قبیلوی روا بطو په مرتبه ییزه لړی کی لاندنی موقف تـــــه راټیټیږی. ددی اساسی‌عامـــل له مخی دوی تل زیار باسی چی‌یودبل په مقابل کی مجادله وکړی خو پدی تو ګه خپل منځی مساوی دریځ او انډول اعاده او خوندی وساتی. همداشان دتا ریــــخ په اوږدو کی باندنیو عنا صرو او پردیو حکومتونو وخت پەوخت ددوی دقبیلوی جوړښت دننــــه درقابتونو ، مخالفتونو او درز او ډلوټپلو څخه دځانو نو په ګټــــه پوره استفا دی کړی او کوی یی. پەلنډه وینا په پښتنی ټولنه کی دزور او قدرت په مقابل کی لــه خپلو مادی او معنوی حقوقوڅخەنه تیریدل ،دمرګ ،ژوبلی ،شرم او سپکاوی بدل نەپریښودل او د رقابتونو او دښمنیو په دورا نکی مالی اوځانی تاوانونه تحمل کیدل ددوی دبرابرتیا دشعور ،مساوی‌موقف او خپل منځی انډول لداعاده کولو او ساتلو سره نه جلاکیدو نکی اړیکی‌لری.

کەله یوی خوا دسیا لی دشعو ردوه ګــــو نتـــــوب (Dualism) دقبیلی وا حدونه اود مشخصـــــو سیمو قبیلی په خپل منځی رقا-

---

(1) K.M. F.E. on colonialism Moscow, 1978, P. 143

بتونو او مخالفتونو اخته کړی دی او د واحدونو او قبیلو اتحاد د ضعف او کمزور تیا سره مخامخ کوی، له بلی خوا همدی دوه ـ گـــو نـتـوب (Dualism) دوینی دارتباط په لحاظ په نژدی خپلوانو کی د ډله ییزی مرستی او ملاتړ روحیه هم ژوندی ساتلی ده او د دوی اتحاد او یووا لـــی یی پیاوړی کړی دی . د خپـــل منځی رقا بتو نو او مخا لفتونـــو سره که چیری وروڼو ته د تره ـ زا منو له خوا دمادی او یا معنوی تاوا ن خطره پیداشی نو ورو ڼـه د تره دزا منو په مقابل کی درېږی. همداشان د تره زا من د کهو ل د لری تر برو نو ، کهول د بل کهو ل ، پښه د بلی پښی، خیل د بل خیل، ځینی قبیلی د نورو قبیلو او په یوه سیمه کی میشت قبیلی د بانډنیو په مقابل کی متحد او سره یـــو کیږی.

دوی ته د قبیلوی ژو ند د روابطو له مخی د نژ دی خپلوا نو د فز یکی مر ستی او ملا تړ مثبت ارز ښـت او گټی معلو می دی . دوی پــــه دی پو هیږی چی که چیر ی د نو رو په مقابل کی د نژ دی خپلوا نو واحدو نو مر سته او ملا تړ و نه شی او نور (پردی) د دو ی د نږ دی خپلوا نو د واحدو نو قوت مات کړ ی نو په وا قعیت کی د دو ی فز یکی قو ت ماتی خوړ لی ده چی په آینده کی دو ی د نورو په مقابل کی قبیلو ی مساو ی مو قف او خپل منځی انډول نه شی ساتلای. دا نډو ل گډ وډ ی د دوی د برا بر تیا شعور ته نه جبران کیدو نکی صد مه رسوی.

لکه چی مخکی ور ته اشاره شوی ده سره له دی چی پښتا نه یو بل ته د مالی او ځانی تاوا ن بدل نـــه پریږ دی اماد برابر تیا د شعور په اساس دا نډو ل د ساتلو له پاره څــه وخت چی د نژ دی خپلوا نو مخا لف وا حدو نه د نورو له خوا د خطر سره مخا مخ شی دو ی خپل منځـــی رقا بتونه او دښمنی پریږ دی او د مخالف گډ دښمن په مقابل کی له یو سنگر څخه دفاع کوی.

همدا شان دبرابر تیا شعو رد فرد او قبیلی د یووا حد اوبل وا حد او په اقتصاد ی او فز یکی لحا ظ د ښکته پور ته طبقو او په فز یکـی لحاظ دقوی او ضعیف تر منـــځ دا نډول (Equilibrium)

داعاده کولو او ساتلو په لار کــی فعال رول لوبوی . دبرابر تیاشعور
په اقتصادی او فزیکی لحاظ ترنورو لوړ او قوی فردیا واحدو نوته
دا اجازه نه ور کوی چی د خپل سری قدرت او واک په لاس کی وا خلی،
انحصار یی کړی او په نورو یی په زور تحمیل کړی ، بلکی دبرابر تیا
شعور دزور او انحصار په مقابل کی دانه ول ساتندوی دی . دسیال
دشعور له کبله د خپل منځی رقابت او مخالفت په دوران کی د قبیلی
مشر او عادی شخص دواړه مکلف دی چی دپښتو نو لی دارز ښتو نو
او نور مو نو دما تولو څخه ډډه وکړی. که څیری دقبیلی مشر یـا
عادی شخص دقبیلی ټولنیـــز ارز ښتو نه په نظر کی ونه نیسی ،
دنورو سره و لسی روا بط ټینګــ ونه ساتی او په هر کار کی اودهر
چاسره په خپل سر چلند وکړی نو پدی صورت کی دغه اشخا ص
دقبیلوی ډلو دملا تړ او مرستـی څخه محرو میږی چی په قبیلوی
ټولنه کی دنورو له خوادمرستی او ملا تړ څخه محرو میت دتجر یه
معنی لری او په قبیلوی روا بطو کی تجر یدیو ډول اجتما عی سقــوط
منځ ته راوړی .

په پای کی و یلی شو چی دسیال شعور دقبیلوی ټو لنو دننه دتربګنی
متقابل رقابت　(Complementary opposition)
منځ ته راو ستلی دی چی ددوی ترمنځ رقابت او مخالفت دفردی
او ډله ییز قدرت دانحصا ر په ضد عملیه ده اودغه عملیه تــل
دبـرابـر تـیـا (Egalitarianism) داعا ده کولو او خو ندی سا تلو
له پاره عمل کوی.

ددوی په اجتما عی روا بطو کی دانحصاری قدرت او اختیا ر په
ځـای دډموکراتیــك کیــد نــی (Democratization) پرو سه وجود
لری چی ددی پرو سی وا قعــی ښکارندو ی ددو ی دقبیلــو ی
جر ګی سیستم یا مو سسه ده .

**۲ ـ فزیکی قوت یا ملا تړ:**

تربورته بی ورورہ مه شی ا و ورور ته بی زو یه .(متل).

دقبیلوی ټولنو د مصوو نیت او سا تنی له پاره څار ندوی او
نور دو لتی اور ګانو نه و جودنه لری .دګډ قبیلوی ملکیت د ګډی

دفاع له دوری را هیسی تراو سه‌له‌کور نی څخه بیا تر قبیلی پوری ټسول واحدونه د خپل خصوصی‌ملکیت او دقبیلی له ګډو سرحدونو څخه‌دهرواحد نارینه غړی دیوبل‌اود باندنیو قبیلو او نو ر و پـــه مقابل کی دفاع کوی. دقبیلی‌وړوکی‌وا حد یعنی دکور نی نارینه غړ ی مجبور دی چی د خپلو ځا نو نو، ښځو ،څمکو ، ما لدار ی او دکور دسا ما ن ساتنه په خپله‌و کړ ی‌اود ضرور ت په‌و خت کی دنورو وا حدو نو دملا تړ او دفاع له‌پاره‌هم‌ځانو نه‌ور ورسوی . دوی تــل په خپل فز یکی قوت یا ملاتړمتکی‌وی اود فز یکی قوت په وا سطه تل خپل حقو ق ترلا سه کو ی اوساتنه یی کوی.

په قبیلوی ټولنو کی نارینه‌پلار وا که حیثیت لری . نارینه‌دکورنی څخه تر قبیلی دټو لو وا حدو نوفز یکی قوت دی او په ټو لنه‌کی امنیت ددوی په خپل منځی‌حمایت‌او ملا تړ ولاړ دی . دپخوا نـــی عنعنی له مخی او س هم دنار ینه‌زلمیتوب ددوی د ملا تړ له مخـــی ټاکل کیږ ی ، یعنی یو هلك هغه‌وخت زلمی تو ب ته‌رسیږ ی چی‌د وسلی دچلولو وړ شی ، و سلـــه‌وا خلی اود کور نی یاد قبیلی د نورو وا حدو نو دنبښتو په دوران‌کی و سله وال ملاتړ وکړ ی . د ملاتړ دو خت نه تر زړ ښت‌پوری‌هر نارینه دخپل‌و خت دو سلی د استعما ل سره پوره آ شنا وی اوهر یو دغرو نو ، ناوو نواومیدان دګوریلا یی چپاوو نو اود لښکرو یرغلو نو څه، بلکی د محیطی ټولو جګړ و په تاکتیکی مهار تونو پوره‌پوه وی. که یو زلمی شپون و ی او په غرو نو کی ر مه سا تی یابز ګروی قلبه کوی یاپټی ته اوبه ورکوی یا یوازی یاپه ډله دیوکلـــی نه‌بل کلی ته ځی، یاپه کور کی بیده وی هغه در می ترشا و سله‌په اوږه دځنګلی حیوانا تو اود غلو مقابله کوی. دیوی او اوبه‌خو ر (او بولګولو) په‌و خت کی و سله ورسره وی او دتګ‌راتګ په وخت کی و سله دځان سره ګرزو ی‌اود بیده کیدو په‌و خت کی یی‌و سله‌یاد بالښت دلا ندی او یاد کټ‌سر ته‌ولاړه وی. دماشو متو ب‌له‌دوری‌څخه هر زلمی دقبیلوی دو دو نو په اساس تر بیه مو می . هغه د کور نی دننه چی دقبیلوی‌دودو نو

دانتقال اساسی حجره ده قبیلوی اخلا قی نور مو نه ، ارز ښتو نه‌او عاد تو نه په‌ځان منی اوپه زلمی‌توب اود زلمیتوب نه ورو سته هم ددغو نور مو نو او ارز ښتو نوسره‌سم چلند کوی.

دقبیلوی نور مو نو ښخه یـــو اساسی نور م دمیړا نی رو حیه‌ده اود پښتو نو لی له مخی میړا نه ډیر پرا خ تعر یف لری .په عادی او غیر عاد ی حالا تو کی دیوشخص میړانه دستا یلو وړ صفت دی. په عادی حالا تو کی باید یو شخص میلمه دو ست ، رښتینی ملگر ی، په‌لوز ولاړ، مودب او داخـــلاقـــی جر مو نو ښخه پاك او په غیرعادی حالا تو کی باید له کور نی ښخه تر قبیلې په ننگ ولاړ وی.

هغه باید دجگړ ی په ډگر کی دښمن ته شا و نه گرزو ی او له خپل بدل ښخه تیر نه شی . که‌یو شخص دمیړانی دپور تنیواوصافو په در لود لو په قبیله کی شهر ت پیداکړ ی دقبیلی غړ ی هغه ته په درانده نظر گوری اوپه اجتما عی‌روابطو کی ښه دریځ غوره‌کوی . که‌یو شخص د میړا نی په ضـــد عملونو شهرت پیدا کړی هغه د خلکو په‌نظر کی سپك او په‌ټو لنه‌کی ښه مو قف نه شی موندلای.

دمیړانی صفت ددوی (پښتنو) په جنگی روحیه کی پوره‌څرگند ـ یږی او دارو حیه ددوی د قبیلو ی‌اړ یکو ښخه سر چینه اخلی . تر اوسه داسی با ندنی شرایط منځ‌تـه نه دی راغلی چی ددوی قبیلو ی روابط او اجتما عی، اقتصـــاد ی‌چوکاټ ور ما ت کړی. دوی تـــر اوسه د خپلو قبیلوی شرا یطو د ننه‌یو ډول آزادی‌ساتلی ده او د خپلوجنگی مهار تونو او رو حیی‌په‌قو ت دقبیلوی آزادی حفا ظـــت او دفاع کوی . همدا جنگی‌رو حیه‌ده چی یو وا حد په بل، یوه‌قبیله په‌بله او باندنی عنا صر دسیمـــی‌په قبیلوکی په زور نفوذ او پر ـ مختگ نه شی کولای .

دوی تل دزور دنفوذ او تحمیل دخطر ی په مقابل کی سره یـــو کیږ ی اوداډول یووا لی ددو ی‌د قبیلوی چوکا ټ دننه خپل منځـــی روابط ټینگ سا تی چی دد و ی قبیلوی آزاد ی دجنگی رو حیی ، جنگی مهار تو نو اود باند نیو د خطر په مقابل کی داتحاد په بنسټ ولاړه ده.

خپل منځی اود باندنیو سره د جګړی اعلان داو لسی(قبیلوی ) جر ګی(۱) له خوا کیږ ی .
دهری جګړی له پاره د ملا تـړ شمیر د جګړی دنو عیت له مخی معلو میږ ی . که یوه جګړه وړوکی وی نود ملاتړ شمیر هم لږ وی او که چیری جګړه لو یه وی، نو پـه لویه جګړه کی دقبیلی ټول نارینه دجګړی په لور سو ق کیږ ی.دجګړی ډګرته دتګ نه مخکی د خیلو نـــو ځایو نه معلوم وی او هر خیــــل خپل جنګ ځای ، دپښتو دکهولونو او کور نیو تر منځو یشلی وی. که چیری دجګړی ډګر نږ دی و ی د د هر و ا حــد ښځی اوپیغلی دخپلو نارینه و سنګرو نو ته ډوډ ی ،اوبه کار توس او نور جنګی ضروریا ت وروړ ی. دقبیلوی دو د له مخی د جګړی په دوران کی ښځه ، ما شوم او هغه سپین ږیر ی چی د ملا تړ نـه وی نه وژل کیږی. (*) هـــمدا شا ن که په یو سنګر کی ځینـی اشخا ص د مقا بل لور دیوشخص په ضمانت ځانو نه تسلیم کړ ی هغوی د مر ګ ژو بلی څخه خلاص دی.
په ناځا پی جګړو کی چی د دواړو خواوو فز یکی قوت یو شان نه و ی دبی ځایه مقاو مت او ځا نوژنی په ځای تیښته میړانه ګڼــل کیږ ی .د مثال په تو ګه که دیوی ډلی شمیر سل اودبلی شل وی او سل کسیزه ډ له ناځاپه حملـــه وکړی او شل کسیزه ډلــه خـپل مرګ ژوبله اوسپکاوی احسا س کړی په داسی حالا تو کی مقاو مت اوځان وژ نه میړانه نه ده ، بلکی حماقت ور ته و یل کیږ ی. په داسی مواردو کی ((دځوانانو یا خر پ دی یاترپ)) یعنی ترپ و هـــل او ځان خلا صو ل میړانه ده .

---

(۱) دکو نړ په سیمه کی دغسی یوی جر ګی ته و ستلی جر ګه وایی. وستل دهغه میدان نو م دی چی د کلی یا او لس په منځ کی وا قع او خلك دغونډ ی کولو له پاره په کی راغونډیږی.
(*) که دجګړی په دوران کی دجنګ ډګر ته ښځی راشی او دوی دجګړی دبندو لو غوښتنه و کړ ی دښځو دغوښتنی په اساس دوا ړه ډلی جګړه بندوی . که یو نارینه دجګړی په دوران کی د ښځی توهین کوی هغه د میړانی نورم ما توی او هغه عملی غندل کیږ ی.

**٥ ـ بدل :**

که یو شخص ډیر جایداداو ډیری لوڼی و لری او زوی و نه لری په قبیلوی ټولنه کی دغه شخص د فزیکی قوت په لحاظ ضعیف او په ژوند باندی میرات گڼل کیږی. سره له دی چی داسلامی شریعت په حکم دپلار په میراث کی دوه لوڼی دیوه زوی سره مساوی حق لری اما دقبیلوی دود له مخی لوڼو ته میراث نه ورکول کیږی ، بلکی دپلار دمړینی نه وروسته د هغه جایداد دهغه زوی یا زامنو ته پاتی کیږی.

تراوسه په قبیلوی ټولنو کی دخو له ویش له دوری څخه دا عنعنه راروانه ده چی پلار لوڼو ته او ورور خویندو ته په میراث کی څمکه او نور منقول یا غیر منقول شیان نه ورکوی چی هغه یی دپلار یاورور دکور څخه د میړه کور ته منتقل کړی. که چیری یو شخص ډیری لوڼی ولری، مگر بی زوی یه میرات مړ شی ددی شخص دکور نی تسلسل پای ته رسیږی اودده منقول اوغیر منقول جایداد، خوانه کو نه یه او ناواده لوڼی دده نژدی وارثانو ورور یاورونو ته او که ورورونه لری وریرونو ته او که دا هم ونه لری دتره زامنو ته رسیږی .دمړه سړی ناواده لوڼی یاوریرونه او یاد تره زامن نکاح کوی او که بل چاته یی ورکړی د هغوی دسرو لور میراث خواره اخلی .

پښتانه دکور نی د منځه تلو اودزوی نه پر ته نورو میراثخورو ته دښمنو ، لوڼو او جایداد پاتی کیدو څخه ډیره زیاته کرکه کوی. که چیری دیو شخص زامن نه کیږی هغه دزوی دپیدا ښت په هیله بله ښځه کوی تر څو چی یو زوی یی پیداشی اود هغه دمړینی نه وروسته د هغه دکور نی تسلسل جایدا د او تورسری په خپل کور خوندی پاتی شی.

زوی دکور نی دتسلسل اساسی محور، دپلار د منقول اوغیر منقول جایداد وارث، اقتصادی گټندوی، دکور نی ساتندوی ، دپلاردد وستانو دوست،دپلار د دښمنا نودښمن، دکور نی دبدو بدل اخیستو نکی اوپه ټولو قبیلو ی چاروکی دکور نی نماینده وی . هغه شخص چی ډیر زامن یاورونه لری هغه په قبیلوی ژوند او روابطو کی د

کورنی په فزیکی قــوت متــکی وی اود فز یکی قدر ت له کبله دقبیلی نور وا حدو نه د هغه دسپکاو ی دو هلو ،وژ لو اود هغه په ماد ی حقوقو او خصو صی ملکیت باندی دتیر ی څخه ډډ ه کوی . د بد لد اخیستو دعنعنی له مخی تیر ی کوونکی په دی پو هیږی چی کـــه چیر ی هغه د ملاتړ لرو نکی شخص په شخصیت یاپه ما دی حقو قـــو او خصو صی او شخصی ملکیــت تیری وکړ ی هغه بی کسا ته نه پاتی کیږ ی او په آینده کی ، د متقابل عکس العمل سره مخا مـخ کیږ ی . ددی پر عکس که چیر ی یــوشخص ډیر جایداد او لوړنـــی ولری او هغه بی زو یه او بـــی وروره و ی او تر شا کور نـــی فز یکی قوت او ملاتړ و نه لری دغه شخص دقبیلوی روا بطو په لحاظ ضعیف او بـی ملا تړ ه ګڼل کیږی اوددغه شا ن شخص سره دبدود کسا ت څخه ډار لږ وی . پـــه قبیلوی ټو لنو کی داسی قضیـــی ډیری پیښی شوی دی چی تربرونـــو بی ملاتړه میرات تربور دمیرا ث له پاره پټ او یاښکاره وژلی دی(۱)

په قبیلوی ټو لنو کی دکور نی دبدو بدل اخیستل په میرا ث پوری ارتباط پیداکوی . دو ینی دنژ دی ارتباط په لحاظ زوی دپلار ، ورور دورور ، وراره دتره ، دتره زوی دتره دزوی /میراثخواره دی، نوکه چیری په یوه کور نی کی پــلار د نورو له خوا تو هین، یا مړ شی یا کور نی ته یی شر م وا ړوی نوپه او له در جه کی دزامنو مسوو لیت دی چی دپلار اود کور نی دشر م بدل وا خلی . که زوی و نه لر ی دغه مسوو لیت د هغه ورو ڼه،ورپسی د هغه وریرو نه ، بیاد هغه

(۱) که د میرا ث له پاره قتل په پټه وی اود قبیلی نورواحدو نه ور باندی پوه نه شی نو په د ی صورت کی میراث خوار ه( وروریا دتره زوی) د مقتول جایداد ، ا و ښځینه و ګړ ی په خپل تصر ف کی راو لی . که چیر ی د میرا ث له پاره دقتل څخه نور وا حدو نه خبرشی هغوی راټو لیږ ی دقاتل په کور حمله کوی . که قاتل په لا س و ر شی هغه و ژنی او که قاتل تښتیدلی وی دقبیلی غړ ی دقاتل اومقتو ل دوا ړوکو رونو ته اور اچوی ، سامان یی تالا کوی ،څاروی یـی حلا لوی ، فصلو نه او باغو نه یی وهی.

دتره زا من او په پای کی د هغه‌نور نژدی خپلوا ن یی تر سره کوی. دزوی ځخه نیولی تر لیری تربرونو پوری د کور نی یا کهـــو ل نارینه غړی مکلف دی چی دنوروڅخه دکور نی دشر م اود کور نی دغړی دقتل بد ل وا خلی او پـــه اصطلاح دپښتو هو ډ پوره ، ا و مسوو لیت تر سره کړ ی او په آینده کی ځانو نه دپیغور څخـــه خلا ص کړی. که چیر ی دکورنی‌نارینه زوی او نور دکور نی‌دشرم او قتل بد ل وانه اخلی ،ستر گی‌ور باندی پټی کړی په وا قعیت‌کی هغوی دپښتو نو لی د دود له خوامنل شوی اصول ، یعنی بدل‌څخه غاړ ه غړو ی او په قبیله کی دغه‌شا ن اشخا صو ته دبی غیر ته ، کوږ شر می ، قوم شر می ،بی‌پښتواو په نورو نو مو نو پیغور ورکول کیږی.

بدل اخیستل دقبیلوی ټو لنـــو د منظمی انار شی تقاضا ده . دلته قانو نی مصوو نیت او ساتنه نه لیدل کیږ ی . هر تیری کوو نکی مخکی له دی چی عمل و کړی‌هغه‌دخپل عمل په مقابل کی د مقا بل لور ی په عکس العمل یا بـــدل پوهیږی . دبد ل دناوړه عوا قبو له ډاره هر څوك ز یار باسی چی‌دخپل تیری کوو نکی عمل په‌و جه خپل ځان او خپل اولاد د خطر ی‌سره مخا مخ نه کړی . بدل د یو کنترول کوو نکی بندیز په تو گه‌هر تیری کوو نکی ته دهغه دعمل ناوړو عوا قبو په باره کی د عمل څخه تر مخه دفکر او غور مو ور کوی چی هغه دخپل عمل پـــه‌مقابل‌کی څرنگه دغچ یابد ل سره مخا مخ کیږ ی . په قبیلوی ټولنو کی بدل اساسی عا مل دی چی د هغه له مخی یو فرد په‌یو بل فرد، یو وا حد په‌بل‌وا حد او یوه قبیله په‌بله قبیله بی ځایه تیری‌نه‌کوی‌او نه‌یو بل ته دسپکی او شر م‌داړولو جرات کوی. په‌وا قعیت کی بدل دټو لنی افراد له بی ځایه مر گ ژو بلی او په مجمو عی تو گه‌ټوله‌قبیله دخپل سره چلند اوگډوډ ی څخه ژغور ی. همدا علت دی چی‌په‌قبیلوی ټو لنو کی د مر گ ــ ژو بلی ،غلا ، ز نا او په ځمکـــو او بڼځو کشا لی نسبتالږی دی .

ډير زا من دکور نى فز يکي‌قوت‌دکور نى وارثان، بدل اخيستونکى اود برابر تيا او تواز ن ساتندوى‌دى. له دى کبله څه و خت چې په کور کى زوى و زين ى دکور نى غړى د هغه په زين يدو ډزى کوى، زير ى ور کوى دنوم ايښو دودسرخر يلو او سنت کولو په‌مراسمو کى‌يى نژ دى خپلوا ن هغه ته سو غاتو نه راوړ ى اودپلار له خوا يى هم ډوډ ى او تحفى ور کول‌کيږ ى‌اود پيدايښت نه تر واده په ټولو مراسمو کى يى خو شحا لى روا نه‌وى.

### ٦ - دفز يکى برلا سى په مقابل‌کى انډول جوړول:

د هرى قبيلوى ټو لنى د غړ و شمير دملاتړ په نا مه دټو لنى فز يکي قوت او قدر ت تشکيلوى. هغه قبيلى چى په يوشا ن‌قبيلوى شرايطو کى ژو ندکوى‌او فز يکي‌قوت يا ملا تړ يى مساوى وى اويا لږتوپيرو لرى دوى يوى بلى ته د مساو ى په‌نظر گور ى (١) سره له دى چى دبرا بر تيا اوسيا لى دشعور په‌و جه وړو کى قبيلى د لويو قبيلو په مقابل کى ځانو نه‌ښکته نه گڼى خو دعمل په ډگر کى لويى قبيلى دوړ و کو قبيلو پــــه‌مقابل کى ځانو نه ، قوى ، غاوره او برلاسى گڼى . هغه وړو گـــى گرو پو نه ياوړو کى قبيلى چى د لو يو قبيلو په منځ کى او يا ترڅنګ يى پر تى دى دو ى د لو يو قبيلو دفز يکى بر لا سى په مقابل‌کى انډول په لا ند نى ډول منځته راوړى:

---

(١) لکه د حو ست‌ځدرا ڼو،او منگلو او ياد باجوړ په‌سالارز يو او ما مو ندو ټى .

اول ـ هغه وړو کی ګرو پو نه چی له نورو ځایو څخه را غلیدی او یاد لویو قبیلو دراتګ تر مخه پهسیمه کی میشتو ی ، دوی د اقلیت داحساس له مخی چی دلو یوقبیلو شو مه و نه ګرز ی پهخپل منځ کی سره یو شو ی دی .دد ی‌بنه مثال په دانګام کی دمشوا نو وردګو او ساپو دګرو پو نواتحاد دی. دلته مشوانی د جندول،وردګ ددیر دګانشا ل او سا پی دپیچ‌له‌دری څخه را غلی دی اود سالارزو او ما مو ندو دلویو قبیلو په منځ کی‌پراته دی . داواړه ګرو پو نه دیوی افسا نی له مخی ځانو نه وروڼه ګڼی او دری واړه ځا نونـه یوی پلر ګنی ته منسوبوی . پـه‌لویو قبیلو کی دنو رو قبیلو څخه راغلی څو کور نی او یالږ شمیر وړو کی ګرو پو نه او سیږ ی.دوی دلته ځمکی اخیستی اود و خت په‌تیر یدو دنو رو قبیلو بر خه شوی دی.

دویم ـ ځینی وړی قبیلی پهخپلو ټاکلو سیمو کی دلویو قبیلـــــو تر ځنګ پر تی دي اود تاریخ په‌او ږدو کی دوی تل دلویو قبیلو سره د ځمکو ، اوبو، ځنګلو نـو، او نورو په لا نجو اختهو ی چید وړو اولویو قبیلو دمثا ل د پاره دخو ست سیمه وړ اندی کولا ی شو . په خو ست کی داسمعیل خیلو وړه قبیله د ځدرانـو د لویی قبیلی ، دمندو زو قبیله، دمنګـلـواو شمل قبیلی د ګر بـــزو تـرـ ځنګ پر تی دی . دځدرا نوقبیلی‌داسمعیل خیلو ، د مندو زو ، د منګلو او شمل قبیلی دګر بز و سره سر حدی شخړی در لهد ن.

وړو قبیلو د لویو ګاونډیو قبیلو ډیر غلو نو د ترخو تجربو او یاد آینده ېر غل له ډاره ځانو نه په لویو قبیلو پورې ونښلو لی وو. اسمعیل خیل چې دځدرانو سره یې شخړې درلودې د منګلو پر بانه (Protectorate) شوی مندوزي دځدراڼو او شمل دتنیو (۱).

---

(۱) په خوست کې ځینو وویل چې اسمعیل خیل او مندوزي پر بانه دي اوځینو وویل چې یوازې د شمل او سید و نکی دتنیو پر بانه دي او د منوں او سیدو نکی دمنګلو پر بانه دي. اسمعیل خیل ځکه د منګلو ملګري دي، چې دوی تورګوندي دي او مندوزي د سپین ګوند د ارتباط په لحاظ دځدراڼو ملګري دي.



# کوژدی

دلرغو د آریایی قبیلو د مطالعې څخه څرګندیږي چې په دوی کې دتوکم (نژاد) دو یني دسو چــــه ساتلو له پاره ایندو گمـــــی (Endogamy) (۱) عنعنه موجوده وه او ډېر ځېنو منابعو به حوا له په آریایي قبیلو کې دتوکم دو یني دسو چه ساتلو عنعنه دومره ټینګه وه چې ورور دخور سره واده کاوه . زر دشت لو مړنی شخص و چې هغه په خپل عمل او په خپـو لارښوو نو کې دایګزو گمـــــی (Exogamy) (۲) درواجولو پیل وکړ

په پښتنی قبیلو کې په ډېر ه اندازه دآریایي قبیلو د ایندو گمی او په لږه اندازه د ایګزو گمی ، دواړه عملیې لیدل کیږي .دکوژدې تر مخه په نظري توګه دتره لوڼ او دتره زوی ، دترور لور اود ترور زوی ، دماما لور او دماما زوی او نور دو یني دارتباط په لحاظ دی خپلوان یوبل تــه (خــور او ورور)وایي ، خو په عمل کې د باندنیــو په‌تناسب دنژ دی خپلوا نو ترمنځ ډېر و دونه کیږي . ا سلام پــــه پښتني قبیلو کې دانهو گمی‌عنعنه‌تقو یه‌کړی ده خو بیا هم په دوی‌کې دسا می کلتور غو ندی د( ابن عم) داعنعنه چې دتره لور دتره دزوی په‌پوتنسیل (بالقوه) کې میر من ده‌اود تره لور دتره دزوی داجاز ی نه‌پر ته دباندني شخص سره‌واده نه‌شي کولای په شد ت روا ج نه لري . په دوی کې د نږ دې خپلوانو ترمینځ واده دا معنی نه لري چې دتره لور دې حتما دتره دزوی سره‌او یاد تره دزوی په اجازه وا ده

---

(۱) هغه واده چې دو یني پــه لحاظ دنژ دی قو می وا حدو نوتر منځ کیږي.

۲ ــ هغه واده چې دقو می ، وا حدو نو دباندی‌صورت نیسی .

وکړی، بلکی په دوی کی داندوګمی عنعنه ، ددوی داقتصاد دتولید دړول، دو ینی دسوچه والی ، دسیال او تربګنی دعنعنو سره کلك ارتباط لری . د پښتنو په لومړنی تولیدی ډول کی دخو لی و یش رواج در لود اودد ی تولید ی ډول په دوره کی ګډقبیلوی ملکیت (ځمکه) او یاد ګډقبیلو ی ملکیت تولید (غله) دکور نی په ښځو او نارینه وو په مساو ی توګه ویشل کیده .

سره له دی چی د خو لی و یش په دوره کی ښځی اقتصاد ی برابر تیا در لوده ، خو ددی اقتصاد ی مساوا تو سره سره بیا هم نارینه په ټو لنیز لحاظ دګډ قبیلو ی ملکیت دګټندوی او ساتندوی په تو ګه فزیکی قوت او ملاتړ ګڼل کیده. په دی دوره کی په ګډ قبیلو ی ملکیت کی تر کور نی اود کور نی تر غړ یو پوری د هر یود ملکیت حد اوحق معلوم و . قبیلو ی جوړ ښت اود ګډ قبیلو ی ملکیت خصو صیاتو دنن دی خپلوا نوپرته باندنیو عنا صرو ته دا اجازه نه ور کوله چی دښځی دخپلو ی په واسطه دی په قبیلوی جوړ ښت او ګډ قبیلوی ملکیت کی دګډو ن حق پیداکړ ی او یادی دباندنیو عنا صرو سره دواده په صور ت کی دکور نی ملکیت (ځمکه) یاد ملکیت تولید(غله) دښځی دبر خی په نامه بهر نورو ته و لاړ شی . دتولیدپه لومړنی ډول خو له و یش کی یوازی انډو ګا می دکور نی په ګډ ملکیت کی دباندنیو عنا صرو دګډو ن اودښځی دبر خی په نا مه دکور نی د برخی دکمیدو مخنیوی کاوه . د خو له و یش نه ورو سته دملا تړ او شجری دو یش په دوا ړو ډولونو کی ښځه دو یش څخه و ایستل شوه اود ځمکی بر خی یواز ی په نارینه و باندی و یشلی کیدلی چی په دی دواړو حالا تو کی د ښځی دخپلوی دلیاری دکور نی په ګډ ملکیت کی دباندنیو عنا صرو د ننوتلو اود ملکیت دبر خی دکمیدو ویره لږه شوه اود خو له و یش د انډو ګمی په تناسب دملا تړ ا و شجر ی په و یش کی په نسبی تو ګه ایګزو ګمی ته زیا ته لیار ه خلاصه شوه .

داقتصاد ی توليدی ډول دقبيلوتر منځ او په‌يوه قبيله کی تـــر کور نيو پور ی دو ينی دارتباط په‌لحاظ دخيل او بل نژ دی اوليری تر منځ دتوپير احساس ژ و نـدی‌سا تلی دی او په خپل وار د ی احساس په دوی کی دو ينی‌دسوچه‌وا لی عقيده پياوړ ی کړ ی ده.دوی دو ينی په ارتباط خپلوا ن ديو بل‌سيال گڼی او دسيـال د مفـکوری په‌و جه او س هم دايگزو گمی پـه‌تناسب انډو گمی په عمل کی‌ډيره ده. پر دی بر سيره په قبيلو ی ټو لنه کی انډو گمی دگټور تو ب په لحاظ دکور نيو دشخړودمخنيوی‌له پاره اساسی او عملی چاره ده. په‌کور نی کی دتره زا من ديو بل‌تر برو نه دی. دوی دکور نی‌دمشر توب له پاره ر قابت کوی چی کله‌ناکله ددوی تر منځ ر قابت‌ددښمنی سر حد ته‌رسيږ ی . ددوی‌پلرو نه‌له دی ډاره چی په آينده کی‌کورنی دسختـر قابت او دښمنی ښکارنه شی يو بل ته لور ور کوی او د ښځو دخپلوی په واسطه کور نی‌دگډوډ ی څخه ژغور ی.دخصو صی ملکيت د منځته راتگ په‌و جـــه‌ښځه داقتصاد ی محرو ميت څخه علاوه په خپله د ملکيت يوه‌برخه وگرځول شوه . دخصو صی‌ملکيت په لو مړ نی مر حله کی دبار تر (Barter) سيستم په اساس ښځه دښځی او خارو يو په‌بدل کی تباد له کيده چی‌وروسته دپيسو درواج مو ندلو په‌مر حله کی دښځی دولور مو ضوع را منځ ته‌کيږ ی.

طبيعي ده چی دخصو صـــــی‌ملکيت د منځته‌راتگ سره دقبيلی ځينی غړ ی بی ځمکی ،ځينو ته‌لږه‌ځمکه ور سيده او محـــــدو د اشخاص دزياتو ځمکو خاو ندا ن شو ل او په قبيله کی د خپلـــو مشخصو شرايطو سره سم ښکنته‌او پور ته اقتصاد ی طبقی را پيدا شوی، خو داقتصاد ی طبقو سره‌سره دو ينی دارتباط له کبله د

قبیلی ټول غړ ی دیو بل دسیال‌په نا مه په‌ټو لنیز لحاظ مساوی پاتی شو ل.

تر اوسه په ټولو پښتننی قبیلو کی اقتصاد ی طبقو دښځو په‌ټولنیز موقف داسی اغیزه نه ده کړ ی‌چی دقبیلی دښکته طبقی ښځی ته دی دسیا ل په نظر و نه کتل شی او ځوك دی ورسره دکور نی دښکته اقتصاد ی مو قف په‌و جه وا ده‌ونه‌کړی. دو یش د مودی را هیسی دپښتنو سره غیر پښتون عنا صر دهمسایه بز گر او کسبگر په‌توگه ژو ندکوی او تراو سه د پښتنو او غیر پښتون عنا صرو تر منځ اجتما عی( مر تبه ییزه لړی) دپخوا په‌شان ټینگه پاتی ده . دوی دوینی دارتباط په لحاظ غیر پښتو ن اهل‌کسبه عنا صر خپل سیال نه‌گڼی او تر او سه ددوی سره د ښځـو دخپلوی انداز ه یابیخی لږه ده‌او په‌ځینو قبیلو کی ور سره هیـــځ خپلوی نه کیږ ی .

دو یش په زرا عتی ،ما لداری، اقتصاد کی ښځه دکار او تو لید فعال فکتور و. شرایطو هغی تــه دستر یا اجتما عی تجر ید اجازه‌نه ور کوله، بلکی د شرایطو په‌وجــه‌هغه مجبوره وه چی د کر نی یامال دار ی اقتصاد په‌تولیدی چارو کی‌دنارینه‌و سره فعا له بر خه‌وا خلی ددی بر عکس دقبیلی د ښتمنو ، کور نیو په ښځو د ستر یـــــا اجتما عی تجر ید تحمیل دخصوصی‌ملکیت دبیرو کرا سی او نو رو کلتورو سره دتماس او تقلید په نتیجه کی منځته را غلی دی . د خصو صی ملکیت په دوره کی د قبیلی اقتصاد ی ، تولید ی‌وسیله یعنی‌ځمکه دځو محدودواشخا صو په‌لا س کی متمر کزه شوه او د ځمکی داضا فی عوا یدو په‌و جه‌دغه محدود نفر دقبیلی دمشرا نـو (خان یا ملك) په نو.مو نو مشهور شول . دوی داضا فی عوا یدو له کبله دکور دننه اود باند ی‌دزراعتی‌چارو له پاره ښځینه مز دور ی ، نو کرا ن او بز گرا ن استخدا مولای شو ل چی په پای کی دد غو کور نیو ښځو دتولید دفعا لـــه فکتور پخوا نی خصو صیا ت د لاسه ور کړل اود کور په ځلو رودیوا لو نو کی تجر ید اومحصوری پاتی شو لی .

همدا شان اقتصادي شرایطو قبیلوی مشرانو ته دګاو نه یــــو دو لټونو دبیرو کرا سی اود هغو نورو کلتورونو سره چی د پخــــوا راهیسی په کی خصو صی ملکیت رواج مو ند لی و دپرا خه اجتماعی سیاسی تماسو نو ز مینه برا بره کړه اوددی تماسو نو په وجه د قبیلی مشرانو په تقلیدی تو ګه دکور نیو په ښځو ستر یا اجتماعی تجر ید تحمیل کړ. له بلی خواتراو سه دقبیلوی بز ګرانو اودلږو څمکو دخاو ندانو په اکثر یت کی دښځو دکار پخوا نی عنعنه ژوندی پاتی ده او ددوی په کور نیو کی او س هم ښځه دکار او زرا عتی، مالدار ی تولید فعال فکتور دی .ددوی دکور نیو نارینه دا اقتصادی توان نه لری چی دکور دننه ښځینه مز دوری او د کور د باندی بزګـــر او نو کر استخدا م کړی او یــــا پراخه ا جتماعی تما س و نیسی. داقتصاد ی شرایطو له مخی دوی په ټولنیز تجر ید کی ژ و ند نه شی کولای ، بلکی ددوی دکور نیـــواقتصاد ی شرایط دوی مجبوروی چی دکور په کارونو اود ما شومانو په روز لو بر سیره دکور نی ، د نارینه و سره اوږ ه په اوږ ه پـــه زراعتی اود کور دما لدار ی په چارو کی بر خه واخلی اود کار دفعا له فکتور په حیث خپله اجتما عــی آزادی حفظ کړی.

په او سنی قبیلوی جوړ ښت کی کور نی دپښتنو نو لی دکود، مادی او معنوی کلتور او ارز ښتو نو ساتندوی ،د هغو دانتقال بنسټیزه حجره ده او په کور نی کی دکلتور دماد ی او معنوی مفا هیمو تسلسل او ارتباط ژو ندی او فعا له ساتل کیږی. داساسی حجر ی په تو ګه دکور نی دتیرو او سنیو اوراتلو نکو نسلو نو اود قبیلی دنو ر و کـور نیو سره د و ینی دارتباط د زنځیر مر کزی کړی تشکیلوی . سره له دی چی په قبیلو کـــــی خصو صی ملکیت منځته را غلــی دی خو دقبیلوی ګډ ملکیت پخوا نی پاتی شو نی(بقایا) او س هم په کور نی کی لیدل کیږ ی ،څکه چی تر او سه دکور نی مشر په خپل ژو ند کی دکور نی ملکیت دزامنو تر منځ نه و یشي اود کورد مشر تر مړینی پوری د کور نی نا رینــه غړی د څمکی دنه و یش له کبله په

يوه کور کې او سيمې ی . په يو کور کې او سيدل په ورونو کې ديووا لى اود کور نى دپت دساتلو رو حيه ژو ندى سا تى اودو ی دکور نى دمادى او معنوی گټو او تاوا ن په مقابل کې دوا حدفز يکى قو ت په تو گه گډ عمل کوى. دپلارد مړينى نه وروسته دپلار ځاى د هغه مشر زوى يا په کشرانو زا منو کې داو لسى اعتبار خاو ندزوى نيسى .د ځمکى نه و يش او ډيره موده په يو کور کې او سيد ل په ورونو کـى داعاد ت پيداکوى چى د ځينـــــو کور نيو نارينه غړى دپلار د مړ ينى نه وروسته هم ځمکى نه سره جــلا کوى او تر يوو خته يو ځاى په يو کور کې ژو ندکوى .گډ او سيدل دکور نى په نارينه او ښځو کې ديوى کور نى دغړى تو ب رو حيه پياوړ ی سا تى چى دبيلتو ن نه وروسته هم دکور نى ټول غړ ی يوى کورنۍته ځانونه منسوب گڼى.

دځينو قبيلو شتمنى کور نى داعنعنه لرى چى دځمکى دو يش په وخت کى کشرا ن ورونه مشرورورته دکور نى دحيثيت او او لسى ارتباط دسا تلو په خاطرد(مشرانى) په نا مه څه زياته ځمکه ، نغـد ی پيسى يانور شيا ن ور کوی.مشرورور د(مشرانى) داخيستو له کبله مکلف دى چى د مشر رول په غاړه وا خلى او دپخوا په شان دکورنى اجتماعى روابطو ته دوام ورکړى.په زيا ترو قبيلو کى ورو نه ميرا ث په مساوى تو گه و يشى ، مشـــــرورور دکور نى دوا کمن په تو گه د کشرانو ورو نو او زا منو دښځو انتخاب په خپله خو ښه کوى.مشر دکور نى دنارينه او ښځينه غړ وسره د مشور ی کولو ورو ستــه داحق لرى چى دکور نى نارينه وته څوك او له کو مى کور نى ښځه نجلى و غواړ ی اود خپلى خور يالور په واسطه دچاسره اودکو مـى کور نى سره خپلوى وکړ ی . اسلام تر څلورو ښځو پورى دنکاح اجازه ورکړى ده . دبز گرو ا و لږ ځمکو په پر تله په شتمنو کورنيو کى پو لى گمى (Polygamy) يعنى تعدد زو جات زياته ده . د شتمنو کور نيو نارينه دفز يکى قو ت يا دډيرو زا منو درلود لو په هيله د قبيلى دننه يا د باندى دغه شان خپلوى کوى .

دښځو د خپلوى له ليار ى دنورو کور نيو ياد قبيلى فز يکى قو ت يا ملا تړ راجلبولو اود هغو سره دسيا سى ډ لو دجوړو لو په هڅـه

او ياد ښکلي پيغلي سره دوا ده په صورت کې دجنسي تسکين له پاره دوه، دري ياڅلور ښځې کوي. که ديوی خوا پو لي گمي دکور نـــي فز يکي قوت او حيثيت زيا توی خو له بلي خوا همد غه کار کورني ددا خلي شخړ و او اقتصادي لانجوسره هم مخا مخ کوي. يو ميړه ته طبعا ټو لي ښځې يو شا ن منلي نه وی بلکي هغه ته يوه تر نو ر و زياتره منلي وی . منلي ښځه اودهغي اولاد په نورو ښځو اود هغوی په اولا دو ناو ړه اغيز ه کوي .دپلار په ژوند کې د ښو او دهغوی دزامنو ترمنځ پټ او ښکاره رقابت او شخړ ی رواني وی اما څــــه وخت چې پلار مړ شي ،نودکورني دگډ ملکيت دو يش په دوران کې دوروڼو تر منځ پټ ر قابت دښکاره شخړ و حاده ښه غوره ه کوی چې دا کور ني شخړ ی تر برو نو ،ماما گانو او نورو مخالفينو ته دلا ســـ و هنې زمينه برابروی او په نتيجه کې داسې کور ني فز يکي وا حـــد قوت اود کور ني پخوا ني پت او حيثيت له لا سه ور کوي . له بلـــي خوا دډيرو ښځو دډ يرو زا منو ترمنځ دکور ني دگډ ملکيت دو يش له کبله دکور ني متمر کز اود يومشر تر شاو لاړ اقتصاد ټوټه ټوټه کيږی چې دغه شتمنه کور نۍ په يوه يا دوو نسلو نو کې لږ څمکي قشر ته را ښکته کيږی . همدا شا ن دوروڼو يو ځای او سيد ل لږ څمکو او بې څمکو ته هم اقتصادي گټــه لري . ددا سې کور ني ځيني غړ ی دمز دور ی له پاره نورو ځايو ته ځي اوځيني په گډه دزرا عت، مال دار ی ، سوداگری او نور کارو نه کوی اود کور ني ټول غړ ی خپلي گټې په گډه کور تـــه راوړ ی . د اقتصاد ی توا ن دنشتوا لي له کبله په لږ څمکو او بې څمکو بز گرانو کې پو لي گمي بيخي لږ اودد و ی لوی اکثر يت يوه ښځه لري . په دوی کې يواز ی هغه کسا ن دو ه ښځې لري چې ياور ته دکور ني کونډه پاتي وی اويا دمخکيني ښځې څخه نارينه اولا دو نه لري پــــه منځني تو گه د پراخې کـــورنـــي (Extended family) شميـــر ډير دی. په داسې کورني کې نيکـــه د نيکه وروڼه ،د هغوی مير منې،زا من، ناواده لوڼې، تر يندی ا و لمسې يوځای او سيږ ی اوپه دوی کې دعمر په لحاظ د مشر اوکشر نارينه او ښځې تر منځ د درناوی مر تبه ييزه لړی و جــــو د لري.

# پښتونولي

## جرگې ، نرخونه او تړې:

مارکس او انگلس دوا کمنې اودولت نـــه وړانـــدې حالت،د اولسي جرگو((اود طبيعـــي ابتدا يې او لسوا کې)) په‌وا سطه تشخيصوي . رومې مورخ تا ځيتوس ليکي چې(( دلو يـــو مسا لو په باب ټول خلك مشورهکوې)) او په دغسې جرگو کې حتي دمرگ ، پريکړ ې هــــم صادريږي . (۱)

په لرغو نې يو نا ن کې‌داولسي‌مـــشورې د پــا ره ((agora)) او په روم کې ((Comitia curiata)) په‌نوم مو سسه مو جوده‌وه.مورگن هم دبهر د منسو بينو له‌پاره ((دمشور تې غو نډو)) نه خبرې کړې دي. په‌پښتني ټو لنه کې هـــم‌دجر گې مو سسه له ډير ې اوږدې مودې را هيسې مو جوده ده . دا مو سسه دپښتو نو لې داصو لوپه چو کاټ کې هغه عنصر دی چـې دجگړو او شخړو په تحديد ا و هوارو لو کې مر سته کو ي . د جر گې مو سسه نه يواز ې‌دپښتني ټو لنې دبيلا بيلو وا حدو نو پـــه‌سو يه تر سره کيږ ي ،بلکې موږ يې په ملې سو يه د((او لســـي جر گې)) او «لويې‌جر گې» په‌نامه هم پيژ نو.

---

(1) C.C. Tacitus, werke, Gernani en, dt. Ausgube, Berlin 1811, p. 12 f.

**الف ـ د خو ست دقو مو نو نر خو نه اوخلي:**

دخوست د سیمی قو مونه(۱)ټولو نر خو نو ته ځلي هم وایی . یعنی داچی هر نر خ او یا هر ځلی یـو نورم (Norm) دی چی‌د هغه په ما تولو سبره مجـــا زا ترامنځ‌ته کـیږی. دمثال په‌توګه که‌د دوو ډ لو تر منځ پتنه (دښمنی)وی‌که دهری خوا نه یو تن و لګیـــده او مړ شو کله چی دوی جر ګه راوغواړی مثلا په تنهیو کی‌چی ځلور قومونه‌دی (۲)دهریوه‌خیل‌دوه‌دوه‌کسه جرګی ته‌راغواړ ی. البته پخوا له دی دوی دی ته سره رضا شوی‌وی‌چی خپل مړ ی سره خلا ص‌کړ ی اوجوړه وکړی . جرګه دتنهیو منـځ (خړی شګی) ته‌را ټو لیږ ی.دمد ـ عیانو هر یو د خپل مړی نو ماخلی‌اوټو پی یی په‌نا مه جوړوی.ورو ـ سته له هغی دواړ ه د خپلو مړ وټو پی سره ږ نګوی او دد و ی تر منځ رو غه کیږی.

که‌چیر ی دجر ګی غړ ی فکـروکړی چی یو د دوا ړو په دی جوړه نه دریږ ی او کیدای شی د بلی خوا ځوك مړ کړی ، نو دد و ی ځخه د((نوواړ)) یا بر متہ(ګروی) په‌نا مه ټوپك او یاپیسی اخلی او که‌وایی‌نه خلی نو په دو ی یـــی‌قبلوی . که چیر ی بر سیره پـر نوواړ بیا هم دکو می خوا نـــه‌هما غه مد عی ځوك مړ کړ ی، نو نوواړ به‌ور کوی په‌دی شرطچی‌د ښتل نه دانکار په صور ت کی‌قاتل په اووه میره قسمو نه کړ ی .

---

۱ــ دخوست قو مونه دادی: دالمری ځدراڼ ، ګر بز ، تـنـــی منګل، اسمعیل خیل ، مندوز ی ،سبری اود ځاځی میدا ن ځا ځی . لکه چی د مخه هم و یل شو ی‌ووځدرا ن او منګل د خو ست له عمده قو مو نو ځخه نه دی او لـږشمیر یی دلته او سیږ ی، ځدرا ن یوازی د المر ی ځدرا ن اود منګلو له‌ډلی ځخه دمو سی خیلودولسوالی منګل دی.

۲ــ دلته اوپه نورو وروستیـومخونو کی د(قوم) او (قـومـونـه) کلمی د محل داصطلا حی ا ستعمال‌له مخی په کار شوی دی که نه نو داتنوګرا فی له مخی باید د(خیل) کلمه استعمال شی ځکه تنی ځـلور خیلونه دی لکه سنکی ، اریز ی ،در نو می یا در نا میا وتری خیل.

که‌چیرې دقسم کولو په‌وخت‌کې اوه میړه نه پوره کیدل نو هما غه به تکراري قسم کوي ترڅوچې اووه وار ی قسم پوره شي .

که‌چیر ی‌ربنتیا هم دا مړ ی دمد عی له‌خوا څخه نه‌وي مړ شوی او یادا چې په‌نا حقه قسم کوي،نو قسم به داسې کوي: مد عی به‌د مړي دعوی کوي ، قاتل به انکارکوي چې ما نه دی وژلی. نوجر گه قاتل ته‌وايي چې اودس وکړ ی‌اوقرآن تر منځ ږ دی او دی به‌وايي چې :(( اول په خدا ی او بیا په دی‌قرآ ن چې‌فلا نی نه ماوژلی اونه‌د هغه دوژ لو په با ب دچاســــره‌مصلحتی یم.))

جر گه د مد عیانو له خوا ر ا غوښتل کیږ ی یعنی داسې چې د هري خوا څخه یویو او یا دوه،دوه‌مشرا ن خو ښ کړی. که چیر ی دمد عیانو تر منځ تر بگنی‌موجوده‌وي او یادا چې غواړ ی یو بـــل کمزوري کړ ی، نو دوی ته به‌ډوډی‌په‌وار ور کوي اودزیا ت تاوا ن له پاره کیدای شي چې خپل کلی هم‌ډوډ ی ته راوغواړ ی . دی ډول ډوډ ی ته (حلال پا خه) وا یي .دزیا ت تاوا ن رسولو له‌پاره کیدای شي چې حلا لول او پخول روان‌وي‌اوخو جر گی او مر کی یو په بل پسی‌رخصت شي. یعنی دا چـــــی‌مر کچیانو او یا منصفا نو تــــه (منصفی) او خلا ت(خلعت) (۱) ورکړ شي او دواړه خواو ی‌ووا یي چې موږ سره دعوی نه لرو اوتاسی‌رخصت‌یاستی . خو دا چی‌مر - کچیان (۲) یاجرگه ماران پوهیـږی‌چې دو ی یو بل ته تاوا ن اړوی، نو دوی نه‌ځي او کوښښ کوي چی‌دواړه دعوی وکړي اوځوابو نــــه ووايي .

---

(۱) منصفی خلات (خلعت) هغه پیسی دی چی درو غی او جوړ ی او یادا چی که‌رو غه هم ترسره‌نه‌شي دجر گی او مر کی په پای کی یي مر کچیانو ته‌ور کوي . د د ی پیسو په اخیستلو سره‌مرکچیا ن مجبور دی چی دجر گی فیصله په‌هرو خت کی او حتی کله په قسم سره هم تکرار کړی.

(۲) مر کچیان هغه اشخاص‌دی چی مر کی ته رابلل‌کیږ ی اوروغه جوړه کوي .

دخو ست دقو مو نو پهحقو قیکودکی شا هدا ن نشته . يواز ی هلته چی کو مه پخوا نی جر گه مو جودهوی او هغی کو مهفیصله کړی وی نو دغه جرگه را غوښتل کیږ ی اودنوی جر گی په مخکـــی به خپله پخوا نی خبره تکراروی.که چیر ی يو له مد عیانو نه د پخوا نی جر گی شهاد ت دروغ وبولی نو جر گه مجبوره ده چـی خپله پخوا نی فیصله په قسمکولوسره رښتیاکړ ی . خو پدا ســی وخت کی جر گه البته هما غـــــهمدعی ته قسم ور کوی چیدجرگی فیصله یی دروغ بللی ده . خو کهچیری دو یم مد عی چیدپخوا نـــی جر گی خبره رښتیابو لیوړار شیچی زما مد عی به په دروا غوقسم تهتیار شی اود جر گی خبره بـــهدروغ شی ، نو هغه ددی ما نـــع کیږ ی او غوا ړ ی په خپله قســـم وکړی. نو دلته ډیر ی لاری چار ی شته خو جرگه تروسه و سه قسم نه کوی.

جر گه کولای شی چی ددوا ړوخواوو نه واك وا خلی او فیصلـــه وکړی. که چیر ی مد عیا ن نر خوغواړ ی ، نو بیا جر گه مجبوره ده چی دنر خ له مخی فیصلهوکړیکه چیر ی يو له مد عیانو نه ادعا وکړی چی دجر گی خبره سمه نهده یعنی داچـی نرخ یيسـم نـــهدی ويلی نو دا جر گه بهناستـــــه اومد عیا ن بله جرگه راغواړ ی .که چیر ی ددوی خبره هم دکوم يو هخو ښه نهشوه او ادعایی وکړ ه چی نر خ نه دی ویل شوی ، نـودریمه او آخر نی جر گه به راځی چیله دی وروسته بیابله جر گهنهشی راتلای.

موږ وو یل چی جر گهدمدعیانوپه خو ښه را غوښتل کیږ ی،یعنی داسی که مثلا داحمد یا محمود ترمنځ کو مه لانجه مو جودهوی ،نو احمد هم يو یادوه او یاځلور تنه خو ښوی او محمود هم يو، دو هاو یاځلور کسه خو ښوی او هریوهتهبه د دوا ړو طر فو نو استازیځی او هغه نر خیا ن به تا کلی ځا یتهراو لی او هلته به ددوی مر که جوړیږ ی او کو می فیصلی تهبه رسیږ ی .

پهځینو حالا تو کی بیا جر گهپه خپله همځی . دجر گی خپـــل تگ په هغه وخت کی وی چی یـــا ډیر نژ دی خلك لکه ورو نه اود تره زا من لانجه سره و لری اویاداچی خیلو نه او قو مونه سره په

ډزو کي وي . داو خت جر گه دیوشمیر څوانانو سره د دواړو خواو مور چلونو ته ځي او دواړ ه خواوي پاڅوي . ددواړو خوا وو ټوپک او یاپیسی په بر مته (گروی)(۱) اخلي چي دو ی به خبره په ډزو نه بلکي دسو لي له لیار ی ســـره فیصله کوی. که بر سیره پر برمته کو مي خواتیر ی وکړ نو برمتـه یي قوم ته پاتي کیږ ی او یادا چـي که بر مته داسي اخیستل شو ی وي چي (( مونږ هر ډول فیصله وکړه او تاسو به یي منی)) نو په هغـه صورت کي که کو مي خوا فیصلـه ونه منله ، نو بیا هم بر مته یـــي جر گي اویاقوم ته پاتي کیږ ی.

پخوا دخو ست دقو مو نو ترمنځ(توده) هم موجوده وه. توده دغلا او همسا یه دوژ لو په صور ت کي اجراکیده . که په چابه دغلا شـــک وشو او یادا چي په چابه شک وشو چي همسایه یي وژ لي او یایي پــه وژ لو کي کمکي شوی دی ، نو بیا به قوم راته او په شکمنو باندي یي هم قسم او هم توده کو له . دتود ی عملیه داسي وه:

په هغه چاچي (توده) کیږي مجبوردی چي خپلي ټولي جامي وباسي او سپین لنگ وو هی . بیایي گور ی چي دپیغمبر صا حب د چپني تار(۲) ورسره نه وی . وروسته له دي به دی د (تودی قسم) کوی او په قرآن به لاس ږدی او وایی به چي :( ز مادی په خدای او په دی قرآ ن قسم وی چي نه د تودي تار (هماغه دپیغمبر صا حب دچپني تار)) لرم او نه مي نس ته تیر کړدی) بیانو د تودو (سرو) او بو کټوی ته لاس کوزوی او هغه کا ني چي په کټوه کي دي راباسی.

---

۱ ـ دغي بر متي ته ځیني پښتنا نه قو مو نه(ضمانت) او ځیني(مچلگه) وایی چي دغه وروستي کلمه د پښتو په کلاسیك ادب کي هم راغلي ده لکه دتاریخ مر صع په دري سوم او څلور سوه دوه پنځوسم مخو نو کي .

۲ ـ عقیده داسي ده چي که د چا سره دپیغمبر صا حب د چپني تار وی او یایي نس ته تیر کړ ی وي نو هغه په توده کي نه سوځي. د غه تار انکاری خلك په ډیرو پیسو دځان له پاره پیدا کوی.

دتودی کتهوه به نوی، یعنی سره‌کتهوه وی چی پخواپه کی پخلی‌نه‌وی شو ی او پنځه پاوه او به به په دی کتهوه کی اچوی. کتهوه به په یـــوه گو ښی ځای کی چی هلته خـــو ړکتک او راتگ و نه کړی په نغری باندی کوی. دلرگو اندازه هم‌معلومه وی. ټول لر گی چی په کتهوه پسی ایښو دل کیږی با یده د لیچـــی ( دځنگلی نه تر منځوی گو تـــی) پوری او ږ ده وی په دی تو گه چی‌سرِی به خپل لاس دا ســی نیسی چی گو تی یی په اوږه باندی‌ولگیږی نوبیا په دی منځ کی چی هرڅو مره لرگی‌ځای شو ل هغه به‌په کتهــوه‌پسی ږدی. دالرگی چی په کتهو ی پسی و سول (۱) نو بیابه دتود ی کتهوی تور ن لاس ښکته کوی ا و هغه دری تیږی چی په‌کتهوه کـــی اچول شوی وی ،را اخلی.

وروسته له دی به تورن‌هما غـه‌کوټی ته بیول کیږی چی پخوالـه تودی هلته وو. ورو سته له‌څلو رو یاپنځو ساعتو نو به دتور ن لا س کتل کیږی چی هغه‌سوی دی‌اوکه‌نه؟ که‌سوی‌و، نو تور ن دی او حقو قی معا مله به دقوم له خوا ور ســـره کیږی.

که د همسایه دو ژلو پـــــه‌صور ت کی دتودی عملیه اجراشوی وی ، نو سړی به‌وژنی او کوربه‌یی‌سوځول کیږی او ځمکه به یی بوره یعنی شړه کیږ ی . او که دغلا په‌صور ت کی دتودی عملیه اجـــرا شوی وی نو غلا به یو په دوه‌ورکوی او پسه او ننوا تی به هم کوی .

په دوا ړوصور تو نو(غلا ا و همسایه‌و ژل) کی به دتود ی نه مخکی قسم هم کوی.

دخلکو په عقیده قسم او تو د ه‌دواړه ځکه اجرا کیږ ی چی که قسم یی په دروا غو کړ ی وی ، نو په‌توده کی‌به و سوځی. همدا سی داعقیده موجوده ده چی که گنا هکار تو دی کتهوی ته لاس ننه باسی نواو به په کتهوه کی‌پور ته الوځی او دا ســـی‌جوش کوی چی‌حتما گناهکارسوځی. اوکه چیری سړی گنا هـکار نـــه وی نو او به په‌کتهوه کی ایله‌تودی غو ندی‌وی او سړی نه‌سو ځی .

---

(۱) دکتهوی سر به‌سم داو ړوپه‌واسطه بندیږی.

دځدراڼو ((توده)) بیابل ډول وه. هغوی به دننني دوه افغا نیز ی سکی په اندازه په پښې بـا ندی، او سپنه جوړو له . بیا به یی دا اوسپنه په اور کی دومره تودولـه چی تکه سره شي . دتور ن دلاس پهور غو ی باندی اووه کاغذو نه سر پهسر ایښودل کیدل . داو م کاغذ دپاسه دغه سره او سپنـــه ایښودل کیده .وروسته له دی به تورن اووه قد مه اخیستل اوداووم قدم سره بهیی او سپنه غورځوله. کهچیری یی دلا سوور غوی سویونو تورن ګڼل کیده اوکه نه دشك نه خلا صړو.

پهځدراڼو کی ددی امکا نو چیپه هغه چاباندی چی((توده)) اجــــرا کیږ ی دری یا څلور ور ځی یی پهخپل کورکی وساتی ،ترڅو چـــــی د (تودی تار) تیر نهکړی. په هغــــه باندی بیا دتودی قسم نه اجــــر ا کیده .

نن پهځدراڼو او تڼیوکی تود ه نشته. توده ځکه له منځه لاړه چیډ هغی اجراکول لهیوی خواپه شریعت برابر نه و اوله بلی خوا غلطی ګانی پهکی کیدی .

**خلی او نر خو نه:**

دمړه نیکه (۱) یوه مړو ښـــــه ښځه اود یوی ښځی پور دی . یوه ښځه بهځکه میړو ښه کوی چی کهچیر ی هغه سړی چی نیکه اخلی نو نهشی کولای چی دنیکی ور کوو نکی مړ کړی او کهبر سیره پر هغی یی مړ کړ نو دنیکی ور کوو نکیکو لایشی چی بیرته د میړ و ښی ښځیپه بدل کی دخپل مقابل لور ی نه څوك مړه کړی. لهبلی خوا هغه څوك چی نیکه اخلی ، پهرو حی لحاظ ســــره کیدای شی په میړو ښه ښځهباندی تسکین شی . یعنی د مړه او ښځی بیاپهتیره دمیړو ښی ښځی پیغو ر سره یو شی دی .

که څوك دچاکره پناه یو سی نو چاته یيوژ لو ته نهور کوی . که حتی پناه وړو نکی دپناهورکوونکی کوم نږ دیڅوك وژلی هم وی. پناه

---

(۱) د(مړهنیکه) دمړه خون بهاده چی دروغی او جوړ ی پهو خت کی دمقتول وار ثته دقاتل له خواورکول کیږی.

ور کوو نکی په‌پناه‌وړو نکی باندی‌دو مره حق لری چی ورو سته لـه دریوورځو یی نر خ ته دخپل مدعی‌سره کښینوی .

ښځه او سړی یودبل سره مخی (معادل ، برابر) نه دی . که ښځه‌په جګړه کی مړه شی ، نو په‌بدل کی به‌یی ښځه ور کوی . خو که‌د مقتول لوری رضایت‌نه‌وی نو کولای شی‌چی‌په مقابل کی یی ښځه ووژنی.

دتیرو او کوتکو په جنګ کی هم‌څوك ښځه نه‌و هی ،خو که‌کله‌ښځه برید وکړی نو بیا هغه وخت‌دښځی‌پور نشته، خو که دښځی نه دبم اچولو خطر پیداشی نو هغه‌و خت‌امکان لری چی په ښځـــــه ډز ی وشی.

په‌قو می‌جګړو کی میا، مـــــلا (دریمګړی )نور دریم ګړی ، ښځی، ماشوما ن او ډم نه وژنی اونه ډزی‌ور باندی کوی . ډم که ډول و هی، که لیارونی وی، یعنی خبر وړ ی،نو په‌ډم باندی غرض نشته ،ځکه که‌ډم په‌جګړه کی ووژل شو په مقابل لوری‌حسابیږ ی . له دی کبله ده چی ډم څوك نه‌وژنی.

دقو می جګړی ورو سته ددوا ړوخواوو مړی شمیرل کیږ ی او یویو سره خلاصوی یی. که یو د کو می خوانه زیات مړو نوټول قوم‌به دمړه دوارڅانو سره ملا تړی اود بل قوم‌سړی به وژنی ، خو دمـړه ژغ(۱) یی‌وار څ‌کوی . که ددی مسالو نه کوم تاوا ن پیداشو نودغه به هـــم قوم ورسره جګوی.

که چیری دچا خور یا لورد میړه‌دو هلو له امله مړه شی نو دا چی پلاریی یواز ی دلور غوښه ورکړیده‌او نه هډ، نوپلار یی کولا ی شی‌چی دمیړه دکور کو مه ښځه‌ور باند ی‌مړه کړی او یاد خپلی لور پـــــور وغواړی.

که‌نجلی چاته په نا مه شو ی وی‌خو لادمیړه کورته‌واده شوی نه‌و ی اودپلار په کور دچا دلا سه مړه شی نوپلار به یی ګټهنه کوی( یعنی یابه څوك پری‌وژنی او یابه‌یی پوراخلی) او که دمیړه په‌کوروی نو ګټهنه به‌یی میړه کوی.که‌چیر ی میړه او پـلا ر دواړو په چا دقتل دعوی وکړه نو

(۱) دمړه ژغ کول دامعنا لری: دمقابل لور ی نه‌که هر چاڅو ك ، وواژه او یایی تاوا ن ور واړاوه ، خساره یی ژغ کوو نکی په غاړ ه اخلی.

مدعی به دمد عی علیه دعوا له یو ه سره خلاصو ی او هماغه به ضا من دروی چی هغه بل به دعوی نه کوی.

که چاسته(۱) وکړه یعنی د یوه کور ټول نران یی وو ژل ، نو قو م یو کس دو یړی (تړون) له املهوژنی او بل بهپه مړه وژل کیږ ی. دقاتل کور چور او بیاسوځول کیږ ی . ځمکه یی شاړه او خلك یی شـړل کیږی. کله چی قوم تهبیر ته را ځی نوځلویښت زره افغانی به قوم تهد ویړی پهنوم ناغهور کوی.

که چا دچانه ټوپك په زورواخیست او یایی چاړه تری وا خیستله اویا یی دسر پټکی ځینی پهزورواخیسته همد غسی که دباغ میوه یی وشکوله او یایی دکور نه غلا وکړه نو در ی سوه اوځلویښت روپی به شر م اویو پسه بهننوا تی ور ځی (۲).

کهخوك دچا دکور نه غلا کو ی اوپهعین زمان کی یی د کور ښځینتنمړ کړی، نو دمړ ی پور نه غو ښتـــل کیږ ی. لاکن که څوك زورور و ی نو بیا کولا ی شی چی د خـــپل مړی بدل وا خلی. یعنی دا چـــی پهنر ځنه دریږی.

که چیری یوه ښځه دمیړه پـــهکور خو او لاد یی نهوی اوپهجنـــګ کی څوك مړ کړی نو پلار ګنی یـی ګنا هکاره نه ده او پتنه (فتنه) یی په میړه اوړ ی.

کهچیر ی ښځی ته په کو مـــه مساله کی قسمرا جع کیږی نـــو ښځه قسم ته نه مجبوریږ ی اودښځی پهځای بهیی میړه قسم کوی او که نجلی وه نو پلار او یاورور به یـی قسم کوی.

که چیری یو سړ ی دیوال ما ت کړی اوغلا کوی اود کور ښځینتنپری راویښی شو او مړ یی کړ نو دومره بدل نهشی غوښتلا ی . خو که بیا

(۱) سته اصلا د میرا ث د پاره وی . کله ددی له پاره هم وی چی دکسا ت اخیستلو څوك پاتی نـــه شی.

(۲) په دوا ړوصور تو نو کیدا رقم دزما ن او مکان پهبدلون سره بدلون منی.

دغلا لەپاره یې دیوال مات نەکړ او په دیوال کور ته واو ښتاود کور څښتن مړ کړ نو بیایې د مړه بدل غوښتل کیږی (۱).

کەچیری یو سړی کورمات کړی او یاپه دیوال واوړی او غــلا اثبات شوه ، نو غل بەعلاوه پراصل وکړی. خو وروسته غلا ور باندی مال پنځه زره رو پی شرم اویوپسه ننوا تی ور کوی . که چیری غلـه دعوی وکړه چی داما ل میوړی اودا می نه دیوړی نو هغه ما ل چی غل یی نەمنی هغه به دڅښتن لەخواپه قسم سره اخیستل کیږی .

که چادرمند نه غلا وکړه نودا به هم پنځه سوه رو پی شر م اویو پسه ننوا تی ور کوی .

کەځوك دمړه ژغ کوی ، نو یابەخړی شگی او یاددره گی بازار تــه دتښیو دځلورو قو مو نو مشرا ن(یویو یا دوه ،دوه مشرا ن) راغوا ړی مشرانو ته خلات (خلعت) ور کو ی اودټوپك ډزی کوی .دمړه ژغ هغــه وخت صحیح دی چی ژغ کوو نکی په خپله پەختەه تښی او کور او ځمکه و لری . دلوچك او غیر قو مــــی سړی چی دقوم دکنډو نه اخواپروت دیژغ سم نه دی ځکه لو چــــك چی څه نه لری هغه کولای شی چی وطن پریږ دی او بل چیر ی ولا ړشی او هم پەپیسو ژغ تەوگوما رل شی . همدا سی غیر قو می سړ ی چی دقوم دسر حداتو نه بهراوسی.

دپښتنو پەنر خ کی دانسا نټول وجود په شپږو بر خو و یشل شوی دی چی دوی ستر گی ،دوەلا سو نه اودوی پښی دی . که چیر ی دد ی اعضاوو نه یو ضایع شو،د مثا ل پەتوگه که دچا یوه سترگه ړنــده شوه او یا یو لاس اویا یوه پښەیی له مینځه ولاړه نو په دری وا ړ و صور تونو کی(نیم نیکه) یعنی یو ەښدځه او یا د یوی ښځی پور دی. که چیری ددی اعضا ونه دوه یعنیدواړه ستر گی یا دواړه لا سو نــه

---

(۱) ځکه که غل ددیوا ل پەماتە کی‌یعنی په اول صورت کی مړ شی نو هرڅه اثبات دی اود غلەوار ثان نه شی منکریدلا ی. خو په دو یـم صورت کی دغله وارثا نکیدای شیدعوی و کړی چی غله غلانه کوله، نو په دی حالت کی په ښځو شــك‌پیدا کیږی او دکور څښتن یا بایده دی کومه ښځه ورسره مړه کړ ی‌او یا مړی ور باندی اوړی.

او یا دوا ړ ه پښـــــــــــــي له مینځه ولاړې، نو په دي حالت کې به د((مړه نیک)) پوره ور کو ي. یعني ددوا ړو لا سو نو گوته وا لی او یا ددوا ړو پښو گوته وا لی. او کـــه چیری دواړه سترگی ړندی شي نو زخمی پـــه مـــړه٠حساب او د مـــړه نیک بهور کوی.

که چیری یو سړی په یوه لا ســاو یا پښه داسې گوته شي چـــي په هما غه لاس او یا پښه هیڅ کا رنه شي کولای نو د ي ته (وچ گـوته) وایي او نیم نیک دی. او که چیر ی داسې گوته شو چي دلاس او یـــا پښې نه کار اخیستلا ی شي ، نو دی ته ((تو ندگوته)) وایي اودنیکی ځلور مه بر خه ور کول کیږ ی .

دلاس غټه گو ته که فلجه او یاله منځه لاړه شي نو دا نیم لا س دی اوځلور مه بر خه نیك یی کیږ ی د لاس نور ی ځلور گوتی ټو لی په نیم لاس حساب دی چی هره گو ته د نیك شپاړ سمه بر خه کیږی.

دلا س او پښو گوتی مساو ی دی.

پزه دنیکی پنځمه برخه کیږی خوبیا د پزی شرم او ټیبگی زیات دی.
ډیرو خلکو مونږ ته وو یل چی پزه په پښتنو کی نیم نیك دی.

که غوږ پری شی ،نو هغه د دوو دجوړولو خبره ده چی کیدای شی دنیك په ځلور مه بر خه سره جوړ شی او یا پنځمه او یا هم لسمه.

دنارینه دتنا سلی آلی نیك دنیك نیمایی کیږ ی. خواکثر وخت سړ ی پری وژنی او تراو سه چا نیك نه دی اخیستی.

د مخ په داړه پنځه سوه افغا نی او دوه پسو نه دی. نورغاښو نه چی نه لیدل کیږ ی پوریی کم دی چـــي کیدای شي په سل او یادوه سوه افغا نیو سره جوړ شي .

که چاپه ښځه ږغ وکړ (۱) نو که چایي و س در لود کولای شی چی هغه خوك مړ کړی چی دده په لوریی ژغ کړی دی ،ځکه دا خبره په جگ لاس ده او هغه سړ ی پری لگید لی دی. که و س یی نه کیده چی مړ یی کړ ی نو بیا یی ده ته نه ور کوی او بل چاته یی ور کوی . که چیری یی هغه چاته ورکړی چی ژغ یی پری کړی دی نو هغه به یی پلار ته ددوو

(۱) په ښځه ژغ کول دا سی وی چی یوسړ ی دټو پك ډزو نه وکړ ی او وایی چی دفلانی خور یا لور زماده او بل چاته یی نه شی ور کو لی.

ښځوو لور ور کوی . اوکه چیر ی یې بل چاته ور کړه نو هغه سړی چې ژغ یې کړی دی که‌و س یی و لری دابل سړ ی چې دده ژغ و هلی یی اخیستی ده وژنی .دژغ و هلی ښځې ولور چې دژغ کوو نکی نه یی بل چاته ور کوی اکثرا نه اخیستـــل کیږی.

که‌څوك دچا خور ، لور اویـــا ښځې ته لاس وا چوی نو کیـد ای شی چې پر مړ یی کړ ی او که نه‌خور، لور، او یاښځې ته یی لا س اچوی.

که‌څوك دچا دخور ، لور اویاښځې سره تور شی، نو ښځه او سړ ی دواړه مر گونی دی او یودبل سره لگیدلی دی. که‌چیری څو ك ښځـه مړه نه‌کړ ی ، نودسړ ی پتنه پری‌واو ښتله او که ښځه و تښتی او خلا صه شی نو هرو خت بایدپسی‌و گرځی . همداسی په‌سړی پسی.

که‌څوك په چاقو یا چاړه تهد ید شی ، که څه هم ز خمی یی‌نه‌کړی نو بیاپڼځه اتیارو پی او یو پســـه شرم به‌ور کوی.

که کوم سړی دشپې مړ شی اودمړه وارثا ن په چا شك وکړ ی ،نو مشکوك مجبور دی چې په اووه‌میړه قسم وکړ ی چې دا مړی ما نــــه وژلی او نه پری خبر او نه دچاسره مصلحتی یم . او که چیر ی یی د قسم نه‌سر وغړاوه نو پتنه پـــری ورغله.

که چا میړو ښه او یا خلا صــــه ښځه وتښتو له نو دواړه مر گو نی دی .کو نډه‌ښځه هم دمړو ښی ښځې دریغ لری. دتهیو په نر خ‌کی هره ښځه که خلا صه هم وی د میړ و ښی‌دریغ لری.

په‌ځدرا ڼو کی بیاد خلا صـــــی (پیغلی) در یځ شته او که‌چا وتښتوله او یایی‌لاس ور وا چاوه نو سړ ی او یاښځه مر گو نی نه دی اود نجلی پلار او یاورور ته به د دوو ښځـــو ولور ور کوی . د دوو ښځو و لور سره به ننوا تی هم‌وی.

که‌یو څو ك بل په‌سو ك ،څپیړه‌زخمی کـړی ، نو زخم یـی ددوو کسو نر خیانو په‌واسطه منا ســـب کیږی. مثلا په‌ځدراڼو کی دنا مـه

لاندی پر هار که دیوی گو تی پـه اندازه وی نو یوسل او شپیتـــــه افغانی شرم لری ، که‌زیات وی په هماغه‌اندازه‌یی‌شرم‌او ټیپکی (ملهمانه) زیاتیږ ی . که دنا مه پاس پر ها ردیوی گو تی‌په‌انداز ه وی شر م یی اتیا افغانی دی. همدا سی که د مخ پر هار وی نو بیازیا ت ټیپکی اوشرم لری. ځکه د مخ پر هار لیدل‌کیږ ی.

په‌گر بزو کی دځمکی دد عوی قسم که‌راجع‌کیږ ی نو حتمی به پنځوس او یاسل میړه هم‌قسم کوی‌خو بیاپه تنهیو کی په‌ځمکه باند ی په اووه میړه قسم کیږ ی، خو په دواړو قو مو نو کی دځمکی‌لړوا لی او زیا توا لی څه پروانه کوی .په‌څدراڼو کی بیاکه ځمکه دیـــوی کیږ دی داندازی نه زیاته وی نوپه اووه میړه به قسم کوی او کـــه دکیږدی داندازی‌نه‌کمه وی نوپه‌دری او یا دری نیم میړه به‌قسم کوی. په‌نیم باندی سره پچه اچول‌کیږی نو که په دری میړه شو او که په څلور . خو اکثرا په دری میړه‌قسم ور کوی.

په‌ویا له او یابند په تنهیو کی‌په اووه میړه قسم دی او په‌څد راڼو کی په دری میړه. په دواړوصور تو نو کی به قسم په‌زړه و یا لــه کوی. دنوی ویا لی تیرو ل‌نا ممکن‌دی . قسم به داسی کوی چی زما ویاله د پلار او نیکه څخه را پاتی ده او اوبه می تری خوړ لـــــی دی.

که پټی سنگیړ وی (په خوړ کی‌چی داو بو دوړ لو خطر یی موجود وی)او یارغز ی (صحرا)و ی نوبیا یی قسم په دری نیم میړه دی که څه هم دکیږ دی داندازی نـــه زیات وی.

که چیری په‌څدراڼو کی دکور ماته‌و شوه اوغلا یی‌و کړ ه نو د ثبوت په صور ت به غلا یوپه‌دری ور کوی او پنځلس سوه افغا نی او یو پسه به شر م ورکوی . په‌ځینو څدراڼو کی دری زره‌افغا نی دی.

که چا در می او یاپادی نه پـــه بیدیا کی غلا وکړه نو پنځه سوه افغانی یی شرم دی که بیا یی‌سم دخو نی او یابانډ ی نه‌ر مه‌وایستله نو یوزر افغانی او یو پسه شرم‌به‌ور کوي ، خو یو په دري غلا تـــړ او سبه چانه ده اخیستي.

دچانه په‌زور دټوپك داخيستلو شرم هم پنځه سوه افغا نی‌همداسی
دپر توگ دايستلو او يا د پټکی دتښتولو او ياد هغه په ز و ر -
اخيستلو.

که‌چيری په مر که کی مدعيا ن‌خپل تر منځه او يا مد عی مرکچی
او جر گه مار ته ښکنځل وکړی‌نو زر افغانی او يو پسه شرم لری.

که‌چيری کوم سپی خروړ ی‌وی يعنی په خورا ك مشهور وی ،نو
مجبورا ښښتن به يی خو لی تـــه کټبوز( خو لبند) اچوی او يابه‌يی
تړی. که چير ی يی برسيره پـر هغه تاوان ورساوه نو ښښتـــــن
به‌يی تاوان ورکوی.

که‌چير ی دداسی يو خرو ړ ی سپی‌په خو له کی کټبوز وی خو
کوم سړی ځملوی او بل سپی چی پخوا يی ضرر معلوم نه‌وه‌اورا شی
داسړی وخور ی نو تاوا ن‌ددواړوسپيو دخاو ندانو سره نيم د ی .

دځدراڼو په نر خ کی ډير پخوا داسی شو يه‌ی چی يوه سړ ی په
لاره کی دښمانځه داداکولو له پاره ټوپك کيښود . دکوم بل سړ ی
او ښ راغی او په‌ټو پك‌و خو ت‌په‌ټوپك کی کار توس( مرمی) و اوچی
خلاص شو نو بل کوم ليـــاروی ولگيد ه دټوپك ښښتن و يل چی
گناه داوښ ده اود او ښ ښښتـــن دعوی کو له چی گناه دټو پك د
ښښتن ده په‌پای کی به‌په نر خ‌کی ټوپك او اوښ چی ددوی نه ضرر
پيداشوی‌و دواړه د مړه په‌بدل کی‌ور کړل شول.

که‌چيری په منگلو کی خوك‌دغلا په ما ته کی مړ شی نو توی شو،
يعنی پوريی نشته خو که مړ نشو او نر خ ته‌سره کښبينا ستل نو د
غلا دثبوت په حالت کی به شپږ واری ښلور سو ه شپيته افغا نی
او يو پسه شرم ور کوی او خپل غلا شوی ما ل به هم بير تـــه
ور کوی . همدا ډول زيری بـــه‌ور کوی. زيری هغه پيسی دی‌چی
دغلا دپيداکولو په خا طر لگـــول کيږ ی او په‌ځينوقو مو نو کی د
(زيرنی) په‌نا مه هم يادېږی.پـــه‌زيری کی که چير ی زيات و ښودل
شی امکان لری چی په قسم سره‌وا خيستل شی . خو زير ی بايد
دغلا دما ل نه‌ډير نه‌و ی . پخوا په‌منگلو کی‌غلا نه گينه(نه ځلـــه
زياته) بير ته ور کول کيده ا و او س هم نر خ‌دی، خو چاتراوسه

نه له چانه گينه اخيستي او نه چاورکړی ده.

که چيری په داسیورور د چادغلا دعوی و شی چی دبل ورور سرهپه دستر خوا ن سره گډوی نو هله به په تور او په سپين (يعنی تور ن او ناتورن) قسم کوی. يعنـی داسـی که دوه ورونه وو او يو يیتور ن شی نو په هغه چی دغلا دعوینهدهشوی هغه هم دنر ځله مخی قسم ته مجبور يږ ی. ځکه دپښتنو متل دی ( چیغل غلا کوی نود قسـم چاره يی کوی) نو که چير یسپين قسم ته مجبور شی ، کيدای شی چی سپين دقسم نه سرو غړو ی‌او غلاپيداشی.

که چير ی په منگلو کی دچا نهڅوك ټوپك ياپيش قبضه وا خلی، نو دریواری ځلور شپيته افغا نیاو يو پسه به شرم ور کوی .

دځمکی دبريد (پو له) قسم پهمنگلو کی هم پهيوه ميره دی اوهغه سړی به قسم کوی چی بر يد يیخوځو لی وی.

دځمکی قسم که تريوی بسوی زياتهو ی نو په اووه ميره به قسم کوی او که کمه وی نو بيا قسمپهيوه دی.

وياله هم داسی ده چی په زړهوياله بهقسم کيږ ی . نو کهويا له نوی هم وی خو قسم به پر یدزړی ويالی پهنا مهکيږ ی . داد قسملاره ځکه ور ته جوړو ی چی پټی، ليار او کلا نهشنډيږ ی . او دلتـــه بهقسم هغه سړ ی کوی چیپه پټیليار او ياکلا کیذوا ليدو ی .

د خو ست په قو مو نو کی کهچير ی يو سړی دکو می ښځـــی سره تور ن وی او مړيی کړ ی نو وار ثيی داحق لری چی پهوژونکی قسم وکړ ی ، يعنی داسی چـــی نومړ ی چی ما وواژه تور ن يـــا گنا هکار وخود تور نی ښځی پلار او ياورور ته څوك قسم نـــــه ور کوی.

همداسې که چیرې یو سړ ی دیوې پیغلې نجلې سره تورن شې او دې نجلې په نس کې اولاد وی نو دا اولاد دتورن کیږې حتې داسې وخت کې دو مره ور ته صبر کوي ترڅو چې اولاد یې پیداشې نو بیا یې وژنې . د منګلو په زاړه کو ټ نو مې ځای کې همدا سې و شو ل چې ښځه او سړ ی یې مړه کړ ل ، ا و ورو سته له هغې یې هغه اولا د دهما غه وژل شوي کورته وروړ. که چیر ی بیا ښځه میړ و ښه و ی او تور نه مړه شي نو اولاد یــــې دوژل شوي نه کیږ ی ، بلکې دخپل میړ ه یې دی.

د منګلو او ځدراڼو په نر خ کې دانسا ن وجود شپږ بر خې لري او که هره بر خه یې ز خمې شې نودشپږ مې بر خې پوربه ورکوي. دتهیو دنر خ سره یې فرق داد ی چې په تنهیو کې که چیر ی دد ی شپږو اعضاوو نه دوه له منځه لاړ شې نو په یوه مړه حسابیږ ی چې په ځدراڼو او منګلو کې بیا هما غه د دوو اعضاوو پور (خون بها) لري او په مړه نه حسابیږ ی.

که چاپه منګلو کې چر ګه پټه کړه او پرې اثبا ت شوه نو پنځــه اتیا افغانې شر م او نه چر ګـــې به ور کوي.

که د در مند ،جو ما ت، چو ك ښخه چاځه شي غلا کړ ل او یا یې درمې نه کوم پسه په بیدیا کـــې پټ کړ نو درې وارې څلور سوه شپیته افغانې شر م او یو پســـه ننوا تې به ور کوي.

که چیر ی یې بیا دخو نې نـــه کوم پسه یاځه شي بو تلل ، نو بیانه وار ی څلور سوه او شپیتـــه افغانې شرم او یو پسه ننوا تې ور کوي.

که څوك دچا کمه (۱) وکړ ی او دهغه چې کمه یې شوی ده مړ شي نو کیدای شي چې مر سته کوو نکې پرې مړ شې او که چیر ی دتاوا ن رسولو کمه وی نو تاوا ن به یـــې ور کوي.

---

(۱) کمه دې ته وا یي چې دچا په وژلو یا غلا او نورو کې د مجر م سره دښبود لو ، کور ته ښه ایستلو او یاداسې نورو کې مر سته وکړ ي.

که چير ی کو مي ښځې کمـــه وکړه اودی په خپله او يايي ميړ ه انکار وکړ نو قسم به يي ميـــړ ه کوی.

دځدراڼو په نر خ کی دا سی شته چی که چير ی الف دکوم شي دعوی وکړی او که چير ی ج په خپلـــه خو ښه قسم کوی نو دقسم کولو حق دده دی او که چيری ج و وا يي الف دی د خپلی دعوی اثبات وکړی نو دځدراڼو نرخ الف يعنی دعو ی ګير ته قسم ور کوی. ځکه د عو ی کوو نکی يعنی الف ګټه کوی.

که دپاس پټی ښبنتن دکوز پټـــی ښبنتن دبريد وهلو دعوه وکــــړی اود بريدو هلو دعوه يي په متر سره تر پنځه پاوه (۱) زياته نـــه وی نو قسم اول دکوز پټی دښبنتن دی. خو که چير ی دکوز پټی ښبنتن قسم نه کوی ، نو دځدراڼو نر خ دپاس پټی ښبنتن ته قسم ورکوی. او که چير ی دعوه يي تر پنځـــه پاوه زيا ته شوه نو په هغه وخت کی دکوز پټی ښبنتن مجبور د ی چی قسم وکړی.

په تور او سپين مړی (۲) قسم هغه وخت کيږ ی چی ياپه کنډوکی (په هغه بی طر فه سيمه کی چی دوو قو مو نو تر منځه اود يوه پوری هم ربط نه لری) همسا يه مړ کړ ی او يايي کمه وکړی.

په منګلو کی که همسا يه دکنډو هم نه و ی او چاپيسی پری وخوړ ی نودوه غوايي ننوا تی، لس زره افغانی ناغه به ور کوی او کور به يـــــی سو ځی.

په منګلو کی په غره باند ی په اووه ميړه قسم دی. په نوروقو مو نو کی کيدای شی دغره دد عوی قسم په پنځو س او سلو هم تر ســـــره شی.

---

(۱) يو پاو په دی حساب شپږ صحيح يو په څلور سا نتی متره ، راځی چی پنځه پاوه يي مساو ی له يودير ش نيم سا نتی مترو سر ه دی.

(۲) له تور مړی څخه مطلـب هغه مړی دی چی قاتل يي نه و ی معلوم او په شپه کی مړ وی او سپين مړی بالعکس .

په منګلو کی که چاد کوم بل چا شنه میوه داره و نه‌ژو بله کړه او یایی فصل ژو بل‌کړ او یایی د چا کوټه رنګه کړه نو نه‌واری دوه‌سوه شپیته افغا نی شرم او یو پسه‌بـه ننوا تی ور کوی او اړو لی تاوا ن به‌هم ورکوی . لکه چی په‌زاړه کوټ کی‌یوه سړ ی دچاما ل حلال کړ او نه‌ګینه یی بیرته‌ور کړ.

**ب- دسالارزو ، مشوا ڼو،ماموندو اود شیګل دشینوارو تړی:**

۱ ــ که څوك بی ګناه مړ ګـــ وکړی نو کور یی سو ځول‌کیږ ی. او خپله هم مړ ګو نی دی .دا ډو ل بی‌ګناه مړ ګو نه اکثرا د میرا ث د پاره وی.

۲ ــ که الف پاځی او ج مـــړ کړی او الف بندی شی اوپه‌زندا ن کی مړ شی نود ج مړ ی ور باند ی نه خلاصیږی.

۳ـ که الف پاځی اوج مړ کړ ی‌اوج تنها الف په جنګ کی ز خمی کړ ی . که‌الف دکور نه‌و تلی نه‌وی‌او مړ شی نو الف دهما غه ز خم‌نه مړ شو چی ج ور باندی لګو لی‌وه.نو دوی دواړ ه مساو ی او پتنـــه خلاصیدای شی . خو که چیر ی‌الف دکور نه راوو ت اوڅه‌و خت‌وروسته مړ شو نودج دز خم له‌کبله نه دی‌مړ شوی او حتی په ج باند ی‌دقسم حق‌هم نه لری او یادا چی دالـــف ورثه قسم وکړی چی الف د ج‌دزخم نه مړ شوی دی.

٤ ــ دمړی دجوړ ی په مقابل کی یوه ښځه او لس یاپنځلس زره‌افغانی ور کول‌کیږ ی . ز خمی ته یواز ی یوه ښځه ور کول کیږ ی.په‌ننوا تی کی به‌ګه (پسه) او میا، ملااوسپین ږیر ی شا مل وی.

۵ـ که جنګ او دعوی ساده‌وه نو ننوا تی هم ور سره ساده‌وی او که چیر ی قضیه سخته‌و ه‌نو کیدای‌شی چی ښځی اوما شوما ن هـــم ورسره ولاړ شی او پړی په غاړ ه‌وانبه په خو له ګنا هکار د مظلو م له خواو بخښل شی او یادا چی ونه بخښل شی.

٦ ــ که چیر ی د دوو تنو تر منځ پتنه‌و ی اودواړ ه دکوم بل ګـــه دښمنۍ په مقابل کې په‌یوه لښکـــر او یایوه سنګر کې سره برا بـــر

شي، نو يو بل ته‌څه نه شي ويلای‌او په ډاډه زړه به‌ديوبل ملگر تيـا کوي. اود گډ دښمن په مقابل کی بــــه دريږي.
دشر يك جنگ نه د مخــــــه ټول قوم فيصله کو ی چی پتنه دار خلك به خپل تر منځه نه‌سره‌وژني.که‌بر سيره پر دی په لښکر کی چا کسات وا خيست نود قوم نه‌ايستل‌کيږ ی او مړی اوژو ندی يا غم او ښاد ی نه‌ورسره پالی .که چير ی‌يی مد عی ته‌نيك ور کړ او ورسره جوړ شو ، نو ورو سته له هغی‌قوم‌هم ورسره جوړيږ ی او بير ته يی قوم ته ور پريږ دی.

۷ـ که الف پاڅيده ج يی مړ کړاوپه تيښته کی د ج دتربره‌کره ور ننووت او ياحتی دوروركره‌ورننووت نوهمسايه شو او تر خپل بريد به يی‌تيرو ی او هيڅا ته يی مرگ‌ته‌نه‌ور کوی او په خپله هم څه‌ور ته نه‌وايی . ورو سته له هغی‌ور ځی‌يی که بله ورځ پيدا کړ نو وژنــی يی:
۸ ـ غلا که په ڇاباندی ثا بته‌شوه، نو يو په دوه به‌يی‌بير تــه ور کوی . يال (هغه پيسی چی‌دغلا پيداکولو له پاره لگيدلی‌و ی)به هم غل ور کوی . که غله ديال‌لگيدلی‌مبلغ پيسی و منلی خو خبره‌خلاصه ده او که نه هغه څوك چی غلا يی‌شو يده مجبور دی چی لگيد لی‌پيسی په‌قسم سره خپلی کړ ی . غل به‌دا‌ثبات په حالت کی او لس ته زر افغانی (گنهکاری) ور کــوی.( د باجوړ په‌سالار زو کی غل مجبور دی چی دعذر په نا مه قوم‌ته‌ډوډی‌ورکړ ی او يوه يا دوی کوټی يی هم سو ځو لی‌کيږ ی ).
۹ ـ دکرو ندو ناغی ته هـــــم تړه وا يی يعنی دا چی کارينو نه (دغره دکښت وړ ډډی) په‌يوه‌معينه‌خواکرل کيږ ی او هغی خوا ته به مال نه‌بيول کيږ ی.د مخالفــــت په حال کی تری ناغه اخيستــــل کيږی.
۱۰ ـ که چيری څو ك په‌چيغه‌کی‌ولاړ نه‌شی اوياد مړ ی قبر ته رانه شی او معقول عذرو نه لری‌مثلا په خپل پټی کی کارکوی نو

په توده لمبه (۱) کی تری یـــوی ما توی او دی هم و هی او که په توده لمبه کی چاته لاس ته ور نه غی نو بیا وروسته یو گړ تــــــر ی حلالوی.

۱۱- که چیری الف دج په غم او درد او یا چیغه کی د دال له خوا مړ شو ، نوج به هغه کوی چی دال مړ کړی خو پتنه دالف خپلـــه ده او په ج باندی کوم الزام نشته .کله کله الف د ج نه لږ څـــــه تاو ان اخلی.

۱۲- که چیر ی یو سړ ی ځمکه خرڅوی نو باید د(وینی دخپلوانو) څخه پوښتنه و کړ ی . خو که شفع دیوه پرد ی سړ ی وه نو شفـــــع معتبره گڼـل کـیږی . کــه بیــا داسیو ه چی ټول خپلوا ن وو نو اول حق دنږ دی خپل دی چـــــی ځمکه وا خلی . خو که بیاپر د ی سړی دو مره پیسی ور کوی چی خپلوا ن هغی بیی ته حا ضر نه شی نو بیا حق دپردی دی چی هغـــه په زیا ت قیمت سره وا خلی . خو که چیری کوم خپلوا ن او یا پردی خپلوا ن او یا پردی سړ ی بالکل دو مره جگ قیمت و نیسی چـــی هلته په هغه قیمت نژ دی ځمکـــی خر څی شوی نه و ی نو بیا کیدای شی چی په اخیستو نکی له د ی کبله قسم راشی چی آ یاد ی په ربښتیا په دو مره قیمت ســــــره نو موړی ځمکه اخلی او که غواړی چی یواز ی دځمکی قیمت د خپل اصل قیمت څخه پور ته و نښیی.

۱۳- که چاد میرا ث له پاره مرگ او ژوبله و کړه نو کور یی چـــور کیږ ی او بیاسو ځل کیږ ی . په خپله قاتل وروڼه او زا من او ، د ترو نو زا من یی پاخول (شړ ل) کیږی. بیر ته جوړه یی هغه و خت کیږی چی دبل ځای سپین ږیر ی او ستانه راو لی او عذراونووا تی وکړی . وروسته له دی په ځـــای کیږ ی. البته تر هغو چی په ځای شوی نه و ی ځمکه یی هم شا ړ ه وی. *

---

(۱) له تودی لمبی څخه مرا د هما غه داحساسا تو گړ ی ده چی خلك په کی را غونډ یږ ی او مربو طعمل ته اقدام کوی.

* دآزادو سیمو په سالارزو کی د ځمکي شاړول شرط نه دی .

۱٤- که چاپردی ښځه وتښتوله نو مر گو نی دی او هیڅکله پهٔځای کیدای نهشی ، تر هغو چی یاوژل‌شوی نهوی او یاپه خپل مر گ مړ شوی نهوی . په دانگام کی پهښځه یواز ی یو سړی وژل کیږ ی او نوره کور نی نه د ښمنـــــه کیږی.

۱۵- که چیری الف په ج دځهشی شك وکړی نو ج به قســم کوی او که ج په عین زما ن کی‌په الف دځه شی شك و کړی نو ج به تر یوه کال پوری صبر کوی‌او خپل ما ل به لټوی . که پیدانه شو او ورو سته لهیوه کاله یی‌بیاهم په الف قسم کاوه نو مجبوردی چی الف قسم وکړی.

۱٦- که چیر ی پهسالا ر زو اوما مو ندو کی یو سړ ی په خپلـی ښځی باندی کوم‌شوك مړ کړی نودمړهخپلوا ن او یاد ښځـــــی دپلار کور حق نه لری چی دښځی‌میړه ته د درواغجن مر گ له کبله قسم ورکړی. خو په هغه حالت‌کی‌چی تور شوی سړی خلا ص‌اوښځه مړهوی او یادا چی سړ ی مړ ا وښځه خلاصهوی ، نو په او ل‌حالت کی دښځی‌پلار او په دو هم حالت‌کی دسړ ی خپلوا ن د ښځی میړه تهویلای شی چی دو هم کس مړکړی او که نه دښمن‌یی دی.کهښځه خلا صه او دپلار کور تهو لاړهشی‌نو دښځی خپلوا ن مجبور دی‌چی مړه یی کړی او که نهیی و ژ نـی‌نوسړی کولا ی شی چی دښځی‌کوم خپلوا ن ( پلار ، ورور او نو ر ) ووژنی.

۱۷- که الف د ج ښځی ته لاس‌وا چاوه نو ج د الف ښځی تهد مقابلی لهپاره لاس اچوی خواکثراالف د ج له خواو ژ ل‌کیږ ی اویا دا چی دلا س اچولوپر ځا ی‌ښځه‌تښتوی. له دی امله دلاس اچولو معا ملی په دانگام او پهعمو مـــی‌ډول په سالار زو ما مو ندو ا و مشواڼو کی کمی دی .

۱۸- که الف د ج له فصلهاو‌ِبه‌وا ړوی نو الف به هم هماغو مره او بهور کوی او که‌فصل یی سوی‌وی نو مجبور دی چی دفصل تاوان ورکړی.

لکه چې ومو لید ل دځدرا ڼو، منګلو ،تڼیو ، ګر بزو ، سبر یواو دځاځی میدا ن دځاځیو دنر خو نو تر منځډیر کم توپیرو نه مو جود دی. دخو ست واړه قو مو نه چې په‌سمه کی او سیږ ی همدغه دغره دقو مو نو نر خو نه چلوی (۱) ددوی دنر خو نو تر منځ توپیرونه یاپه‌شر م کی او یاپه قسم کی( په‌ځینو کی په‌زیاتو خلکو قسم کوی او په ځینو کی په‌کمو خلکـــــــوقسم کوی) مو جود دی . نور نو ددو ی اکثر نر خو نه سره ور ته‌او مشابه دی.

دسمی قو مو نه چې اکثروا ړه‌اود غر نیو قو مو نو (پړ به) (۲) قو مو نه دی دغر نیو قو مونو په‌نر خ‌فیصله‌کوی . اصلا نو بیاپه دوو مد عیانو پوری اړه لری چې‌دګربزو ،ځدراڼو او یا دسبر یو په نر خ‌سره جوړیږ ی اوکه په‌دوو دوستانو سره مصالحه کوی .

په‌ټو لوقو مو نو کی وروستـــه‌له‌پنځو، شپږو او یالسو کالو نو کله چې مر ګ او ګوډ ، سو ك‌اوخپیړه قوم سره ورا ن او ویجا ړ کړ ی نو دبیرته جوړو لو له‌پاره‌یی‌تنظیم جوړیږ ی .تڼی او ګر بزدا ډول دقوم بیر ته ټینګید لو تـــــه‌ځلویښتی وا یی او نورقو مو نه یی (اربکی) بو لی.

دځلویښتی او ار بکیو کارداسی‌وی چې دقوم دهر ی پښی او خیل نه یو یو مشر اوځوتنه ار بکــــی‌انتخابیږ ی .د مشرانو د منځ نـــه یو تن داربکیو مشر مقر ریږ ی‌چې((میر)) ور ته‌وایی . نور مشرا ن چې انتخاب شوی دی ، دعوی ا وقضیی فیصله کوی . که چیر ی مشرا ن فیصله‌و کړ ی او یو له‌مد عیانو نه فیصله و نه منی اویا دمثال په تو ګه دکور دسو لواجازه‌ور نه‌کړ ی نو مشرا ن میر ته او میر ځوا نو ار بکیو تـــــــــــه‌دفیصلی دتعمیل امر ور کوی .

---

(۱) مخکی بر خې ته د ی‌رجوع‌وشی.

(۲) که څه هم دخو ست وا ړه‌قو مو نه د هغه ځای دغر نیو قو-مو نو د(پړ به) حیثیت لری‌خو بیاهم نه‌شی کو لی چې له اغیز ی‌یی خلا ص شی.

دلته دمشرانو فیصله چې قانو نی‌او عد لی حیثیت لری میراو اربکیو
نه داجرا یه قوی په توگه انتقا لیږ ی . دځلو یښتی ار بکی پـه
قبیلوی تنظیم کی دپولیسو ځـا ی‌نیولای شی.

داچی‌و لی ځلو یښتی ور ته‌وایی‌یو‌ه‌معلوما ت راکوو نکی مشر مونږ
ته‌وو یل چی ار بکی به‌ټـــو ل ځلو یښت نفره وو له دی کبلـه
ددی ساز ما ن نوم ځلو یښتی‌شو.مونږ دومره خبر یو چی د وزیـرو ،
خیلونه دی ډول غوټی ټینگی(ډلی) ته هم ځلو یښتی وایی.

دځلو یښتی دخلا صیدو سر ه قوم بیر ته اتفا ق او اتحا د کوی
او په عمو می ډول فیصلی کوی .همدا ډول کیدای شی چی پـه
ځلو یښتی کی نوی ځلی (نر خو نه)را منځته شی او یادا چی ځینی نور
له منځه ولاړ او یاتعدیل شی.

په عمومی تو گه‌پښتو نو لی دوی خواوی لری‌چی‌یوه خوا یی
نر خو نه (Codes) او بله خوایی‌ارزښتو نه (Values) دی.
نرخو نه مخکی و ښودل شو ل . دپښتنی ټو لنی ارز ښتو نه‌داسی
مفا هیم دی لکه ننگ، نا مو س، غیر ت ، وطن پرستی او نو ر .
دا دواړه خواوی دپښتو ن د ملی کر کټر ستنی دی چی‌یو له بله نه
جلا کیدو نکی او حتی یو په بل کی ننوز ی. که‌څه هم د پښتنــــی
ټولنی ارز ښتونه لوم‌ړی مقـــا م لری خو بیا دواړ ه خواوی یو بل
تعقیبوی او تکمیلوی.

دپښتنو له پاره د ننگ،ناموس، غیر ت او خاور ی سا تنی ارز-
ښتونه دو مره اهمیت لری چی‌داعادی له‌پاره یی د قبیلوی نظــام
ټول و حشت او ناکرد ی دځا ن سره راکاږ ی .دا هغه حالت دی
چی دپښتنو حقو قی اصول ځـــان‌دتعقل څخه باسی .

دحقو قی ټولن پو هنی پیل د انگلیسی پوه هابس (Hobbes)
نه‌کیږ ی . ها بس ددی له پار ه چی ددو لت زاړه اساس ته یوه
نوی ستنه و دروی ،نو یی‌دطبیعی حالت نه خبری وکړ ی .دده په
نظر په طبیعی حالت کی انسا ن وحشی و اوددی و حشت نه‌یوازی
ددو لت دتنظیم په‌وا سطه راو تلی شی . بل محقق جان لاك بیا پـه

خپل وار سره وایی چی انسا ن په طبیعی حالت کی آزاد هم و ا و
دو لت دانسان څخه دغه آزاد ی اخلی . روسو د دواړو یوسنتیز
جوړوی چی انسا ن که چیر ی د دو لت تنظیم مني ، نو هغه دیوه
اجتما عی تړون له مخی دی چی د طبیعی حالت وحشت ته خا تمـه
ور کوی او آزادی یی هم بایه ددی حالت سره برابره وی.

هیګل بیاد طبیعی حالت سر ه مخالفت کوی او وایی چی پـــه
طبیعی حالت کی هیڅ حقوق نشته او یواز ی و حشت او زورچلوی.
په مقابل کی بیا اجتما عی حا لت (ټو لنه) ددو لت دتنظیم سره هغه
یواز ینی حالت دی چی په رښتیا سره حقوق په کی مو جود دی. هغه
څه چی په اجتما عی حا لت کـــی قربانی کیږ ی او یا له منځه درومی
دطبیعی حالت و حشت او زو ر دی (۱).

مارکس هم په حقو قی فلسفه کی دهیګل پلوی کوی ،ځکه هیګل
وایی چی طبیعی حالت زمو ږ لـه پاره فرضی دی او مو ږد هغی په
باب څه نه شو ویلای. نو له د ی کبله مارکس هم په مجردو کتګوریو
پسی نه ګرز ی او غواړ ی په خپل تحلیل کی دتکا مل تهرسیه لواو
مشخصو کتګور یو څخه شرو ع وکړی (۲)

مارکس دسیاسی اقتصاد پـــه انتقاد کی چی سمیت اوریکاردو یی
د مجرد ما هی ګیر او ښکـــار ی (طبیعی حالت) څخه شرو ع کوی
داتلسمی پیړ ی دبیفکره تصورا تو څخه ګڼی او وایی چی دا ډول تحلیل
بیرته طبیعی حالت ته تګ نه دی، بلکی دادبورژ واز ی ټو لنی تجر یه
شوی انسانا ن دی . همدا ډو ل درو سو اجتما عی تړون چی دطبیعت
نه آزاد انسانان سره یو ځای کوی په یوه دغسی ناتورا لیز م و لا ړ

(1) G.W.F. Hegal: Werken in Zwan zig Banden Bd.10.P. 311; 312, Frankfurt; swhrkamp; 1970.

(2) Marx; Karl: zur kritikd. politischen okonomie Dietzverlag Berlin P. 247—256

نه دی (۱) دمارکس پوهه دمشخصو کتګور يو څخه داده چی سړ ی بايد. په يوه فر ضی حالت پسی ونه ګرز ی او هغه څه( ارتباطا ت او مناسبات) چی په ټو لنه کی موجود دی دتحليل له پاره دحقو قودفلسفی تاريخی مفهو م چی هابس ،لاك اوروسو يی را منځته کړ ی په نظر کی ونيسی .

هرڅو مره چی يوه ټو لنـــه داقتصاد ی مناسبا تو او توليد ی قواوو ،په لحاظ ورو سته پاتی وی په هما غه اندا زه يی سيا سی او اجتما عی مو سسا ت هم سا ده اوعميق او صيقل شوی نه وی .لهمن (Luhmann) هم دخپلی حقو قی ټو لن پو هنی په مطالعه کی ددی خبری تصديق کوی .دی وايی چی ټو لی ټو لنی په ټو تـــو ياقشرو نو (Segment) ويشل شوی دی.

هغه ټولنی چی ساده او وروسته پاتی دی ټوټه والی (Segment) يی کم او هغه ټو لنی چی مغلقـــی او پر مختللی دی ټوټه وا لـــی (Segment) يی ډير اومغلق دی (۲).

که څه هم موږ دلته نه شو کولای چی دحقوقو دفلسفی اود حقو قـــی ټولن پو هنی په رڼا کی پښتونوالی مطالعه کړو خو په دی لنډو کرښو کی غوا ړو څه ناڅه په مختصـــر ډول دپښتني ټو لنی حقو قـــی برخی (Segment) ته نظر وا چوو :

لکه چی موږ مخکی وو يل چی دپښتنو ټو لنه ټوټه ييزه (مساوات طلبه) (Segmentary, Egalitarian) اولاس ناخوړلی ده په هماغـــــه اندازه يی حقو قی اصول (Codes) هم ساده اوله دومره زيات عقلانيت (Rationality) . (۳) څخه بر خه من نه دی .

ګيګر (Geiger) او ځينی نور ټو لن پو ها ن حقو ق په لويو مجمو عو (Integrates) يادو ی چی دمر کز يت څخـــــه

---

(1) Ebenda. P, 227.

(2) Luhmann: Recht Soziologie Bd,

(۳) ماکس ويبر (Max webber) چی په خپل کتاب ( دکاپيتا ليز م رو حيه) کی دغرب علوم، تخنيك، حقوق ، مو زيك او هنر دعقلا نيت (Rationality) څخـــه ګڼی .

برخه من وی. خو موږ دزیگریست (Sigrist) (۱)
او اوسنیو ټولن پوهانو او انتـــروپولوجستانو سره چی حقوقو ته‌له
مر کز یت‌څخه په‌ټوټه ییـــــزو (Segmentary) ټولنو
کی قایل دی، موافق یو. فر ق یی‌یواز ی دو مره دی چی دپښتنو
په حقو قی کود کی ددی ټو لنـــی‌ارز ښتو نه په احساسا تی ډول
عکس العمل ښکاره کوی چـــــی دعقلا نیت (Rationality)
څخه‌یی‌و باسی .
دراسیو نا لیتی (Rationality) پرعکس‌یی‌عدم معقولیت تشکیلو ی .
څکه په‌ځینوځایو نو کی دد ی پرځای چی‌ئبو تی مواد اود لا یـــل
پیداشی هلته په قسم او یافـــال‌نیو لو( توده) باندی ځان تسکین
کوی. چی دلته زیاتره له احســـا ساتو څخه کار اخیستل کیږی نه
له منطق او استدلال څخه چی‌ځنی‌یی لکه جان زیر کیار هغه غفلت
بو لی. جان زیر کیار هغه‌و خت چی په پښتو نو لی باندی ږغیږ ی
نود غفلت دری سا حی ښیی:

(۱) دی وایی چی د(پښتونولی‌په کودکی جرم نه ږیـــــږی ) او
پنځږ س کاله ورو سته‌هم کیدای‌شی چی ستا دښمن در څخه بدل
واخلی نو دلته د نـــــوی او زاړه‌جرم تر منځ توپیر نشته . البتـه
په‌پر تلیز ډول په‌نورو حقو قوکی‌جرم ورو سته دیوی ټاکلی مود ی
څخه جرم نه‌بلل کیږ ی.
(۲) دجرم کولو دانگیزی پـــوښتنه نه‌کیږ ی ، په‌تیره په‌جنسی
جرمو نوکی . مثلادیوی ښځی د تورن کیدلو په مساله کی دد ی
پوښتنه نشته چی آ یا ښځه میړوښه ده او که نه ؟او یادا چی‌دښځی
په خو ښه داکار شوی دی او یاداچی ددی سره زور شوی دی.
(۳) ځینو داسی مرکزی نـــورمو نو ته‌لکه دژو ند ساتنه او یاد
مجرم نه‌کر که دپښتو نو لی پـــه‌کودکی ځای نه دی ورکړ شوی .په
مقابل کی بیا دننگ او نا مو ســـ‌نه داسی قوی ارز ښتو نه جو ړ

(1) Sigrist; Chr: Regnlierte An archie a. a.o.p 105—112.

شوی دی‌چی دژو ندانه ځينی نورمهم عنا صر تری قر با ن شو ی دی . (۱)

پښتنو نو لی ديوی لاس‌ناخوړلی مساوات طلبه (Egalitarian) اوټوټه ييزی (Segmentary) قبيلوی ټو لنی حقو قی کود ا و ارزښتو نه‌تشکيلوی چی ځان پــه‌خپله اداره کوی اود مرکز يـــت سره په مخالفت کی ده . زمـــو ږ حقو قی کود د خپل تطورپه‌نتيجه کی څه ناڅه ځان منطق ته نيږ دی کړی دی او په قضيو او معا ملـو کی دژبی او وينا ځالاکی اهميت لری .دمثال په‌تو گه په تېيو کی تقريبا سل کا له پخوا په ښځـــه‌تښتولو ياښځی ته په لاس اچولو سره سړی نه‌وژ ل کيده بلکی‌لاس‌پزه او ياپښه به‌يی پری کيدله . بيا وروسته يادد ی ډول معا ملو دزيا توا لی او ياد ښځی دمسالو داهميت له‌کبله په ښځه با نـــدی‌سړی مرگو نی شو..

همدا ډول څه ناڅه فکر پـــه‌مسايلو باندی دقبيلوی،جغرافيا يی او تاريخی شرايطو سره سم را منځ ته‌شوی دی .دمثال په تو گه دو زير ستا ن په‌سيمه کی دا سی‌قضيه پيښه شوه چی‌يوه آس په چمن کی وابنه خوړل يو ســـــړی راغی د ختيځ له خوا يی و ښوته اور واچاوه .دويم دشمال له خوااور واچاوه ، دريم دجنوب له خوا اور واچاوه او څلورم دلويديځلوری‌څخه . دآس ښښتن تاوان‌و غوښت خوځلورو وا ړو اور اچوو نکو د تاوا ن دور کولو زړه نه‌واو هيڅ يوه ملا متيانه منله. په‌نر خ کـی بالاخره څلور م تن چی د آســـس دتيښتی آخری امکان يی بند کړی‌و ملا مت شو او بايد تاوان يـــی ورکړی وای .

دارنگه يو بل مثال مو نږ تــــه معلوم دی چی په بی مشــــــــره (Acephalous) ټو لنو کی دهو ښيار ی په‌نظرور تــــه کتلی شو .يوه سړی‌خپل آس پــه‌ځـنگل کی د وښو خوړ لو له پاره

(1) R.R. esgesllschaft National staat und Djan—zirakyar: stamm Irredentismus am Beispielder Pashtunistan frage; Haag + Herchen; Frankfurt / M; 1978; P.65

پرېښود . وروسته له څو ورځو يوسړی راغی او ځنګل ته يې اور واچاوه . دآس ښښتن داورا چــوو نکی ښخه تاوا ن و غوښت خو اور اچوو نکی نرخو غوښت . په نرخ کی دآس ښښتن وو يل چی ز ما آس په ځنګل کی وا ښه خو ړل او فلانی اور وا چاوه چی دده داور اچولو له امله زما آس و سوځيده. داور اچوو نکی ښخه پو ښتنـــــه وشوه ، هغه وو يل چی خدای دی نه کوی چی زما داور اچولو له امله دده آس مړ شوی وی او زيا ته يی کړه چی آس پخوا داور اچولو څخه مړ شو ی دی. نر خيانو بالا خره داسی فيصله وکړه چی آس د ی په لټ واړول شی . که چيـــری دآس دلاندی واښه سوی وی نو آس داور له کبله مړ شوی دی او که بيا دآس لا ندی واښه نه وو سو ی، نو آس پخوا له اور څخه مـــــــړ دی.

ددی مثالو نو دراوړ لو څخـــه زموږ مقصد دا دی چی د پښتــــــو نو لی حقو قی کود د خپل تطو راو تکا مل په نتيجه کی لکه څنګه چی (Max webber) يی يادونه کوی څه نا څه ښــا ن تعقل او عقلا نيت (Rationality) ته نيږ دی کوی ځکه د (Max webber) (۱)له نظره دفيصلی دکولو له پــا ره دلايل پيدا کول د معقوليت نښانی دی .

نود پښتنی تو لنی ددی خواصو په اساس اود سختی ايکا لو ژ ی له مخی کولای شو چی په دی دريو سا حو باندی يوه بله هم وراضا فه کړو. يعنی دا سی نه ده چـــــی پښتانه ژو ند ته په کم اهميــــــت قايل دی، بلکی غفلت يی دلته دی چی په کوم جرم باندی مر ګو نــــی

---

(1) Max; weber: Writschaft undgescll schalf.

Hall band J.C.B. Mohrc panl siebeck Tubingen / 1959; P 395—397

دماکس و يبر په نظر بايد چـــــی نور مونه او حقوقی جمــلی سمــی ديوه حقو قی سيستم لا ندی راشی چی يو دبل سره په تضاد کی نه وی.

کیدل . په‌پو تنسیال کی(بالقوه) دجرم د مخنیوی له پاره را منځ‌ته شوی دی (۱)

په هر صورت دپښتنو نو لی‌نور مو نه دیوی دا سی ټو لنی حقو قی کود تشکیلوی چی هر فرد دبل سره برابر او هیڅوك دچانه کم نه دی .دپښتنی‌ټو لنی‌په‌ټو لنیز جوړ ښت باندی موپخوا خبری کړی دی ، یواز ی دو مر ه‌زیاتوو چی په داسی مساوات‌طلبه ټو لنه کی چی دمر کز یت‌تاثیر په‌کی کم اود(( منظمی انارشی)) نوم ور کولا ی شو، په‌هغه انداز ه دعقلا نیت تو قع نه شی کیدلای چی‌ماکس ویبر یی«حقو قی انحصار» (۲) بولی.

که‌چیری انسا ن په(( منظمه انار شی)) کی دمعقو لیت څخه بر خوردار نه دی او یاد جر م په‌مقابل کی دجزا سختوا لی موجود دی او یادا چی کله‌کله یی حقو ق‌دزورور حقوق دی خو په مقابل‌کی ددی ټو لنی ایډ یال شکل یوارما نی حالت دی چی انسان یی دخپلی مبارز ی او تر قی په لاره‌کی هغه‌پړاو ته ځان رسوی چی هلته هیڅ ډول انحصار، حا کمیت، مر گ اوژوبله نه‌و ی . په پښتنو کی اکثره شخړی ، مرگ او ژوبله یا اقتصاد ی مسایل دی او یا په زیاته اندازه دنا موس او ننگ‌دارز ښتو نو سره تړ لی دی.
(وگوری ضمیمه) کله چی دغه‌قبیلوی اقتصاد ی ارتبا طا ت‌وران او ویجاړ شی پرځای یی نوی‌متمدن‌او متر قی مناسبا ت را منځته‌شی، دننگ او نا مو س ارزښتو نه به‌هم دخپلی زړی زیر بنا سره د تاریخ کندی ته و سپار ی‌او نوی‌روبنا به داسی نور مو نه په‌ځا ن کی احتوا کړی چی هلته انسا ن‌او انسانی ژو ند دآزادی سر ه دحقوقو بر خه نه بلکی بیخی د بدیهیا تو څخه وی.

---

(۱) په مفصل ډول دبد ل د مخنیو ی له‌پاره دبدل مبحث ته رجوع وکړی.

(۲) دماکس ویبر په نظر سره‌که حقوق په‌یوه اور گان (دولت) پوری منحصر نه‌وی نو دابیر ته هغه د(ځنگل قانون ) یعنی حق دزورور دی تری جوړ یږ ی . له‌دی کبله باید حقوق انحصار ی او سیستماتیك وی چی هغی ته معقول وو یلای شو . وگور ی د هماغه ماخذ دری سوه شپږ نوی یم مخ.

# کلیواله ټولنه

## کلی اود کلیو ټولنیز جوړښت:

ددانګام او ګر بزو په غر نیو سیمو کی کلی ،چینو، و یالو ا و خوړو نو ته نږ دی پراته دی اود ګربزو او بنو راو ك په آوارو سیمو کی کلی دزرا عتی ځمکو شاو خوا په میدانی ځایو کی جوړ شویدی. ټول کلی یو شا ن نه دی ،ځینــی وړو کی اوځینی لوی دی . پــه منځنی تو ګه دوړو کلیو نفو ســ له دوه سوه تر پنځه سوه او د لویو کلیو له پنځه سوه تر زروتنو پوری اټکل کیدای شی .په دانګام او ګر بزو کی دکلیو څخه جلا په غرو نو یاد غره په لمنو کی له یو کور څخه تر پنځو کورونو پور ی مو جودو ی چی په دانګا م کــی ور ته بانډه او په ګر بزو کی ورته کوټکی وایی. په دری واړو سیمو کی ځینی کلی ډیر پخوا نی دی او په پخوا نیو نو مو نو یادیږ ی . اکثره کلی دځای ، خوړو نو،ناونو یاد قبیلی دیووا حد دمشر په نامه شهرت لری .

په غر نیو سیمو کی دزرا عتی ځمکو دسپما له کبله ډیر کلـــی د غرو نو په لمنو په شاړو ځا یـــو باندی آ باد شوی دی . دټو لــو کلیو دکورونو په ودانیو کی د محل دلرګو ، تیږو ، او نـورو مــوادو څخه استفا ده شوی ده چی د اوسپنی ، سامان او نـــور لوازم یی له بنارونو څخه اخیستل شوی او په کی استعمال شوی دی .دښو-

راو ك د کلیو کوټی له یوی بلی څخه فاصله لری اما د دانګام او ګربزو دکلیو کوټی یوه په بلی پوری نښتی دی. په غر نیو سیمو کی دکلیو کوټی دیوی بلی څخه په لنډه فاصله په جګو ځایو جوړی شوی دی اود لری ځای څخه دکلی کوټی داسی ښکاری ، لکه چی یوه دبلی دپاسه ولاړه وی. دکلیو په منځ کی کوڅی تللی اود اکثره کورونو دروازی کوڅو ته راو تلی دی.

په کلیو کی دشتمنو او بیوزلو کوټی معلو میږی . دبیوزلو کوټی اود کورونو ساختما ن ساده دی. ددوی دکورونو دیوالونه ټیټ، دوه یا دری کوټی لری چی په یوه یادوو کوټو کی ټول فا میل سره د کور دساما ن یوځای او سیږی. په منیژ می، او پسرلی کی په کوټو کی او په اوړی کی په باموټو ویده یږی . په دانګام او ګر بزوکی داکثره شتمنو کورونه ،کلا ګا نی او یاکلا وز مه دی . دکلا ګا نود ننه سا حه پراخه وی ، دکوټو څلورخواوی لوړ دیوالونه چاپیر شوی دی اود کوټو تر مخه یی بر نډه ی جوړی شوی . دځینو کلا ګا نوپه یو ګوټ اودځینو په دوو اود ځینو په څلورو وا ړوګوټو نو جګ ک برجونه جوړ شوی دی . دکلاپه څلورو خواو دیوا لونو اوبرجونو کی دټو پکو له پاره سوری جوړشوی دی چی په واقعیت کی د کلا دا دیوا لونه او بر جو نه دجګړو په دوران کی دفاعی سنګرو نه دی. دکلاو دننه او یاپه لنډه فا صله دکلاڅخه دباندی حجری (میلمستونونه) جوړ شوی دی . دکلا ګانو کوټی ډیری وی چی شتمنډ خپلو میر منو او اولادو سره په جلا جلا کو ټو کی او سیږ ی اوساما ن یی په جلا کو ټو کی وی.

**۱ ـ جو مات او ملا:**

په وړو کلیو کی یو او په لویو کلیو کی ترڅلورو جو ما تو نو وجود لری. دکلی او لس په ګډه دجو ما ت له پاره ملا نیسی او د کلی خلك ملا ته دسړی سر( نارینه چی لمانځه ته ځی) داوړ ی او منی په در مندو نو کی غنم او جوا رد (اړی) یا(اما متی) په نوم ور کوی. بر سیره پردی ملا ته سرسا یه،زکات، شکرانه ، خیرات او د

او سيدو کور هم ور کول کيږ ي اودده کور ته دغم او ښاد ي په ورځو کی‌بر خه هم ور ليږ ي. ملا يواز ي دخپل ځا ن او کوردافرادو له پاره جامی اخلی چی په ځينو وختونوکی دکلی شتمن اشخا ص ملا ته دجا مو داخيستو له پار ه نغدی پيسی هم ور بخښی (۱).په کليو کی ملا يا ن لا ند نی دندی په‌غاړه لری چی په هغوکی ځينی مذ هبی او ځينی او لسی دی.

**لمو نځ:**

لمو نځ ور کول دملا اسا سی دنده ده . دکلی خلك پنځه‌و خته لمانځه له پاره جو ما ت ته‌را ځی او ملا د لمانځه اما مت کوی .ملا دسهار ، ماسپښين اود جمعی د وړځی دماسپښين په لمانځه کی مذ هبی احکام تبليغوی (۲).

**تدريس :**

په‌ځينو جو ما تو نو کی ملايان نجو نو او هلکا نو ته دمذ هبی کتابو نو تدريس کوی . نجو نی بلوغ ته درسيدو تر مخه در س قطع کوی او له دی وروسته‌جوما تو نو ته نه‌راځی.

په‌جو مات کی دوه ډو له هلکان درس‌وا يی چی يوه ډ له هلکا نو ند ښوو نځيو زده کوو نکی دی دوی دښوو نځی دتګ نه مخکی او ياد ښوو نځی د درس نه‌وروو ستـــه‌جو مات ته‌ور ځی اود ښوو نځيو دزده کړی سره يوځای دينی‌زده کړه هم کوی . بله ډله هلکان‌چی‌يان

---

(۱) ملا سپينی جا می اغو ندی‌او سپين پټکی په‌سروی.

(۲) دکلی ملا دو خـــــت پيژ ند نی مها رت لری . دی د سهار، ماسپښيـــن ، ما ز يګـــر، ماښام او ما خستن دلمنځو نـــو وختو نه دستورو او لمر دحر کت‌څخه معلو مو ی اوځينی ملا يا ن دوخت د معلو مو لو له پاره لـــه‌ګړی څخه کار اخلی.

یاطالبان (۱) دی چی ځـینی یـــی دکلی دی او ځینی دنورو ځا یو ښخه دلته راغلی دی.

دطالبانو او چړ یانو اکثر یت دنا داره کور نیو ما شومان،یتیمان اود مذ هبی کور نیو هلکا ن و ی. دکلی چړیا ن له درس ښخـــــه وروسته خپلو کورونو ته ځیاودنورو ځایو ښخه را غلی چړ یا ن په جو ما ت کی او یاد جوما ت‌ترڅنګ په‌کوټو کی او سیږ ی. دکلی خلك چړ یانو ته ډوډ ی ، چا ی،زکات ، خیرات او پـه در مندو نو کی غله‌ور کوی .ځینیچړ یا ن دځینو دینی کتا بو نو دلوست‌ښخه وروسته در س پریږ دی او پـــه‌دنیوی چارو کی بر خه اخلی. او ځینی ددینی کتا بونو د لوست‌ښخه وروسته دلوړو دینی زده کړ وله یاره درسمی دینی مد رسو اویادنا متو دینی ءعلماوو شخصـــــی مدر سو ته ځی او هلته خـپـلو زده کړ و ته دوام ور کوی.

دجو ما تو نو ځینی چړ یا ن ددینی کتابو نو دلوست په پای کی په‌خپلو کلیو کی پاتی کیږ ی اود خپلـــــو کلیو اما مت شروع کوی (۱)

**په غوږ کی آذان :**

دماشو م دزیږ یدنی ښخـــــــه ورو سته ملادماشو م کور ته‌ور بلل کیږ ی‌او هلته دماشو م په غوږکی آذان کوی . د هلك په غوږ کی د

---

(۱)چړی‌یاچړیان پـــه نورو پښتنوسیمو کی مثلا په غزنی ، پکـــتیا او ننګرهار کی هغو هلکانو تـــه وایی‌چی دجو ما ت دطالبانو له پاره د کلی له کو رونو ښخه ډوډ ی‌راوړی‌دملا دکور ځینی کارونه سر تـــه رسوی او داسی نور او په علمـــی‌لحاظ د دینی زده کړ ی ابتدا یی زده کوونکی وی او کله چی لـــوی‌شی او په زده کړه کی هم پرمختګ وکړی نو بیاور ته طالب اوطالبان‌وایی . دلوست په‌پای کی په‌رسمی مدر سو کی دشهاد تنا می تــــراخیستلو ورو سته او په او لسی مدرسو کی د هغوپر سر دیونامتوعالم له خوا دپګړی تر تړ لــــو وروسته دملا یا مو لوی په نا مه‌یادیږ ی چی‌رسما داما مت کولو او که‌تکړه وی نورو طالبانو ته ددینی زده کړی تدریس کولواجازه لری .

آذا ن له پاره دکلی ملا حتمـــی را غوښتل کیږ ی اما دنجو نو په غوږ کی دآذان له پاره د مـــلا را غوښتل حتمی نه دی ځکه چی د نجو نو په غوږ کی دملا نه پر ته هر نارینه آذان کولا ی شی .ملا ته دآذا ن کولو په مقابل کـــی د ماشو م پلار څه نغدی پیســـی ور کوی.

**د م تعو یذ:**

دناروغو ما شو ما نو ، ښځـواو نارینه و ، له پاره یا ملا کورتـه غوښتل کیږ ی او یانارو غ جومات ته ور ځی ملا نارو غ یاد قرآ ن مجید په آیاتونو دمو ی ، یاور ته تعویذ لیکی او یاور ته بندورکوی. ملا ته ددم تعویذ په مقابل کـــی شکرانه ور کول کیږ ی چـــی شکرانه یانغد ی پیسی و ی او یا غله یابل څه.

**دقرآن مجید ختم :**

دکلی خلك دناروغ د صحت، یا دآفت او مشکل ددفعی په خا طـر او یاد یوی کور نی د مړ شخصـ په روح ( دروح دآرامو لو ) دپاره دقرآن مجید دختم له پاره د کلی ملا او چړ یان (طالبا ن)راغواړی. ملا او چړ یا ن دقرآ ن ختم کوی او د ختم نه ورو سته دعاکو ی .د ختم په پای کی ملا او چړیانو ته د ختم دخیرا ت په نا مه ډوډ ی اود ختم دشکرا نی په نوم نغد ی پیسی ور کول کیږ ی.

**نکاح :**

دواده نه ورو سته دځلمی ا و پیغلی دنکاح له پاره ملاراغوښتل کیږ ی .ملا دشر عی احکا موسره سم نکاح تړی اود نکاح په پای کی ور ته شیرینی او نغدی پیسی ورکول کیږی.

**دمړی مراسم :**

ملا دمړی دجناز ی ښخو لــو او فاتحی ټول مذ هبی مرا ســم اجراکوی. ملا ته دمړی جا می اوداسقاط نغدی پیسی ور کــو ل کیږی.

**جر گه:**

ملا دنجو نو دغوښتلو د مر کی اود شخړو داوارولو په ټو لــو جر گو کی برخه اخلی.

**ننوا تی:**

ننوا تی دپښتو نو لی دکودمهم او اساسی جز دی. دقاتل یاتیری کوو نکی دکور ښځی د مقتو ل او یاد هغه شخص چی ځانی او ما لــی تاوان ور رسول شــوی وی کــور ته ځی اود ننوا تی په نا مه دمقتول له کور نی او یاد تاوا ن وررسیدلی شخص ځخه عفوه غواړ ی . ملاد ننوا تی دښځو سره یو ځای ځی. دمحلی مــلا یانو په فعالیتو نو کی دینی او دپښتو نو لی د وا ړ و خصو صیا ت لیدل کیږ ی . که دیوی خوا هغوی مذ هبی چاری ترسره کوی ، له بلی خوا هغوی دمحل داوسیدو نکو په حیث په ټو لــو اجتما عی چارو کی فعا له بر خه اخلی او ډیر لږ ملایان داما مــتــی نه علاوه دبز گری کسب هم کوی. جو مات پر عباد ت بر سیره ، د کلیوا لو په اجتما عی ژ و ند کی دټولید و دځای حیثیت هــم لــری او په خپله جو ما ت ددو ی په ټو ل اجتما عی ژو ند ژور ه اغیزه لری. دکلی ټول خلك او مخصو صا مشران او سپین ږیر ی ، دور ځی او شپی له خوا پنځه و خته دلمانځه له پاره په جو ما ت کی راټو لیږ ی او په جوما ت کی دکلی په زرا عتی، آبیاری غرونو، ځنگلو نو، شړ ځایونو، اشر، ناغی، د مړو اود کلیوا لو په خپــل منځی ، دکلی او نورو کلیو تر منځ اود کلی او حکو مت تر منځ پــه مسایلو خبری کوی او دلتــــه دمو ضوع په ارتبا ط په جوما ت کی حاضر مشرا ن خپله رایی څرگندوی چی د خبرو او نظر یو دڅرگندو لو وروسته دمو ضوع دحل له پاره دلته تصمیم نیول کیږ ی او بیا ددی ځای دتصمیم په اساس گډ عمل کیږی.

**۲- چم گاونډ:**

چم ديو کلي فزيکي او ټولنيز دواړه مفهوم نه افاده کوی . په فزيکي لحاظ چم دکورونو هغه مجموعه ده چې په يوبل پوري نښتي په يوه کوڅه کې پراته دي اودکلي دننه يو چم دنورو څخه دکوڅې، ويالې او ياليار ی په وا سطه جلاکيږي . په وا قعيت کې چم دکلي واحد دی او د هرکلي په تنا سب دهغه چم هم تو پير کوی. دلوی کلي چم لوی اودواړه کلي چم وړو کی وی. که په يو کلي کې ديوی قبيلې غړی او سيږی ، نو ددا سې کلي چمونه د خيل ياپښې او يادکهول په اساس و يشل شوی وی او دوينې دارتباط په لحاظ يو او لس يو بل ته نږدې ديو چم په کو رو نوکې ژوند کوی . که په کلي کې د مختلفو قبيلو غړی او سيږی نو په دا سې کلي کې د خيل، پښې او کهول په ځای ديوې قبيلې غړی په يوچم کې اود بلې قبيلې غړی په بل چم کې او سيږي .دمثال په توگه ددانگام په کلي کې دسالارزو ، ما مو ندو ، گر بزو ، سوا تيانو او نورو قبيلو دغړوچم ديوبل څخه جلا دی . چم دا معنی نه لري چې په يو چم کې يوازي يو او لس کورونه لري او د چم او سيدو نکی دوينې په ارتبا طنورو خلکو ته په خپل چم کې داو سيد و اجازه نه ور کوی، بلکې په چم کې د نورو خيلونو ، پښو، کهو لونو او د نورو ځايو نو څخه راغلي همسا يه هم وجود لري اما په چم کې داصلي او سيدو نکو په تناسب دنورو خلکو شميرلږ وی او په وا قعيت کې چم داکثر يت په نوم بلل کيږي.

گاونډ ديو کور شاو خوا نږ دې پر تو کورونو ، چم ته نږدی ،نورو چمونو ، کلي ته نږدی کلي يا کليو ته وايي اود کور چمو نو او نږ دی کليو او سيدو نکو ته گاونډ يا ګاونډیان کيږي. همداشا ن که يو شخص يايوه کور نی او يايو گرو پ دځينو عوا ملو له کبله له بل ځای څخه کلي ته پناه راوړ ی دکلي اصلي اوسيدو نکی پناه راوړو نکو ته گاونډ يا ن (همسايه) هم وايي.

**۳- کندی :**

ځينی خلك دچم او کند ی تر منځ توپير نه کوی، بلکې چم او کند ی په

یوه معنی استعمالوی . لکه چی مخکی ور ته اشاره شوی ده چم دکلی فزیکی واحد او په کلی کی دکورونو دفزیکی مو قعیت ښکارندوی دی اما له بلی خواکندی دچم دټو لنیزو مسا یلو ، اجرایوی وا حد په تو گه د چم په تناسب وړو کی وا حدتشکیلو ی .دکلی کندی دپلر ینی(کهو ل) په اساس جوړیږ ی (۱) گر بز کند ی‌ته ټل او په ښنو راو ك کی دکند ی او ټل چاری دو یش په اساس دی په دانگام کی دکندی دجوړ یدوپه‌وخت کی دکلی مشرا ن راټو لیږ ی اودکلی په هر چم کی دهری پلر ینی نارینه چی دخوار لسو کلونو څخه پورته‌و ی یاد ملاتړ وی او ټو پك ویشتلی شی شمیری او بیادشمیر له‌مخی دچم وگړی په کندیو ویشی چی دهر کند ی دو گړو شمیر داتیاو څخه ترسلو تنوپور ی و ی او دپلر ینی مشر دکندی مشروی. که‌په یو چم کی دیوی پلر ینی دوگړو شمیر دوه سوه تنه ټوی نودغه پلر ینه په دوو کندیوویشل کیږ ی او که ځینی پلر ینی پنځو س پنځوس وگړ ی‌و لری‌نو له دی دوا ړوپلر ینو څخه‌یو کندی جوړیږی . دکندیو دجوړو لو له پاره ټاکلی و خت نشته بلکی هر کله چی دکلی مشران یی‌و غواړ ی سره راټو لیږ ی . دپلر ینودوگړوشمیرکوی او له سره کندی جوړوی. کندی دو گړو دشمیر په تنا سب تغییر مو می . که دیوی پلر ینی د وگړو شمیرزیا ت شوی وی ددوی‌دکندیو شمیر هم زیا تیږ ی‌اومعکوس یی‌لږیږی.

په هر کار کی دکندی دو گړ و برخه اخیستل دکار دنو عیت په اسا س فرق کوی . که چیر ی یوکار دټول کلی(لکه دویا لو کیند ل، دمړی او واده مراسم) او یاپه ټولی‌قبیلی( دجگړو په‌و خت کی لښکرته دځوانانـو لیږل ) پوری ار تـباط ولری نو په دی صور ت کی د ټول

---

(۱) په هغوکلیو کی چی یوخیل یایوه پښه پر ته ده دوی کند ی دپلر ینی په اساس جوړ کړ ی‌دی‌او په کو مو کلیو کی‌چی‌د مختلفو قبیلو وگړ ی او سیږ ی دوی گه‌کندی جوړ کړی دی اودیو خیـل وگړ ی دبل خیل دوگړو سره‌کندی جوړ کړی دی. په داسی کلیو کی لږ شمیر دډیر شمیر خیل سر ه یوځای کیږی.

کندي‌وګړ ي په‌شمير په خپل وا رسره او په خپله ور ځ په‌کار کـي برخه اخلي .دمثال په‌تو ګه‌دويا لي‌دکيند لو له پاره مشرا نراټولېږ ي اودويا لي دکيندلو دپيل و خت ،دکار کوو نکو شمير اود کارور ځي ټاکي . که په کلي کي پنځه کندي‌وي هر کندي سل تنه‌و ي اودويالي دکيندلو له پاره پنځه ور ځي او دهري ور ځي له پاره سل تنه کـار کوو نکي تعيين شوي وي نو بياله‌ټاکلي و خت څخه هره ور ځ‌دهر کندي څخه شل شل تنه په خپـل‌وارسره دکارتر پايه‌ځي.د قبيلو ي جګړو په دورا ن کي نه يواز ي‌ديو کلي دکنديو وګړو ته‌بلکي دقبيلي دټولوځوانانو ملاتړ‌ته‌ضرور ت پيدا کيږ ي او په داسي و ختونو کي د هر کندي مشران ټول ځوانا ن د جګړ ي ډګر ته ليږ ي . همدا شا ن دکندي‌وګړ ي په کندي پوري‌محدودکارونه ( لکه دکندي جو مات‌جوړول دغوبل اشر او نور) په خپلـــــــه‌ترسره کوي اماپه ځينو و ختو نو کي ديو کندي وګړ ي په‌کند ي‌پوري محدود کار له‌پاره دبل کنـــــدي مرسته غواړ ي .ديو کند ي پـــه‌محدود کارکي دبل کندي بر خـه اخيستل يو ډول ټولنيز پور دي‌که‌په‌بل و خت کي بر خه اخيستونکي کندي مر ستي ته اړه پيدا کړي نوپوروړ ي کندي هم ورسره متقابله مر سته کوي . په لنډه تو ګه‌کندي‌دکلي يو ډول ټولنيز ساز ما ن دي چي دکار دويش اوپه کارکي دبرخي اخيستلو او عمل عمليه آسا نـــه کوي.

**۲- ونډه :**

دکندي په تناسب يو و نډه له‌څو کليو څخه جوړ يږ ي او په‌ښورواوك کي‌و نډه دو يش په مفهوم هـــــم‌استعماليږ ي . دارتبا ط له مخي د حکو متي کارونو اجرايوي واحددی.په‌يوو نډه کي دڅو کليو نفو ســ شميرل کيږ ي اودنفو سو دشمير‌په اساس دغه‌کلي يوو نـــــډه جوړو ي (۱) او هرو نډه خپله برخه‌قوي عسکر دبيګارله پاره‌کارکوونکي

---

(۱) په‌و نډه کي دڅو ار لس کلنو څخه پور ته نارينه شميرل کيږ ي. ښځي او ما شوما ن په شمير کي نه‌راځي و نډه دقبيلو دڅو ني‌ارتباطاتو واحدنه دی بلکي په‌يوو نډه کي په‌مختلفو کليو کي او سيدو نکي د مختلفو قبيلو خيلو نه‌سره يو ځا ی کيږي.

اود(خریداری) په‌نوم حوا له شو ی‌اجناس ورکوی .

په دانگام کی ونه داسما ر دخانی‌ددور ی له‌پاتی شو نو څخه دی . او لس به دو نه‌و نو له مخی ځا ن‌ته دبیگار له پاره اود جگړ وپه‌دوران کی‌و گړی ور کول . دخانی له منځه‌تگ څخه ورو سته ونه‌و نه‌په خپل حالت پاتی شو ل او اولس دخا ن‌په‌ځای مر کز ی حکو مت ته‌دونه‌و نو په اساس‌قومی عسکر، غنم، بو س‌او غوړ ی ور کول او هم یی پـــه ونه‌و نو دحکو متی سړ کو نو ، دودانیو او پلو نو دجوړ‌و لو بیگا ر کاوه . دپخوا را هیسی تو له دره‌په‌اتوو نه‌و نو و یشل شوی ده.دغلام حیدر خا ن څر خی درا تگ نه تر۱۹٤۷ کال پور ی تو لی دری هر دوه کلونه دوه دیر ش قو می نوکر(عسکر) حکو مت ته‌ور کو ل او په تولو عسکرو کی دهرو نه بر خه‌دوه‌تنه‌وو .پنځه دیر ش کاله مخکـــی دونه یو نفر قو می نو کر ته‌در ی‌سوه‌روپی اجوره‌ورکول کیده .دوه دیر ش کاله پخوا حکو مت د دوو کلونو په‌ځای دقو می نو کرا نودوره یو کال کړه چی په دغه‌و خت کی‌ددانگام او بیداد دوو ونه‌و نو دقومی نو کرانو په‌ځای نفو س و ما نه اوله دغی مودی را هیسی دغه دوا ړه ونه‌ونه دقو می نو کر ی‌دونه‌و نوڅخه وو تل او نور شپږ ونه‌و نه پاتی شو ل.

او س ددانگام او بیداد دونه‌و نو هر۲۲ کلن ځلمی له معاو ضـــــی څخه پر ته نو کری ته‌ځی او پا تی‌شپږو نه‌و نه په هرونه په‌کال کی دوه نو کرا ن ور کوی چی‌دقو می‌عسکرو شمیر دو لس تنه دی.

په‌شپږوو نه‌و نو کی دقو مـی‌نو کرانو دلیږ لو په‌و خت کی هر کال دداو طلبی په اساس نفرنیول کیږ ی . هغه‌کسان چی دنو روپه تناسب لږی پیسی اخلی هغوی ته‌معاو ضه ور کول کیږ ی اود دوو کلو نو له پاره نو کری ته ځی .دداو طلبی سره سره دقو می نو ــ کرانو اجوره دشل زره افغا نیوڅخه کمه نه ده . که چیر ی په‌یوو نه‌کی په خپله دو نه غړ ی نو کری تـــه چمتو شی هغه ته شل زره‌افغا نی ور کول کیږ ی او نو کری ته‌ځی. که‌چیری په‌ونه کی‌یو نفر پیدا نه شی بیادنو رو و نه‌و نو غړو ته اجوره ور کوی . که چیر ی په خپل

ونه او نورو و نهو نو کی ځوك پیدا نه‌شی نو په داسی حالت کی دکلی مشرا ن دخپل ونه دزلمو نومو نه‌لیکی او پچه اچوی دهر چانو م چی په‌پچه کیو خیږی هغه ته اجوره ور کوی او نو کری ته یی لیږ ی. د عسکر ی په‌ونه کی دکلی ټو ل‌نارینه که‌بز گرو ی ، شپانه وی او کــه زمیندار شمیرل کیږ ی.دیار لســ کاله د مخه دسرك او حکو متـــی ودانیو جوړ یدل په‌بیگار کیدل . علاقدار به دکلیو مشران راوغوښتل او هغوی ته به یی دبیگار دکا ر نو عیت ، نیته اودو گړو شمیـــر اعلان‌کړ ل. مشرانو به دټولو وگړ و شمیر په‌و نهونو وو یشل او هرونه به دخپل شمیروگړ ی دبیگار لــه‌پاره لیږل . همداشا ن حکو مت به په‌ځمکه لرو نکو او ما لدا رو باندی دیو ټاکلی نر خ له مخی( دغه نر خ به دمروج نر خ څخه بیخی لږو) دغنمو ، اور بشو ، بو سو او غوړو (خریدار ی په‌نوم حوا له‌کو له ) .حکو مت به دوی ته دغه لږ ی پیسی ور کولی اود هرو نه زمیندارانو او ما لدارانو به د خپلوځمکواومالداری په اندازه حوا له شوی اجنا ســ راټولول او حکو مت ته‌به یی‌ور کول. دیار لس‌کاله‌کیږ ی چی بیگار او دخر یدار ی حوا له له منځه تللی‌ده. او س دور ځنی اجور ې په مقابل کی دو لتی کارونه کیږ ی اودحکو- مت داړ تیا وړ شیا ن په مروج‌نرخ په‌حکو مت پلورل کیږ ی .

دگر بزو داو سنی حالت څخــه‌داسی معلو میږ ی چی دوی پخوا کوچیانی ژو ند در لود او او ســـ هم په دوی کی دنیمه کو چی اویاد باندی‌شکل کوچیتوب نیم‌کوچیتو ب مو جود دی .له دی کبله او س هم ځای په‌ځای د(پوز یوکورو نه )لیدل کیږی خو پخوا گر بزو په زیا ته انداز ه په پوزی کی ژو ندکاوه . زمونږ ددی پوښتنی په ځوا ب کی چی‌گر بزو په( پوزی) کی څنگه د دښمنانو دپټنی څخه ځان سا ته،یوه سپین ږیری وویل‌چی(( همدا ډول په‌پوز یو کی او سیدو او پټنی ا و دښمنی موهم کو لی ))وروسته لــه دی چی په‌پوزی کی شوور ځی او ر بل‌شی نودپوز ی درزونه لو گــــی‌ونیسی او ساړه تری نه‌تیریږ ی . په‌ورو ستیو و ختونو کی گربز وځه‌ناځه بز گری او سوداگر ی ته مخه‌کړه اود تیږو او ختو کورونه‌یی جوړ کړی دی. دگر بزو کورو نــه

ددانګا م او نوروسیمو پښتنو تـه ورته‌دی. همدا ډو ل‌ددوی دبز ګری اوزار دنورو پښتنو دبز ګر ی د اوزارو نه توپیر نه لری . ګر بز د شجر ی په لحاظ دوزیرستا ن دقومونو څخه دی اوژبه او نر خ‌یی هم دو زیرو په‌شان دی . دګر بز وهغه برخه چی په غرو نو کی اوسیږ ی ځمکه یی کمه اود لرګیو دخرڅو لو له‌لاری چی میرا مشاه او یاخو ست ته‌یی راوړی ژو ندکوی . دسمـــی ګر بز چی دخو ست په جنو بی‌ډډه کی دګر بزو په صحرا کی‌اوسیږی‌اکثرا دهقانا ن دی. په ورو ستیـــو وختو نو کی (تر ۱۳۵۷ کال د مخه) ډیر ګــــــر بز لکه د نــــو رو قو مو نو په‌شان دکار له پاره لـه‌هیواد څخه بهر تللی دی . هغـــه ګربز ځوانا ن چی دلته پاتی‌شو ی‌دی یاتجار ت کوی چی دخو ست او میرا مشاه لاره یی په خپله‌قبضه‌کی‌نیو لی ده او یادا چی ددی لاری تجار ت په‌زیاته انداز ه ددو ی‌د او ښانو او موټرانو په‌و سیله تر سره کیږ ی . دګر بزو دکلیـــو ټولنیز او فز یکی جوړ ښت‌ددانګام اوسیدو نکو ته ورته دی‌نو ځکـه‌مونږ ددو یم وار له‌پاره دګر بز و دتشر یح څخه صر ف نظر کوو .خو داداری جوړ ښت په‌باب با ید دو مره وو یل شی چی ګر بز د خو ست دنورو قو مو نو په‌شا ن دکندی وا حدلکه ددانګام په شا ن‌نه لری . بلکی یاد کهو ل او پښی په اساس ګټه او تاوا ن کوی اویا د(ټل)* په اساس دغرو نو و یش په‌پلر ینه او په ملا تړ دواړوصورت‌نیسی چی پلر ینه دو ینی دارتبا ط

---

(*) دغه کللمه (دټله) او «ټلی»په بڼه لیکله‌کیږ ی او معنا یی دو یش یـو وا حد دی چی کله کله په دغسـی‌مواردو کی یو کلی ټله ټلی او یایو قوم په‌خوځو ټلو و یشل کیږ ی اوهره ټله دګټی او یاتاوا ن ټا کلی برخه‌وړی .دغه شکل زیا تره د پکتیا په‌ګر بزو کی رواج لری . اپر یدی بیاټل دغنمو او و ښـــو((شنی بر خی ته‌وایی)) او جمـع یی(ټلونه) دی کله چی پټی ځا ی،ځای شین او نور یی حا صل و نه لری نو وایی چی ټلو نه‌په‌کی جوړشو ی دی .ټل په لغت کی‌دملګری، قبیلی په معنا ده اود لرګو اونوروشیانو مجمو عی ته‌وایی .و ګ‌پښتو قا مو س دوه سوه شپږنوی‌یم مخ.

اساس او ملا تړ يي دد فاع اړ خ تشکيلوی .

دښو راو ك دکليو دجوړ ښت په هکله يوازی دو مره ويلای شو چې هلته يو ډول بو ټي يالو خی د ی چې لانده يي يو له بله سره او بـی او کله چې دختو ديوالو نه جو ړ شو ل نو يواز ی لوی ټينګ لر ګی دکوټي په منځ کی په او ږ د و تيرو ی اود پاسه ور باندی د غه لو خو او بدل شوی کوړی اچوی او په هغو دپاسه څه نور بوټي اچوی چې خاور ی او ختي و نيسي.دکوټي چت او بام په اوږ دوا لی بيضو ی شکله وی او سطح يي دګر بز و،سالار زو او يانورو پښتنو دکوټو په شان هواره نه وی. همدا سـ ـــی دکند هار او ياشما لی افغا نستا ن دکورونو په خير ګنبد ی هم نه وی.

که سړی دکوټي په دننه کی ناست وی نودا ډول شکل و ينی:



دښو راو ك ادار ی قبيلو ی جو ړښت لکه څنګه مو چې دو يش په فصل کی راوړی دی ټول په او ښ ـ صور ت نيسي . يعنی ګټه او تاوان لکه داو بوپه شا ن په او ښ ويشل کيږ ی.

په ښو راو ك کی يواز ی بړ يڅ او په ګر بزو کی يوازی ګربزپـــه خپلو سيمو کی او سيږ ی .ددو ی په منځ کی د دانګام په شان پر دی قومو نه نشته.

**دانګام :**

په‌دی دره کی‌دری قبیلی سارلارزی، ما مو ند ، مشوانی او دری‌وا ړ ه ګرو پو نه ورد ګ ، سوا تی،ګبری او د ساپو پاچاهانو (سیدانو)صاحب زاده ګانو او انکیانو کور نـــــی‌او سیږی . ګجراو سالار زی لـــه نورو قبیلو ، ګرو پو نواوکورنیو دمخه دلته میشت شوی دی.

**سالارزی :**

سالارز ی دباجوړ په‌لرا مد ک،برامدک، لرسدین‌او‌برسدین ، ښنار، ناو ګی ، کوټکی ، الیکی او چار منګ ،کی میشت دی. په‌سالا رزو ک ی‌دبرم اولا ده بر م خیل ا و دهلال اولا ده هلال خیل ددانګا م او اسمار دتاریخ سره ارتبـــا طلری (۱)

دبرم دری زا من‌وو چی مشر یی‌منصور خا ن منځنی الله‌یار خا ن او کشر یی مدد خان‌و . منصو رخان په ناو ګی ، اله یار خا ن په

---

(۱) دماما صفدر او خارا حاجی‌صا حب دو ینا له مخی دسالا رزو دلرا مد ک په غونډ ی نو می کلی‌کی دکا مرا ن‌په‌نوم یو ســـــړ ی او سیده . په دی کلی کی دد ه دیوی میر منی‌څخه دوه زا مـــن هلال او بر م(ابرا هیم)وزیږیدل. دزلمیتو ب په‌و خت کی دو ی‌د پلار سره د بز ګری کـــار کاوه‌اود پلار دمړ ینی نه‌ورو سته هـــم‌د دبز ګری په‌کار بو خت وو . یوه‌ور ځ برم په‌پټی کی یوی کو لـــه یوملنګ په آس سپور د پټی پـــــه‌څنګ‌کی و درید. ملنګ بر م تـــه وویل(ولاړ شه‌و ګره را ته‌راوړه). (په شړو مبو کی یخی وریجی چی یوځای شی و ګره ور ته و یـــل کیږ ی) برم ولاړ او له‌کور نه یی وګره راوړ ه .ملنګ دو ګری‌کو ټډی (دلرګی کاسه) په‌لا س کـــی ونیو له او و ګره یی په ځمکه‌توی‌کړه . برم دری ځله له کوره‌وګـــره راوړه او ملنګ دری ځله توی‌کړه‌خو برم هیڅ بدعکس العمل و نه ښنود . ملنګ لا سو نه پورته کړل‌اوپه دعا کی یی وویل :(برمه! خدای دی دټولو سالار زو خان کړه). له‌دعا نه وروسته ملنګ ولاړ او برم په خپله یوی بو خت شو. دیوی کولو په‌وخت کی هغه په پټی کی

ښار او مدد خان په پښداو اسمار کې او سیدل(۱) دری پیړ ی دمخه ددانګام اصلي او سیدو نکی کافر(او سنی نور ستا نی)وو.دسالا رزو په‌برسدین دچورك په‌کلی کــــې دسید علی تر میز ی داولاد ی‌څخه یو روحانی شخصیت سید شاه نور(چورك بابا) دکافرو په ضــدد جهاد اعلان وکړ اوده داعلان سره‌سم دبرم خیلو او هلا ل خیلـــو لښکر راټول شو اود چور ك‌با با په مشری یی ددانګام دجنوب ـ ختیځی خوا دلیتهی له‌کنډو څخـــه دکافرو په ضد جګړه پیل کړه(۲). دېر له پسی او ږدو جـــګړ و وروسته سالار زو د دانګام پــــه شمو ل اسمار او داسمار شا و خوا سیمی له کافرو څخه‌و نیو لی

---

دسروزرو خزانه وموند له.هلا ل پټی ته‌را غی برم ور ته ټوله‌کیسه وکړه هلال په ملنګ پسی وزغاست‌ملنګ ته ورسید . ملنګ ور تــــه وویل (د سالار زو خانی می بــرم ته ور کړه .ستاپه خو له دی‌خدای برکت کړی . او لسی جرګی دی ټو لی ستاپه خو له فیصله‌کیږ ی او پـــه کـــو مه جـــر گـــه کــــی چـــی ته او ستـــا او لاده نه وی دغه جر ګه دی نه‌جوړیږ ی.د ملنګ له دعاورو سته برم ځمکـــی وا خیستی نو کرا ن یی‌و نیو ل او لس ته یی دوډ ی ور کو له او په‌ټول باجوړ کی دخان په‌نوم‌مشهور شو . ده دخپلی خانی دپرا ختیاله پاره دشاو خوا او لس سره پــه‌جګړه لاس پوری کړ او له ځینو ګاو نډ یو او لسو نو څخه یی‌ځمکی ونیو لی . د ملنګ ددعا په‌بر کت په‌قو می جر ګو کی ټو لی اولسی‌شخړ ی دهلال په خو له فیصله کیدی او اوس هم دده اولاده‌هلا ل‌خیل او لسی شخړی فیصله کوی او په‌ټو لوقومی جر ګو کی‌د هلال‌خیلو فیصلی منطقی اود او لـــس دمنلووړ دی.

(۱) محمد شعیب مشهور پـــه‌جان صا حب: دباجوړ تار یخ : ناچاپ.

(۲) خلك دجګړ ی دپیل اوپای تاریخ دری پیړ ی مخکی اټکلو ی، اما هیڅ‌ها ته صحیح معلو ما ت‌نشته‌چی جګړی څو کاله دوام کــړ ی دی.

او کافر یې شمال او شمال‌لویدیځ‌سیمو ته‌و شړل . دبشپړ بریا لی توب په‌پای کی چورك بابا هلال خیلو ته او لسی ځمکه ، مدد خان ته دخانی ځمکه ، میاء ملا اوکسب‌گروته یې خیری ورکړی . د هلال‌خیلو دلښکر ډیر غړ ی بیر تـــه باجوړ ته ستانه شول او هـــر ی پښې ځینی کو رونه په‌لوی‌گوریګا، وړو کی گو ریگا او په‌لر دانگام ، بیداد ، ډیر کلی ، سیا نی او کـار کوټ کی پریښودل چی د هلا ل‌خیلو داو لسی ځمکو سر پرستی‌اود غرو نو ساتنه وکړ ی.له دغه وخت را هیسی دباجوړ دبرا مدك‌او برسدین هلال خیل په دانگا م او با جوړ کی ځمکی‌لری‌او د غرونوځنگلو نه هم گټه دی (۱).

**داسمار خانی :**

دبر م خیل مدد خا ن دخا نـی‌مر کز اسمارو اودده اولا دی‌پر له پسی له‌د ی مر کز څخه ددانگا م‌دره ، شیگل ، شنگر او شاوخوا نوری سیمی اداره کو لی.خانا نو د مشواڼو ، گجرو ،شینوا ر و او نور ستا نیو په مقابل کی د خپل‌سیاسی قدر ت دساتلو له پاره‌په قو می لحاظ په‌سالار زو اوماموندواو په‌شخصی لحاظ په او لســـی او کور نیو نو کرانو اتکاکو له سالار زی او ما موند د خان‌قبیلوی

---

(۱) موږ په دره کی وو چی دعقرب په‌پنځلسمه نیټه دمتر قـــی مالیی هیات راغی. هیئت هلال  خیلو او ما مو ندو ته دمتر قـــی مالیی فور می ورکړی . هـــلا ل خیلوور ته خپل مشکلا ت دا سې وړاندی کړل (( موږ په‌با جو ړ کی‌اود باجوړ هلال خیل دلته ځمکـــی لری . که موږ په‌فور مو کی دهغوی‌ځمکی په خپلو نو مو نو کړوهغوی به‌په‌باجوړ کی زموږ ځمکی په زورونیسی . که موږ فور می دهغوی په‌نو مو نو خانه‌پری کړو هغو ی‌په‌باجوړ کی او سیږ ی موږ ته به‌د مالیی مجرا نه‌راکوی . په‌باجوړ کی‌زموږ ځمکی ډیری دی . مو ږ نـــه غوا ړو چی دمالیی له پاره یا خپله‌ډیره ځمکه له‌لا سه ورکړو یا په ځان دهغوی دمالیی تاوا ن ر ا  واړوو )) هیئت د مشکلا تو له‌پاره فور می ور نه‌کړی.

قوت او او لسی او کور نی‌نو کرا ن یی دخانی قوت وو. خا ن
په اسمار ، شیگل ، دانگام‌اونوروځایو کی خصو صی ځمکی‌درلودی.
هغه به دسالار زو ، ما مو ندو اوشینوارو ځینو و فادارو مشرانوته
خپلی ځمکی یاپه‌لږه اجاره ور کو لی یایی‌ځینی مشرا ن دټا کلی
غلی په مقابل کی دځمکو ناظران مقررول یابه یی ځینو ته ددو ی‌د
خدمت او و فادار ی په مقابل کی په‌کور غله او یابه‌یی دانعام (۱) په
تو گه څه اندازه ځمکه‌ور کو له. همدا رنگه ځینی روحا نـــــی
شخصیتو نه دده سیری خواره وو. په‌وا قعیت کی دغه‌ډول مشرا ن‌په
غیر مستقیمه تو گه دخان انعا م‌خواره یانو کرا ن وو اوروحا نـــی
شخصیتو نه هم دهغه په ملا تـړ او طر فدارانو کی راتلل. او لسی
نو کرانو په‌قو می جر گو کی دبرخو اخیستلو، داو لس تر مـنځ
دشخړ و داوارو لو او په سیمه‌کی دامنیت دساتلو علاوه دخان له‌پاره
په‌لا ندنیو مالیاتی چارو کی هـم مر سته کو له:

**دځمکي مالیه:**

دخانی دادار ی لا ندی په ټو لو او لسی ځمکو کی داو ړ ی اومنی
په‌فصلو نو کی په لس منه غله‌یو من خان ته‌ور کول کیده اودغه غله
به‌یی ور ته را ټو لوله.

**قلنګ :**

دمشوانو ، گجرو او نـــو روما لوالوڅخه‌به‌یی‌دځړ ځایو نودڅاجازی
په مقابل کی په‌کال کی دوزو ، میږو، غوږی ، وړی اونور دقلنگ
په‌نوم راټولول.

---

(۱) انعام بخښش ته وا یی .دانعام ځمکه دیو نفر دخد مت په
مقابل کی بخښل کیږ ی اماد غه‌ځمکه دانعام خور په خصو صـــی
ملکیت کی نه‌راځی څه‌و خت چی‌انعام خور د مشخصی و ظیفی‌څخه
محروم شی او یاخان یی په‌وفا داری شك وکړ ی، خان دانعا م
خور څخه دانعام ځمکه اخلی اوبل‌چاته یی‌ور کوی .داو لسی‌نوکرانو
یاد انعام خو رو عنعنه اوس هم په‌باجوړ کی ژو ندی پاتی ده .

**وار :**

دخان له پاره پر بيگار برسيره دوار په نا مه په هر ځلمی نيمه افغانی محصول ټرل شوی واودوار محصول به په کال کی او لسی نو کر ته را ټوليده او هغه به خان ته ور کاوه.

**گز:**

داو لس داو سيدو دکوټوباموته په اندازه کيدل او په هر گز به يې په کال کی خان ته يوه عبا سی (ديرش پوله) ور کوله.

**تنبه گړب :**

دهر کلی او بانډ ی دکورو نوتنبی(درواز ی) به شميرل کيد ی او دتنبه گړب په نامه په هره دروازه به نيمه افغانی محصول و.

**سلا می:**

دخانی دننه ځمکه وال اومالوا ل مکلف وو چی داطا عت او وفادار ی دښکاره کولو او اثبا ت له پاره په کال کی يو ځل د سلا می په نامه د سو غاتونو سره دخا ن ليدو ته لاړ شی . که څو ك به دځينو معذرتونو له کبله په خپله دخان ليدو ته نشو تلای دوی به سو غاتو نه د خا ن او لسی نو کرانو ته ور کول . د سو غاتونو نو عيت او انداز ه ، معلو مه نه و ه . نغدی پيسی غوړی، پسو نه ، شات ، غله اونور دسلا می په نا مه منل کيدل.

دخان شخصی نو کرا ن به يا محای او يادنورو ځايو څخه راغلی بدی دار خلك وو.

ددوی اکثر يت به تکړه ، زړ ور، جنگيا لی اود خپل و خت په معا صره و سله مجهز ځوانان وو .ځينو نو کرانو به په کور او بهر دخان دخان ساتنه ،ځينو به دهغه دخصو صی ملکيت څار نه ،ځينو به دحجری او ميلمنو پالنه، ځينو به دخان دمالونو پا ملر نه اوځينو به دخان او او لس تر منځ دڅستاز گری کارونه کول .ټول نو کرا ن يو شا ن نه وو، بلکی ددوی ترمنځ د دريځ په لحاظ مر تبه ييزه لړی (هيرار شی) مو جوده وه هغو نو کرانو چی دخا ن په کور نی کی

یې دخد مت ډیره موده تیره کړي وه او خپله و فادار ي یې په عمل
کې ښودلی وه خا ن بهور ته د منلو نو کرانو په توگه د خپلې کلا
شاو خوا کورونه ورکول اود منیاو اوړ ي په فصلو نو کې هغوی
ته ډیره غله ورکول کیده ،اکثره ناواده نو کرا ن به په بر جو نو او
مور چو کې او سید ل . په خا نی کی دننه دیاغیانو ، غلو اود خا ن
دامر څخه سر غړوو نکو په ضـدشخصی نو کرا نټکوو نکی قواوه
او په وا قعیت کې دوی دخاند ګان خصوصیاودسیاسی سلطی
ساتندوی وو . بز گرا نو به دخان لهباره بیگار او نور درا نـــــده
کارونه کول اماځهو خت چی بـــهجگړه پیښه شوه بز گرا ن بهلکه
دشخصی نو کرانو پهو سله وا لهقوابدلیدل او پهجگړو کی به یــی
برخه اخیستله.

**دخاني پاې :**

سپه سالار غلام حیدر خا ن ځرخی دکافرستا ن(نور ستا ن )
دایل کولو له پاره پهکال ۱۸۹۵ کی کو نړ تهرا غی . هغه پهد ی
وخت کی داسمار دخانی مر بو ټوله سیمه و نیو له ، خانی ماتــه
شوه داسمار خان باجوړ تهو لاړ اوټو له سیمه دمر کز ی دو لت د
ادار ی سیستم لا ندی راغله اودده په امر په اسمار کی عسکری چوڼــی
جوړه شوه . دخان ځینی ځمکــی په او لس وپلور ل شوی ځینی یی
هغو خلکو ته چی دکافر ستا ن په جگړو کی یی فعا لهبر خه اخیستی
وه و بخښل شوی اوځینی ځمکــی دسر کاری ځمکو پهنا مه داسمار
دعسکری حکو مت ملکیت وگرزیدی. همدا شان له دی سر کاری ځمکــو
څخه اعلیحضر ت امان الله خا ن هغو خلکو ته ځینی ځمکیو بخښلی
چی داستقلا ل دجنگ په دو را ن کی یید(ارنوی)(۱) پهجگړه کــــی

(۱) ارنو ی دبریکوټ ختیځ تهپرتهسیمه ده پهکال ۱۹۱۹ کـــــی
دخپلوا کی دجگړ ی په دورا ن کیله چترا ل څخه د مهتراوانگریزانو
پوځو نه ارنو ی تهراغلل چی له دیځای څخه بریکوټ او اسمارونیسی.
دکونړ او باجوړ او لسو نه هــــم دلنه راغلل اود سختي جگــــړ ی
وروسته یې د دښمن پوځو نه پهشاوتمبول . خلك دی نښتیتهدارنوی
غزاوایی.

برخه اخیستی وه اوځه څمکه دنغدو پیسو په مقابل کی په خلکو خر څه شوه. او س هم هلته دسر کار ی څمکو پهٔنا مه څه ځمکی شته.

**ما موند:**

ما مو ند دو ینی او قو میٔارتباطپهٔلحاظ دترکانی «ترکلانی»اولس یوه قبیلهٔده. دماموند و لوی اکثر یتپهٔ باجوړ کی دی . ددو ی ختیځ تـه سالار زی ، شما ل ته دانگا م اوشمال لو یدیځ تهٔیی دشوړ تـن او مرور یٔدری ، لویدیځ تـــه چار منگ او جنوب ته یی د ښار ریاست پروت دی ،ټول ما مو ند دلویو او وړو ما مو ندو پهٔنو مو نو ویشل شوی دی . لوی ما مو ند دما مو ندو دسیمی جنوب ختیځ او جنوب لویدیځ ته او واړ ه ما موند،شمال او په لویدیځ کی میشت دی. په ختیځ کی دلویو ما مو ندو ا وسالار زو تر منځ برید (پو له)د ملا سید غر دی اود لویو او وړو ما مو ندو تر منځ برید لوی خو ړدی. لوی ما مو ند دمشری کور دی اودما مو ندو مشهور او لسی ملکا ن عبد الحکیم او خانزا ده په لو یـــوما مو ندو کی سام الدیم خیـــــل دی (۱) د لویو ما موندو ملکان دقبیلو تر منځ او لسی شخړ ی د پښتو نو لی په اساس فیصله کوی.دلویو ما مو ندو ځینی خیلونه ، د مرور ی په دره کی اوسیږ ی. وا ړهٔماه ونددبړوزو ،برم کازو اواوریازو څخه متشکل دی. په باجوړ کـــیدبړو زو او برم کازو تر منځبر ید هابت پښه دبړو زو او اوریا زو برید دخر کی لوی خوړ اود اور یازو

---

(۱) عبد الحکیم ملك د محمد امین زوی او دفتح خان لمسی دی. دخانزا ده ملك پلار سیف الملو ك دی دوی لری تر برو نه دیٔاو په ختهٔ کی دواړه سام الدین خیلٔدی. دقاضی گل دو ینا له مخی دوه سوه ځلویښت کاله مخکی داله یار خا ن کور نی دلویو ما مو ندو سیمــــه و نیو له اودوی یی و شړل. دو هسوه شل کاله مخکی سام الد یـن نو می ما مو ند دبرم خیلو څخــه خپله څمکه بیر ته و نیو له . مـلا عبد الله نو می یو روحا نی پیر اودبرم کازودملاپه کلی کیٔاوسیده،ده سام الدین ته دعاو کړه چی خدا یٔدی دسام الدین (سام)پهٔهرچا بـر لری. ددی دعا پهٔبر کت سام الدین دلویو ما مو ندو دمشری کور شواو له دوه سوه شلو کلو را هیسی دوی دقام مشری کوی.

او برم کازو تر منځ بریدد مخی خوړ دی.

دوړو ما موندو ځینی خیلو نه پهشوړ تن، دانګام اود پیچ در ی په وټه پور کی میشت دی او برسیره‌پردی دما مو ندو کورونه دکو نړ ولا یت پهسیمه کی هم پرا ته دی.واړه ماموند د سالارزوځخه وروسته دانګام ته‌راغلی دی . دوی دجنو ب‌له خوا دمالځرو نو (ځړځایو نو )په هځه دګو ریګا غرو نو ته راو ختل‌او دلته یی بانډی جوړی کړی. د ما لدار ی سره یی دګو ریګا پهدره‌کی ځمکی وا خیستی اودو خت په او ږدو کی هلته میشت شو ل . دبړدانګام د ملك فیض طلب (بادین- خیل) غور نیکه شیر داد خا ن پهمروره کی او سیده اود ځمکی پچه (برخه) یی هم په مروره کی وه . او س دوی په دانګام او ګو ریګاکی میشت دی اود ګو ریګا ما مو ند دزمکوا لی برسیره رمی هم لری.

**مشوانی :**

دمشوانو (۱) اکثر یت د دیر اوجندو ل پهسیمو کی میشت دی . لومړ ی ددوی ځینو خیلو نو د ځړځایونو په هځه خپلی‌رمی د (دښشی کنډو) دلاری له دانګام نه شما لـی‌غرو نو ته‌راو ستلی .یوسلوپنځوس کاله‌پخوا دوی ددر ی پهختیځ ا وشما لی غرو نو کی دځړ ځایو نو شاو خوابانډی جوړی کــړی . دپسر لی د پیل نه دمنی تر پایه به هغوی په بانډو کی او سید ل اوبیا بهد رمو سره د جندو ل درو تـه ښکته کیدل . سل کاله مخکی د مشوانو ځینو خیلو نو خپلی ر می دمنی‌په‌پا ی‌کی دجندو ل په ځا ی‌قاسم او زوړ برول ته را ښکتـــه کړی.په دی‌و خت کی دغه دوا ړه‌کلی نه‌وو ، بلکی لو مړ ی ځینـــو شپنو دلته کو رونه جوړ کړ ل اوپه‌ژ می کی به‌په کورونو کی‌اوسیدل. ور پسی یی دکورونو شاو خوا ناآباده شاړ ه ځمکه آباده کړ ه، کار- ینو نه (مینی ) یی جوړ کړل او تقر یبا ، دلسو کلونو په دوران‌کی څو کورونه پهکلیو بدل شو ل . دسلو کلورا هیسی دوی دشما لی غرو نو پهلمنوکی په شاړو ځمکوکی‌بانډی جوړو لی چی او س دقا سم

(۱) وګوری د مشوا نـــــو دخیلونو ګراف.

او زوړ بروول بر سیره د مشواڼــو کورو نه او کلی دغره په لمنو کی ددری تر خو لی اسمار ته نږ د ی‌رارسیدلی دی.

مشوا ڼی دځینو کو رونو نــــه پر ته په عمو می تو گه نا دار ه او لس دی. ځینی شتمنی کور نی‌دځمکو سره یوځای ما لدار ی ، تجار ت او ما مور یتونه لری .ددوی‌دنا دارو اکثر یت ځینی خلك د سالارزو او ما مو ندو شپا نه اوبز گر دی ،ځینی دغنمو اواوربشو دکر لو نه وروسته دمیزان پــــه‌میاشت کی دکار او غر یبی لــــه پاره جندول ، باجوړ اود کو نــړولا یت مختلفو سیمو ته ځی. دلته دوی دجو ما تو نو لر گبانه (۱)اویاپه‌کلی کی همسایه کیږ ی.همسایه مشواڼی په‌کلی کی داوسیدو کوټه‌پیداکوی . دد وی نارینه دغرو نو ښخه لرگی راوړی چی یو گیــډ ی(دشابار) په یوه من جوارو او یا د هغو معاد ل ځلو یښت افغا نیوخرخوی. دنو رو قبیلو په‌تنا سب په مشواڼو کی دلیږ دید نی عملیه‌ډیره ده . ددوی نیستمن خلك د منی په‌پای کی دکو رو لږ ساما ن‌اود خوړ لو مواد په خروبارو ی ، ښځی او نارینه یــــــــو ځــای‌دجندول، باجوړ او کونړ په لور روان وی چی دپسر لی په میا شت کی‌بیرته دری ته راستنیږ ی .

**وردگـــــــــك:**

وردگ په ډله ییزه توگه د لوی‌گو ریگا په کلی کی میشت دی .د ځینووردگو کورونه دجندو ل دگا نشال ښخه دلته راغلی دی چی دگانشال له‌سیمی ښخه را غلــــوورد گو ته‌گانشالیا ن هم و یــــل کیږ ی . دگا نشا لیانو مشران‌وایی‌چی ددوی اصلی ټاټو بی دورد گو سیمه ده او په ختـه مایار دی . تقر یبا یو سلو او یاکلونه مخکی یوشمیر وردگ ددیر سیمی تـــــه را غلل . ځینی یی د دیر په‌سیمه کی پاتی شو ل او یوازی دجندو ل گانشا ل ته را غلل . دگانشا ل ښخه دوردگو ځینی کورو نه یو سلوڅلویښت کاله پخوا داسمار د

---

(۱) دژمی په سړو کی او لس‌د جو ما ت دتودو لو له پاره لرگبه (جمع لرگبا نه) نیسی .لر گبه له‌غره ښخه لر گی راو ړ ی اود کلی خلك ور ته دمیاشتی دیر ش منه‌غله اود اوسیدو کوټه ورکوی.

خانی په دوره کی د دانګام در ی ته راغلل . دراتګ نه‌ورو ستـــه دوی دخا ن اود سالار زو داو لسی ځمکو بز ګری کو له. دو خت پـــه تیر یدو سره دو ی په‌ګو ریګا کی شاړ ی ځمکی آباد ی کړی‌اوځینی ځمکی‌یی په نغدو پیسووا خیستلی‌اوس یو شمیر وردګ دخپلو ځمکو او ځینی دسالار زو دځمکوبز ګری کوی. یو شمیر ورد ګ اد عـــا کوی چی اووه نوی کاله پخوا ددوی پلرو نه دامیر عبد الرحمن دپاچاهی پ‌ه‌لو مړ نی کال کی دورد ګو د سیمی څخه دلته راو تښتید ل . ددوی پلرو نه په ختهه مایار دی .دراتګ نه‌وروسته داسمار خا ن‌دوی ته په‌ګور یګا کی ځمکی ور کړ ی‌او دوی دګانشا لیانو وروڼو سره‌یو ځای هستو ګن شو ل . دوی د خپلوځمکوبز ګری په خپله کوی . په دو ی کی ما لدار ی بیخی لږه ده. دوی دسالار زو او ما مو ندو سره بیخی خلط شوی دی . دژ بی دلهجی په ګډو ن ددوی دژ و نـــد ټول اړ خو نه دسالار زو اوماموندو تراغیز ی لا ندی راغلی دی. سره له دی هم سالارز ی دوی ته په قبیلوی ارستو کرا سی کی لـــه ځانو څخه کښته د همسا یه پـــه نظر ګور ی.

## سوا تی :

په‌خوار لسمه پیړی کی سوا تی‌قبیلی له دلزا کو څخه دسوات‌وادی نیولی‌و ه او په‌شپاړ سمه پیړ ی‌کی دیو سفزو دراتګ په وخت‌کی سوا تی قبیله په سوات کی‌میشت‌وه. یو سفزو له سوا تی قبیلـــی څخه سوا ت‌و نیو چی د بشـــپړ بریا لیتوب ورو سته ځینی‌سواتیان دیو سفزو بز ګرا ن شو ل اوځینی‌داباسین اخوا د هزاره سیمی تـــه ولاړل(۱) ځینی سوا تیا ن‌دسوات‌ګـاونډ یو سیمو دیر جند و ل او باجوړ ته راتښتید لی وو او ددوی‌یو شمیر کور نی دسالا ر زودبری نه وروسته تقر یبا یو سلو اتیـا کاله‌پخوا د دانګام دری ته را غلی دی. ددو ی شمیر د دانګام په‌کلی‌اود ګور یګا په دره کی ز یات دی

(1) Fredrik Barth: Political Leadership Among Swat Pathans: University of London; the Athlone Press; 1970, P. 7.

اود سوا تیانو ځینی کور نی ددری په مختلفو کلیو کی خوری ور ی اوسیږ ی . دوی خپل هو یـــت له لا سه نه دی ورکړی.

او س هم دسوا تیانو په نا مه بلل کیږ ی . اکثره سوا تیا نخپلی ځمکی او ما لدار ی لری اوبی ځمکی سوا تیا ن دنورو بز گران دی . سره له دی چی دسوا تیانـــــواقتصاد ی او اجتما عی روا بـــط دسالار زو او ما مو ندو غو ندی دی اماسالار زی او ما مو ند یی خپل سیالان او مساوی نه گڼی او دوی ته هم د همسا یه په نظر کتـــل کیږی.

**گبری:**

ددانگام خلك دگبرو پهبر خه کی دوه نظر یی لری . دځینو په نظر پهشپاړ سمه پیړ ی کی چی ترکاڼو دباجوړ سیمه نیو له دبا جوړ پـه گبر نو می ځای کی گبر، یاکافران او سیدل (۱)

څه و خت چی تر کاڼو یاترکلاڼودگبر سیمه و نیو له دگبراوسیدو نکی یی مسلمانا ن کړل چی اوسنی گبری دگبر او سیدو نکو اولا ده ده. دځینو په نظر څه و خت چـــی تر کاڼو دگبر سیمه و نیو له دگبر اوسیدو نکی کافرا ن دباجوړ شمال دانگام او نورو درو ته وتښتید ل. او په گبر کی کافرا ن پاتی نه شول. دباجوړ دځمکو دو یش په و خت کی دسالار زو یوه خیل ته دگبر سیمه په ویش کی ور سیدله چی دو خت په تیر یدو دغه خیل دځای پـــه ارتبا ط دگبرز په نا مه شهرت پیدا کړ. ددوی په نظر گبری په ختـــه سالارز ی دی اما دځای په ارتبا ط ور ته گبری ویل کیږی.

گبری دسالار زو سره یو ځا ی دانگام ته راغلی دی اودسالا ر زو سره یو ځای او سیږ ی .اکثر یت خپلی ځمکی لری او نیستمن گبری دگبرو ، یا هلال خیلو بز گر ی کوی. سالار زی ور ته دسیا ل او مساوی په نظر گور ی .

---

(۱) دکوټ په سیمه کی گبر یاکافر متراد ف استعمالیږ ي ،

**ساپي:**

دساپو قبيله دکو نړ ولا يت د پيچ ، باډ يل ، ديوګل ، مزار او شو نکړي په درو کي د نر نګ، څو کي او نور ګل په سيمو ا و د مهمندو په‌کندهار و کي‌اوسيږ ي.دساپو قبيله د ګـر بز ، و ديراو مسود په نږ مو نو په دريو خيلونو ويشـل شوي ده.

دبر دانګا م جنوب ته دآهنګرانو په‌کلي کي دساپوکورونه پرا تـه دي يوسلو پنځه کاله پخوا نا صرساپي له خپلي کوراني سره د پيـچ دري دشمو ن له‌کلي څخه دحضرت‌علي خا ن دخاني په دوره کي‌دانګام ته‌راغي اود لته يي په شا ږ ځاي کي چهله خانه جوړ ه کړ ه‌اوچهڼه شو . په دي و خت کي دآهنګرانو کلي نه‌و . حضر ت عليخا ن‌ددغه روحاني شخص د راتګ نه خـبر شو او په خپله ور ته را غي. خان ورسره وکتل اود ليدو وروسته‌يي‌هغه ته دآ هنګرانو دکلي نږ د ي ځمکه دخيري په نا مه ورکړ ه اوخان به هرو خت دهغه دليدو لـه پاره راته. نا صر دآ هنګـــــر ي (پښګري) کسب کاوه . پـــه د ي وخت کي د دانګا م په شمال کي‌دپښتنو او کا فرو (نور ستا نـــي) تر منځ جګړي رواني وي او هغه‌به‌پښتنو ته توري او غشي جوړو ل او په خپله يي هم په جګړو کـــي‌برخه اخيستله. نا صر ديوروحاني شخصيت په تو ګه د آ هنګر باباپه‌نا مه شهر ت و مو ند، درا تګ نه‌ورو سته هغه لس کا له ژوندي‌و او په يوه جګړه کي مړ شو او خان ور باندي دآ هنګرانو په‌کلي کي زيا رت جوړ کړ (۱) دآ هنګر

---

(۱) خلك د آ هنګر بابادژو ند په دورا ن کي اود هغه د مړيني نه وروسته دده دکرا مت په باره‌کي ډيري افساني لري . ناروغ‌نارينه ښځي او ما شوما ن هره پنجشنبه دهغه زيار ت ته‌ځي اودده زيار ت دتبي دښه کيدو له پاره ډير شهرت لري. همدا شان دشاو خوابزګران دده په زيار ت کي جوار ، غنـم، يوي اولا روي درانده بارونه ږ دي اودده دزيار ت بهر خپلي ميږ ي، وزي او غوايان تړي .دخلکو پـه عقيده هيڅوك د آ هنګر بابا له زيار ت څخه غلا نه شي کولا ي او که‌څوك دغلا هڅه‌و کړ ي هغه يا ړنديږ ي او يا يي لا سو نه او پښي فلج کيږي.

بابا اولا ده دروحانی کور نی ا وپښتنو دواړه خصو صیات لری .د
روحانی شخص داولا دی په تو گه ددو ی در ناوی کیږ ی او دپښتنو
په حیث ور ته د سیا ل اومساو ی په نظر کتل کیږی.

**سیدان :**

محلی خلك سیدانو ته پاچایا ن وایی . دوی د دری په څینو کلیو
کی میشت دی اماپه ټولو پاچایانو کی دگور یگا د در ی دټا نگی سید
احمد نور پاچا اودده اولا ده ډ یر شهرت لری.

دنسبو نی (شجری) له مخی سید احمدنور پاچا دسید علی تر-
میز ی (پیر بابا) داو لا دی څخه دی او ویل کیږی چی د تر میزی د
نسبو نه داسلام پیغمبر (ص) ته رسیږ ی . سید احمد نور پاچا د
ما مو ندو په سیمه کی او سیده او له دغه ځای څخه یو سلو دیرش
کاله پخوا دکا مرا ن خان دخا نی په دوره کی اسمار ته را غی .خان
یی مریدشو اودټا نگی کلی اوځمکه یی ور ته په خیری کی ورکړ ه .
پاچا دکا فرو په ضد په جگړ وکی برخه اخیسته او په یوو خت کــی
مذ هبی مبلغ او روحا نی شخصیت و. دده میر من( ټا نگه بی بی) هم
دیوی پر هیز گار ی او بزر گــی ښځی په نا مه مشهوره وه. پاچاته
ددری او باجوړ خلك را تلل او ده ته یی پسو نه ، غوړ ی ، غلــه،
چر گان او نور شیان د(شکرا نی) په نا مه راو ړ ل. دده لنگر جار ی و
او راغلو خلکو ته یی ډوډ ی ا و دشپی دتیر یدو ځای او بستــره
ور کوله. پاچا په ورین تندی دراغلو حاجت مندو خلکو سره کتل ،ددوی
مشکلات به یی او ریدل او پ ه پای کی به یی هر یو ته د هغه دمشکلاتو
دحل دعاکوله . یو سلو پنځلس کاله پخوا پاچا مړ شو او دلتــه
ښخ شو.

دپاچا اود هغه دمیر منی دمړ ینی وروسته دخلکو تگ راتگ اودشکرانی
ورکړ ه لړ ه شوه اولنگرهم بند شو.اوس ځینی خلك دپاچا ز یــارت

تەراځي او شکرانه دده په‌زیارت اچوی اود هغه اولا ده یی په وا ر اخلی(۱)

**صا حبزاد گان:**

صا حبزاد گا ن دسیدا نو پـــه پر تله دو یمه در جه رو حا نـــی کور نی دی ځکه چی دوی داسلام دپیغمبر(ص) اولا ده نه ده بلکی د هر صا حبزا ده کور نی د مشر د ریاضت او عباد ت په‌و جه دروحا- نیت شهرت مو ندلی دی. خان یا او لس دصا حبزاد گانو مشرا نو ته خیر ی ورکړی دی او او س د دوی اولا ده دروحانی پلرو نو پـه خیر یو ژو ند کوی. . دصا حبزاده گانو مشهوره کورنی په‌کوریګا کی او سیږی او په ځینو کلیو کی‌هم دصا حبزاد گا نو کور نـــی شته.

**انکیا ن :**

انکیان ناپښتانه عنا صر د ی .دوی دپیښور شخه را غلی دی .د وخت په تیر یدو سره یی خپلـه (اینکی ژبه ) له‌لا سه ور کړ ی‌ده اواوس په‌پښتوژبه خبری کو ی . دوی په کلیو کی دکلا لی ، ترکاڼی، پښګری ، او نایتو ب کسبو نـــه‌کوی او په‌ځینو کلیو کی ور تـــه خیری هم ورکړ ل شوی دی او ترهغوی پوری خیری لری چی دکلی‌له پاره کار کوی اوځه‌و خت چی‌دکلی‌کار پریږ دی او ولاړ شی کلی‌دد ه خیری بل کسبګر ته ورکوی.پښتنی‌قبیلی دوی سیـــال نه‌ګڼی او ددوی سره دښځو خپلوی نه‌کوی.

**ګوجر:**

ګوجر د هند دګجرا ت شخـــه‌راغلی هندی قبیله ده. دوی دکشمیر

---

(۱) ښځی او نارینه دپنجشنبی‌یا دچهار شنبی په ورځ دده زیارت ته‌راځی . دده ز یارت شنه‌و ښځو ته د اولا دور کولو اود ګوز ن او تبو دنارو غیو دجوړو لو له پا ر ه‌شهرت لری. د محل بز ګرا ن د لر ګی‌شخه وړو کی یوی جوړو ی‌اودده په قبر یی ږ دی.دبزګرا نو په‌عقیده څوك چی دده په زیا ر ت‌یوی کیږ دي هغه حتما دقلبـــــی دغوایانو ښښتن کیږی.

دلو یه یغ نه نیولـی د گـلگیت، سوات ، چترا ل ، دیر، جندو ل ، باجوړ اود کونړ ولا یت پهشما لختیځ ، شمال لویدیځ او جنو ب لویدیځ غر نیوسیمو او درو کـــیژو ندکوی . گو جر دبد خشا ن ولا یت په جنوب ختیځ اودلغما نولایت په شمال ختیځو غرنیوسیمو کیهم شته.

دکونړ پهولا یت کی دوه ډو له گوجر(بزگر) او(میښبه) گو جــر وجود لـری. لکه څنگه چــی ددواړو دنو مو نو څخه څرگندیږ ی دوی دما لدار ی دکسب په لحا ظ پــه دوو نو مو نو دیوبل څخه جلاشوی دی. پهکو نړ کی وزی ته (بزه)او میښی ته(میښه) وایی هغه گو جر چیپهغرنیوسیمو کی دوزو اومیږو رمی لری دوی ته(بزو گر گو جر) او هغه گوجر چی په درو کی میښی او غواگانی ساتی دویته( میښبه) گوجرویل کیږی.

دمالدارو مشوا ڼو او بز گرو گوجرو تر منځ ور تهوا لی ا و توپیر دادی چی په ما لدارومشواڼواو گوجرو قبیلو کی یو شانخیلونه پښنی او کهو ل وجود لری او پهدوا ړو کیپلاروا کی واکمنهده . دمشواڼو اود گو جرو داکثر یـــتژو ند په مالداریولاړ دی.دمیشت کیدو تر مخه مشوا ڼو او گو جرویوشا ن داسمار خان او سالار زو ته دځړ ځایو نو داجاز ی په بدلکی قلنگ ور کاوه. ددواړو رمـــی په غر نیو سیمو کی و ی اوتـــــراو سه د دواړو جا می دبانډو او کو رونو سا ختما ن یو شان دی.

---

تو پیر یی په دی کی دی چیمشواڼی پښتنه قبیله ده ، په پښتو ژبه خبری کو ی او بز گر گوجر هندی قبیله اوددوی ژ به گو جری ده. او س مشوا ڼی په دره کی ځمکه، غرو نه اوځړځایو نه لری. گوجر تراو سه خپلی ځمکی،غرونه اوځړځایو نه نهلری .دگر ز نده گرو پو نو په شکل کله یو ځا ی او کله بل ځای ته دځړ ځایو نو پسی لیږ دی او تراو سه دځړ ځایو نو داجاز ی پهبدل کیقلنگ ورکوی. گو جر در مو سرهدغرونو پهتودو سیمو کی پهبانډو کـــی او سیږ ی او ددوی ر می دری ته نه رابښکته کیږ ی . دگرز نده ـ

مهاجروپه‌توګه دګوجرو سره ددوی کور نی یوځای درو می .په‌مشوانو
کی درمو سره دکور نی دبیو لو او په ګرو پی شکل دحرکت عنعنه
نشته ، بلکی دمالدا رو مشوانــودتګ او بیرته راتګ لیاری معلــومی
دی. له بلی خوا دګو جرو بنځــی په اقتصاد ی ګټه کی فعا له‌بر خه
لری یعنی دوی دنارینه و سره په‌ما لدار ی کی دمر ستی سربیره‌د
غرو نو څخه درو ته لر ګی راوړ ی او دلته یی په نغدو روپو اوجوارو
خرڅوی چی دغه کارونه دمشوا نو بنځی نه‌کوی .

له‌بلی خوا دمینبه او بزو ګروګوجرو دکسبو نو فرق د دوا ړ و
ډلو په‌ژو ند کی توپیر را و ستی دی. دمینبه ګو جرو مینبی پــه
غرو نو کی په‌آسانه نه‌شی‌ګرزیدای‌مجبور دی چی دمینبو دمالدار ی‌له
پاره په‌کلیو کی ژو ندوکړ ی .دپښتنو په‌کلیو کی داو سیدو لــه
کبله دوی ګو جری ژبه، ګرو پی‌ژوند اود بز ګرو ګو جرو ســره
تماس له‌لا سه‌ور کړی دی او تول‌ژو ند یی دپښتنو د دود تــر
اغیزی لاندی‌را غلی دی . د و ی ډیری مینبی اوغواوی لری او ددی
ما لدار ی له‌لیار ی په محلی‌مار کیتو نو او کورونو کی غوړ ی
خرڅوی اوددوی بنځی هم په‌کلیو کی‌شیدی، مستی او شړو مړــــی
پلور ی. دنیستمنو ګو جرو لو نه‌او بنځی دشتمنو پښتنو په‌کورونو
کی مز دور ی‌کوی او همدا شا نددوی زامن د پښتنو مینبی‌اوغواوی
پیایی .

لکه چی مخکی مو ته اشار ه وشوه بز ګر ګوجر په‌باندو کــی
او سیږ ی اود پښتنو قبیلو تماس‌ورسره لږ دی سره له دی چــی
مینبه‌ګو جر دپښتنو په‌کلیو کی‌او سیږی بیا هم پښتانه ګو جرو ته
دناپښتو ن عنا صرو او همسا یه په‌نظر ګوری .

# لومړی ضمیمه

## لانجې او کشالې

دلته دپښتنو دتړو نو په رڼا کې ځینې بیلې بیلې لانجې و ړ اند ی کوو . ضمنا څرګندوو چې دتړو اشخاصو نومونه ربنتونی نه‌دی بلکې خیالی دی او پیښې واقعي‌دی.




**۱ـ لوی ګوریګا ۱۳۵۳ :**

زړور چې په قوم مشوا نی وپه‌ګو ریګا کی د ملکانو (سالارز ی) سره مز دورو .دملك دلور لنبنتی سره یې یارانه وه . لنبنتی په‌با جوړ کی واده شوی وه .دواده په او مه‌زړور لنبنتی دباجوړ نه راو ستله. هغه دوه ور ځې وروسته د شپې‌له‌خوا دزړور سره‌وتښتیدله اوبراول ته‌سره‌ولاړل . دزړور ورورګلیز ی‌ته چې په همدی کلی کی او سیده کله‌کله زړور راته .بر سیره پردی‌چې رادیو به یې جګه‌غږو له،دملکانو اودنو رو خلکو څخه به یې دوزواو غږاوو غلا هم‌کوله.

ملکانو دګلیز ی څخه څو ځلـــه وغوښتل چې دزړ ور دراو ستلـــو څخه ډډه وکړ ی .په دی‌کی یو کال تیرشو،خو زړور به همدا ســـی د ګلیز ی کره راته .بالاخره ملکا نو ګلیزی ته‌لاره‌و نیوله او مړ یې‌کړ. داچې لنبنتی دملك لور ، مګردما مو ندو ښځه وه نو ملك انکاروکړ. چې ماګلیز ي نه دي‌وژلي. اود خلکو دخبرو په‌ځواب کي به یي و یل چي

زه دده سره کارنه لرم ، هلك پوه شه او ما موند. زړ ور یوه خورپه هماغه ځای کی گنشالیانو ته ورکړی وه چ یمیړه یی اسیم نو میده.اسیم بهزړور ته په خپل کور کی چــــی تقر یبا دوه سوه متره دملکا نود کور څخه لری و کوټه ور کړه .دلبنتی اصلی میړه په باجو ړکی و مگر دلته یی هم کور درلود . هغه راغی او زړور یی دگنشالیپه کور کی دزړور دزوی سره وواژه.اسیم ما موند او ملکانو تهوو یل چی بنځه دی هم مړه کړی، خو دو ی منکر شو ل چی بنځه زموږ سره نشته . اسیم پاخیده د لبنتی ،داصلی میړه ورورییوواژه. دزړور عزیزان را غلل اود ملکانو یوه زړهبنځه یی چی دکلاد باندی دتنورپه سر ناسته وه ووژله. دا بنځــــــه دلبنتی په ځای چی اصلا باید دا مړه شوی وای وو ژل شوه.داکار چی بنځه دی وو ژل شی تراو سه پهسالار زو ، ما مو ندواومشوا نو کی نهو شوی.

دلبنتی اصلی میړه دا چیلبنتی یی مړه نهکړه نو هغه یی په شل زرهروپیپه پنهیری کی خر څـــــــه کړه.

**۲ ـ دانگام ،دمیزان اتلســــــه۱۳۵٦ :**

چشن غره ته اوولس یاشل تنه مشوانی راغلل اودما مو ندودسا ـ بندی دکلی یو سلو شپیتهوز یاو دوه صغیران هلکا ن (شپانه) یید ځانه سرهبو تلل .بل شپا نه د سابندی کلی ته خبرورکړ.دسا ـ بندی چیغه‌پسی ولاړه. مشوا نــی یی دفضلخان او نورانگل دکلاسره لاندی کړل. تاج او شیر چـــــید نورانگل یو ورور او بل یی ورا ره کیبری، چیغی تهوو یل چی تا سیمهوریځی موږ به ور نهوزی راوگرزو هغهچی ور غلل دمشوا نو سره ییدوزو په بیو لو کی لاکمك هم وکړ. مشوانو په دی وخت کی د چیغیپه خلکوډز ی هم شروع کړی. دچیغی خلکونه یو هلك چیند یر نومیده هم و لگیده . دوه کسه شپا نهاو وزی تراو سه لا درکه دی.

**۳ـ دانگام ،لوی اختر ۱۳۵۵ :** دعبد الحکیم ما موند بنځه چی دحاجي عبدا لرحیم لور ده همیشه دپلار کوږ ته ځي .بالا خره فیصله

داسی کیږی چی یابایدچی حا جی عبدالرحیم گبری خپلی لور ته نصیحت وکړی او که نه عبدالحکیم دی دخسر کره په ګړه لاړ شی. عبد الحکیم دخسر کره ځی. هلته دده اود ښځی تر منځ سوك ،څپیړه او نور پیدا کیږی . دنجلی پلار د ټوپك سره راځی . عبد الحکیم ډارېږی چی گو ندی ماوژنی ،نو د ډاره ټوپك تهلاس کوی اوپه خسر ډز کوی چی له همدی ډز سره مری. دعبد الحکیم خواښی را ځی او دی نیسی. په دی منځ کی یی خوا ښی په پیش قبضه پهسر لگیږی او دا هم لویږی او وروسته مری. تردی وروسته یی خو ښینه را ځی چی واده شوی وه ، مگر دمیړه کور ته لانه وه تللی چی هغه هم په پیش قبضه ز خمی کیږی . دو یمه خو ښینه چی را غله عبد الحکیم ته یووار پیش قبضه پهلاس ور غلی نودغه یی هم ز خمی کړه. وروسته له دی عبد الحکیم باجوړ ته وتښتیده.

گبر یو دحاجی عبد الرحیم لهپاره د سیا ڼ ښخه لښکرو کړ اودبر دانگام پهکلی کی چی عبد الحکیم او سیده ،دهغه کورته یی او روا چاوه . هرڅه ،غله دیرش زره نغدی روپی او زری سا مان پهکی وسول. حکو مت گبر یو ته اخطارور کړچی موږ قاتل ته سزا ور کوو تا سو کوم کار نهلری. کلهیی چیعبد الحکیم پهتربور ملك فیض طلب خان بانهدی ډز ی وکړی نو سالار زیو دملك طر فدار ی وکړه. پهدی وارهمدا یوکور و سو کله چی حکو مت قرار غوندی شو ، نو گبریو بیالښکر وکړ. داوار یی دملك فیض طلب خا ن دکور نی پنځلس کورو نه وسیز ل اود ملك پهکور یی یوزرو دوه سوه ډز ی وکړی.

څه موده وروسته دشلتن ، ا ومرور ی اود اسمار داو لسوا لی د سپین ږیرو جر گهراغله .جرگی داسی فیصله وکړه چی ماموندو تهچی کوم تاوان ور رسیدلی دی، هغه به دوی نه غواړ ی او گبربهپه خپل مد عی عبد الحکیم پسیگرزی اوبل چاتهبه څهنهوا یی . عبد الحکیم به خپله ښځه بیر ته اخلیاو ضامن به در وی چی وروسته له دی به د خپلی ښځی سره ښهسلوك کوی . هغه پنځهتنه گبر ی

چې دکورونو دسو لو له امله بند یان شوي‌وو خلا ص شو ل خـــو نجلی تراوسه لا دپلار په کو ر ، ناسته ده،ځکه دعبد الحکیم ځای تر او سه نه دی معلوم او بی له دی چا ضمانت هم نه‌کاوه . ملك فیض طلب خا ن‌تر او سه هم ډارین ی او دوه نفره وروسته ټوپك ور پسی وړی،دکور دساتنی له پاره یی‌ډیرتکړه او خوړ و نی (خر وړی) سپی ساتلی دی.

## ٤ ـ اسمار ،ثور ۱۳۵۵ :

تاج خپله لور وراره ته په‌نکاح‌کړه ، خو دلور میړه یی چاووا ژه شیرزمین چی دتاج تربور کیده ،غوښتل یی چی دانجلی دخپل ځان کړی. همد غسی هجدری غو ښتل چی دابنځه ځانته‌په نکاح کړی.

نجلی چی دخپل پلار تا ج پـــه‌کور ناسته وه، دپلار له خواهجدری ته په‌پنځه دیرش زره افغانی ور کړه شوه. نجلی وو یل چی زه‌هغه خوك میړه کوم چی زما د مړه‌میړه بدل وا خلی. هجدری دانجلی د موټر په‌و سیله داسمار ترپله‌پوري‌وتښتو له . هلته یی دحکو مت له ډاره دقصاب کور ته ننه ایستله . حکو مت چی خبرشو نو نجلی‌یی‌په دریم کښینوله. دجر گی فیصلـــه داسی‌و شوه چی ښځه یی بیر ته خپل پلار ته‌ور کړ ه او هجـدر ی‌خپلی پیسی واخیستلی . دلتـــه‌د ښځی غوښتنه قبوله شوه او دریغ ته‌یی په در نه‌ستر گه و کتـــــل شول.

## ٥ ـ سور کمر او کچلی۱۳۵۱:

بادام او محمدعلم دواړه‌مشوانی (علی خیل) دی. دبادام ښځه محمد علم‌و تښتو له . که څه هم ښځـــه یوازی ولاړه او محمدعلم دلته و، خو دخلکوشك په محمد علم‌وشو . جر گی په محمدعلم شپیته ز ر ه افغانی کیښودی او هم یی فیصله وکړه چی که چیر ی ښځه د محمد علم سره ښکاره شوه، نو محمد علم به دښمـــــــن وی او و ژ ل کیږ ی به.سالار زو مشوا نو تــه وویل چی دا خو دسالار زو تړه نه ده او موږ په دی کی ګډون نــه‌کوو ،ځکه‌یو سړی چی ښځـــــــه وتښتوی نو په‌سالار زو کی مر گونی دی او تاسو پیسی‌واخیستلی.

محمدعلم ددی ځای نه‌پېتېه با جوړ ته‌ولاړ . هغه یوه بله بندځه هم در لوده . دمحمد علم دغی زړی بندځی راتبنتو لی بندځه کو هی‌ته‌وا چوله او مړه شوه. یوځه موده‌وروسته‌د محمدعلم دغه زړه بندځه هم مړه‌شوه او پخپله محمد علم د بادام پــــه تحریك ؤو ژل شو . سلطان ملـك چی مو ږ ته معلو مات راکوی وایی چی‌بادام ته‌ځکه پیغور نشته چـــی محمد علم‌یی‌هم دوطن نه و تبنتاوه او هم یی پیسی تری واخیستلی.

## ٦ ـ ټانګه ١٣٣٦:

دمتین بندځه دملا نو می‌سړی سره‌جـوړه وه متین جګ شو بندځه یـی مړه کړه او ملا د خپل ورورسیف الله جان له خوا وساتل شو اومرګ ته‌یی‌ور نه‌کړ . متین راو لا ړ شو سیف الله جان یی مړ کړ. ملا د ورور د مرګ نه وروسته باجوړ ته وتبنتیده . دسالارز ی تړه داده‌چی هیڅوك گنا هکار ته‌ځای نه شی‌ور کولای(په خپل کلی او وطن کی ) نوځکه دسیف الله جا ن مر ګ د سالارزو دروا ج له مخی جا یز و، که چابندځه و تبنتو له او یایی د کومی بندځی سره جنسی معا ملــه لرله هغه مر گونی دی اؤ کـــــه خلاصه شوه بایده دی چی و طن‌ته رانه‌شی.

## ۷ـ دانګام ـ قوس ١٣٥٥ :

منه‌ی دغفار سره په‌دانګام کلی کی همسایه و اود غفار ناسکه ماما هم‌کیده . منه‌ی دباجوړ نه‌دانګا م ته‌بنځه راتبنتو لی وه. ورو سته یی دغفار بندځه ددانګام نه‌باجوړ ته وتبنتو له داچی دغفار بندځه‌دباجوړ وه نو منه‌ی په‌باجوړ کی دخپلـــی نوی خوابنی سره‌دیره شو . دغفار بندځه چی منه‌ی باجوړ ته‌ورسو له نو یوه میاشت‌وروسته یی لورپیدا شوه. داچی غفار دمنه‌ی په‌و ژ لو کی‌کوښښ نه‌کوی، نو خلك ور ته بی همته او بی غیر ته‌وا یی ، همدا ډول څوك په‌لمانځه کی په څنګ نه‌ورسره دریږی.

په مقابل کی منه‌ی هم څوك دځانه سره نه پریږ دی ځکه نمك حرام یی‌بولی. او تبنتید لی بندځه‌هم دپلارګنی کره نه‌شی تلای ځکه

نام بدي به ريي پلارګني ته ورپه‌غاړه کړي وي.

**۸- کار کو ټ ۱۳۵۵:**

ګلرا م او ورور يي دجلال‌الدين غوايي غلا کړي و خو منکر شو . وروسته له هغې چې جلال الدين ختمو نه پسې‌و کړل ګلرام د کمر دسر نه‌راو لويده او پښې‌اولاسو نه يې‌مات شول .کله چې دډاکټر په دارو او در مل روغ نـــــه شونود مرګ‌په‌و خت کې يې و صيت‌وکړ چې‌غوا يي ماپټ‌کړي دي او غلا يې‌ورکړي‌ء. غوايي په اووه‌زره افغانی بيه شو او څوار لس زره‌افغا نۍ‌يې جلال‌الدين ته‌ور کړي . شپږ ز ره افغاني جلال الدين دغوايو په پيدا کولوکې رشوت ورکړي وي.رشوت هغه‌پيسې دي چې دغلا دځرك له‌پاره‌لګيږي . دسالارزو تره داد ه چې غلابه دوه ګونه ورکوي ، ننواتي‌به هم کوي او رشوت به هم‌بيرته د غله څخه اخيستل کيږ ي.

**۹- سيان ۱۳۵۵:**

محمود خپل ورور پاينده په څه‌چل او هنر سره باجوړ ته تښتوی او وروسته يې دچاپه واسطه وژني. دپاينده زوی اول خا ن نوميږ ي . دمحمود دبل ورور زامن يو شمشير او بـ ل‌ابراهيم نو ميږ ي. اول‌خان دخپلو دوو ښځو سره په‌با جو ړ کې اوسيږ ي . محمود اول خا ن لمسوی چې دشمشير او ابرا هيم په‌ځمکه دعوی وکړي اوکه چيرې اول خا ن‌ځمکه‌و ګټې نو محمود به‌يې ځيني‌واخلي . اول خا ن را ځي په‌شمشير او ابرا هيم دځمکې‌دعوی کوی .دعوی يې محکمې‌ته‌ځي پـه دې‌و خت کې دشمشيرورورابراهيم په‌بانه‌کې دی او شمشير دسيان په‌کور کې دی. دشپې محمـــــو دپاخيږ ی او خپلو ټمټو تـــــه اور اچوی . مو ضوع بايد دا ســـــې‌ښودل شوی وای چې شمشيـــــر اوابرا هيم داکار کړي دي ګو ندې‌دوی دوا ړه‌وتښتي اوځمکه محمود ته پاتې‌شي . شمشير چې داورنه‌خبريږی پاخيږ ی او غوا ړي چې‌د اور په مړه کولو کې مر سته وکړي‌مور يي دده ددې کار مانع‌کيږ ی‌او وايي چې داکوم چل دی اوتاوژني.شمشير تصميم نيسي چې خپل ، ورور ابرا هيم ته چې په بانړه کې‌دی ور وتښتي . دخپل کور نه چې

شل متره لیری ځی د محمود زوی نور محمد اودنور محمد زوی عبد-
المحمد ور باندی غږ کوی چی څوك یی ؟ دی بیر ته سوال کوی چی‌ته
څوك یی ؟اود غږسره‌ډزکوی . نور محمد دمړ میو په غاړ کـــی
لګیږ ی چی دچاو دیدنی نـــــه‌وروسته یو کار توس دنور محمد
په‌ګیډه کی ځی او مری. دنورمحمدزوی عبد المحمد بیر ته ډز کوی
او شمشیروژنی. دشمشیر مـو ر بانډی ته درومی اود ابرا هیم نه‌د
شمشیر پوښتنه کوی.دا چـــی شمشیر په‌بانډه کی نشته نـــو
ابرا هیم دشمشیر په‌لټه کی شو چی بالاخره په خو ږ ګی کـــی
دشمشیر مړی‌پیداکیږ ی .

دوا قعی نه‌وروسته محمود،اول خان او عبد المحمد یو څومیاشتی
په اسمار کی بندی‌کیږ ی اوبالاخره جرګه‌کیږ ی . جر ګی داســـی
فیصله وکړه چی که چیری محمودځلویښت زره افغانی ابرا هیم ته
ورکړی نوځمکه د محمود کیږ ی.او که‌نه ځمکه دابراهیم ده .ورو-
سته له دی ددو ی په منځ کـــی دښمنی نشته . دعوی ګیره ځمکه
دری منه تخم‌وه چی قیمت یی په‌قطعی بیه‌سره لس زره افغا نی
کیږی. نو یو خو دلته مصا لحـه‌وشوه چی بیه یی لوړه تعیین شوه
اوله‌بلی خوا دکلی ملك ډیر ی‌پیسی درشوت په ډول اخیستی وی اوهر
څومره جر ګی چی‌و شوی موضوع فیصله‌نه‌شوه .

تراوسه لامحمود ابرا هیم تـــه پیسی نه دی‌ورکړ ی اومو ضو ع
پاتی ده .وروسته له‌جر ګی نـــه‌ابرا هیم او محمود دواړه په ګډه
باجوړ ته‌ولاړل ځکه یودبله څخــه‌ډاریږ ی . په‌باجوړ کی عبـــد -
المحمد پاځیده او اول خا ن یـــی‌وواژه .قوم راپاځ یده د محمــود
دو ی ټو لی‌ځمکی یی په‌با جوړکی‌شاړی کړی.

**۱۰- کار کوټ ۱۳۵۱:**

اکرم دوی بنځی لری‌اومشوانی دی. یوه بنځه یی دجانګل د تــره
لور ده. جانګل دخپل تره له‌لور سره جوړ دی او خپل تر منځـــه
جنسی معا مله‌لری . دتره لورجان ګل ته‌وایی چی داکرم بله بنځـــه

چیر تهور که کړی. داچې اکرم جلدي ناروغتیا لري نود هغهدوهمه
ښځه دجانګل له خوا پهلوګر کـې واده کیږ ی .اکرم د خپلې ښځې
دور کولو شك پهجانګل راو ړ ی او په دی تلاش کی دی چی خپـل
شبك یقیني کړی. نو یوهورځ جان ګل دخپلی پاتی ښځی سره و ینی
جانګل تښتی او اکـرم دچړی پـه وا سطهخپله ښځهو ژنی . اکرم د
خپلی مورسره تښتی او جانګــل او خپلوا ن یې داکرم کور ته اور
اچوی اکرم دخهو خت لهپارهباجوړ ته درو مي او وروسته له هغــه
تر کستا ن تهځي او په دی لټهکی دی چی دخر ځي شوی ښځی درك
پیداکړی. اکرم او جانګل دوا ړه یو پهبل پسی ګر ځي. څلورکا له
وروسته(۱۳۵۵) دواړه په چغه سرای کی یو دبل سره مخا مــخ
کیږ ی . جانګل پو لیس ته خبر ور کو ی اواکرم نیول کیږ ی .اکرم
او جانګل دواړه خپلی اولسوا لی اسمار تهراو ستل کیږ ی.ابتدائیه
محکمه اکرم پهنهه کاله او جانګل پهڅلور کاله بند محکو مو ی . په
مرافعهکی بیاجانګل پهشپږ کا له بند محکو مو ی او اکرم ته برائـت
ور کوی. تراو سه پوری ددو ی تر منځ جر ګهنه ده جوړه شوی.

## ۱۱ـ ټانګه ۱۳۵۳ :

دمرجان زوی بهادر البـته د کوم خفګا ن له مخی دپلار څخهجلا
شو او دخپلو دوو ښځو سره ټانګی تهرا غی . دلته دکوم پاچا ســره
ګاو نډ ی شو. دلتهیې دباز ګـل دنږور سره جنسي معا ملهلرله .
باز ګل چی کله د معا ملی نـــه خبریږ ی نو یوهور ځ بهادر تــه
میلمستیاکوی اوځوا ب لیږ ی چی بهادر دی دخپلی رادیو سرهراشي.
کلهچی شپه پخیږ ی نو بها دریوه ګو لی و لی او وروسته له هغهیې
پهتبرو نو او چړو و هی او پهخپل کور کی یې وژني. دبهادر دوا ړ ه
ښځې ښکلی دي. د دواړو نه یوه ځی اود خپل میړه دوژلو احوا ل
خپل خسر مر جان تهور کوی .

---

دمانو س وا لی لهپاره انګر یزي مختلف توری په خیا لي تو ګه په
نږ مو نږ واړول شول.

مر جان علاقه داری ته عرض کوی . علا قه دار ی باز گل، اسد او صادق بندیانوی . یوه ور ځ علا قه دار کو می قضیی ته ځی او یواز ی یو عسکر دبندیانو څار نه کوی. ددی عسکر څخه دا دری‌تنه بندیا ن تښتی. مر جان په‌سابندی‌کی خبرېږ ی چی بندیان تښتیدلی دی. خپل دور بین اوټوپك را اخلی اود ټانګی‌لاره څار ی . اســـداو صاد ق دټانګی په ختیځ غره کی لیدل کیږ ی او باز گل دعسکروله خوابیر ته نیول شویدی. مر جا ن‌چی د دواړو له‌پاره سمه مور چه نیو لی‌وه اسد او صاد ق دوا ړ ه په‌ټوپك‌و لی صادق مری خو اسد چی‌ز خمی دی جلال‌آباد ته راوړل کیږی. دی هم دشفاخانی نه‌تښتی او باجوړ ته ځی. باز گل تر ډیره‌وخته پوری په توقیف کی دی چی په‌پای کی جر گه جوړیږی:

مر جان وایی چی زما زوی د مقابل لوری په کور کی په ناحقـه وژل شوی دی . او صاد ق هم زما خوریی کیده چی هغه‌هم تاسووژلی دی. باز گل چی او س په باجو ړ کی‌دی‌په‌جرگه‌کی وو یل چی( داچی خپله نږور یی نه‌وه وژلی) چی د سالارزو او ما مو ندو تړه داده‌چی ځوکچی د شپی دچاکره ور شی نو حتما غلا کوی او بهادر ما په غلاکی وژلی دی او خون یی نشته. خــو برسیره پردی یو تن ددوی مړدی اوبل زموږ. موږ او تاسو په مړوکی سره مساو ی یو. مگر چی‌جر گی ته‌سم معلوما ت ورنه‌کړ ل شو نو کومه فیصله یی نده کړی.

## ۱۲— دانګام کلی ۱۳۵۰ :

کریم ددانګام کلی دیره جوړ وله اود لرګو دراوړلو له‌پاره یی اشرد باجوړ نه‌راووست . په‌کور کی یی ویلی‌و چی که‌چیر ی می دباجوړ نه اشر راوو ست نود کلی دپاسه به‌ډزی وکړم او تاسو په ډوډ ی‌اشر گرو ته پخه‌کړی. کله چی د کلی‌د پاسه ټوپ‌ته راور سیده نو کر یم ډزی وکړی . په‌یوه ډز یوه ښځه چ ی‌کوزه په‌پټی کی ناسته وه ، ولګیده او مړه شوه. کریم کور ته‌رانغی ځوورځلی وروسته یی‌ننواتی وکړه اود جر گی په مخکی یی د ښځی میړه گلزار ته اقراروکړ چی

ښځه سهوا زما ښځه ولګیده .دا چي دکریم او ګلزار تر منځ پخوا ښځه‌نه‌وو نو کریم یي‌و بابنه .

## ۱۳ ـ دانګام ګلی ۱۳۵۲ :

دسدو دژر ندی پل چا مات کړی و. سدو باید فکر کړی وای چی‌دا کار دده دتره زوی جانمیر کړ ی دی.څو ورځی وروسته دجانمیر ـ در مندو سو چی هغه باید دا فکر کړی وای چی داکار دسدو له‌خوا وشو. خود دوا ړو دسم فکر له‌مخی ددوی شك پدی و شو چی دژر ندی پل هم‌یوه (دریمګړی) مات کړیدی‌او در مند هم دریم ګړ ی سوی دی چی‌غواړ ی دوی دواړ ه سره پـــه جنګ ورولی.

دسالار زو دتړ ی له مخی بـــه جانمیر مجبورو چی دژ ر ند ی‌دپله دماتولو له‌کبله سدو ته قسم‌وکړی‌خو که چیری جانمیر هم په سدو د درمند دسو لو شك کړی وا ی‌او غوښتلی‌یی‌وای چی سدو ده ته‌قسم وکړی نو جانمیر به‌تر یوه کاله پور ی‌لټه‌کولا ی چی دده در مندچا سوی‌دی اوکه وروسته له‌یوه کاله‌یی بیا هم په‌سدو شك وا ی‌نو کولای یی‌شو ل چی په سدو قسم‌وکړ ی.

## ۱٤ـ دانګام ګلی ۱۳۳٦ :

منصور دخپلی ښځی سره‌ناکس ولیده .دمنصور هغه داوه ، چـــی ناکس چیری لا ندی کړ ی خــــو بالاخره یوه‌ور ځ‌دروژ ی په‌لسمه‌د مرده ګانو ږوږی وه چی ناکس ،دمنصور کره په‌پینه‌ه کی نا ست‌و.

---

نو مو نه‌بیا هم اتکلی دی او دا کار به ددی برخی تر پایه دوا م لری. دنو مو نو اتکلی کول البتـه‌داصلی اشخاصو دراز خوندی‌ساتلو له‌پاره دی .

* پینه‌ه هغه‌ډله‌کسا ن دی‌چی د خیرا ت او یاشو می دړوډ ی په‌یوه لوښی( چی معمولا لوی لو ښی وی‌اوخوتنه ور ته‌کینی) سره نا ست وی . اډیتور .

منصور ناخاپه دخا در دلا ندی نــه یوتیره تبرگی راوایست او نا کس یی‌په ملا وواهه چی‌ه ملته مــړ شو.وروسته‌له‌دی‌کوټی‌ته ننوو ت‌او ټوپك یی راواخیست چی په هغه‌یی‌خپله بندئه مړه کړه.

## ۱۵- بینشی ،بزو منځی ، بــر سور کمر ۱۳۵۳ :

دشیر باز دتره زا من اوورو ته‌دمال دور کیدو او راکیدو په سبب په‌ناز بین باندی دزی کوی.نازبین راځی مدو ته‌وایی چی‌زه دا خلــك وژنم او ته‌راسره اشر و کړه اوغږ یی‌زه کوم. مدو ورسره‌و منله اود شیر باز ځلور کسه یی چی دوه‌یی دتره زامن او دوه یی ورونه وو مړه کړل. مړی یی په یوه‌سمڅ کــــی واچول ټوپك او کالی‌یی تــــر ی واخیستل . وروسته له نهو ورځو داکرم دنبنی ور کولو په‌واسطـــه مړی پیداشول . شیر باز دحامد سره په‌شیگل کی دیره‌کیږ ی . او حا مد ورسره را ځی په مدو دزی‌کوی چی یودمدو ورور اکرم اودمدو

لمسی وژل‌کیږی. دوی بندئی هــم‌زخمی کیږ ی .

په‌جر گه‌کی دواړه ز خمـــــــی‌بندئی په‌یو مړی حسابیږ ی چـــی دری مړی دمدو وشول او ځلـــو ر دشیر باز مړه شول . په دی‌حساب مدود شیرباز یو مړی‌قر ضدارشو. دری‌مړی یودبل سره معاو ضــــه شول په نتیجه کی ناز بین او مدو دغتهی ننوا تی سره دشیر بازدمړو ټوپك او کالي اودیوه مړ ی پـــور پنځلس زره افغاني او یوه بندئـــه شیر باز ته ور کړل . وروسته له‌هغی شیر باز او مدو او ناز بیـــن غاړه په غاړ ه شو ل او ســــــر ه‌جوړ شو ل.

## ۱٦- شالخو کڅ او پالو خوناو ۱۳۵۱:

کریم خپله لور دنواب زوی ته ورکړه . بالاخره معلومه شوه چــی نجلی اودنواب زوی تی رودلی‌دی. نواب کریم ته لورور پریښوده . هغه دانجلی منور ته‌ور کړه . او منور واده کړه. دنوا ب‌زو ی‌پاڅیده او کریم یی پدی دلیل مړ کړ چی‌که دده لورورسره تی هم رود لی دی خو بل چاته دی نه ور کوی.کله چی د کریم د تره زوی میرزاد

کریم د مر گ علت و پوښته نـــو نوا ب منکرشو . سیفو دهاد ی
ورور منور ته وو یل چی کر یـــم دنواب دزوی او جبار چی دهاد ی
دتره زوی دی، دلا سه وژل شو ی دی . میرزا په هادی ډزی وکړی او
په پښه یی زخمی کړ .هادی دنوا ب زامن دپیښور سیمی نه را وستـل
اودکریم دو یمه لوریی چی وا د ه شوی وه داسمار نه و تښتو له .
میرزا په مقابل کی دنواب د کورنه یوه نکاح شوی ښځه راوستله.په
دی پسر لی کی میرزا دو ی راغلل په هادی یی ډزی وکړ ی چی ټو پك
ی ی تاوانی او لاس یی زخمی شو .نواب اوهادی په منور باندی هم ډزی
وکړی مگر څوك ونه لگیدل . میرزا او هادی دتروړزامن هم دی .جرگه
تراو سه نه ده شوی .

**۱۷- میبنه ۱۳٥٦ د حمل میاشت** مسا فر چی سوا تی دی دزرین
دغوز کو م بوټی یی په تبر گ ی وهلی و.خو دپوښتنی په و خت کی منکر
شو . په دی و خت کی دزرین د زوی او مسافر تر منځ جنگ کیږی.
مسا فر دزرین زوی په پیش قبضه وهی او مری. کله چی زرین ا و
خپلوا ن یی راغلل نو مسا فر، پلار یی ر حیم او خانو چی تره یی کیده
دری واړ ه کوټی ته ننوتل . زرین او خپلوانو یی غوښتل چی کوټی ته
ور ننوز ی خود گولیو له کبله نـه شو ل ور ننوتلای. کله چی دا کار
ونه شو نو کوټی ته یی اوروا چاوه. داور اچولو په مو قع کی د مسا فر
ډلی و کولای شول چی دزرین دوی دډ لی څخه دری کسه نور هم ،
زخمیان کړی چی یو یی مړ شو. مسا فر ، خانو او رحیم دری واړه
وسول . دسوا تیانو څخه ښځی او یو ځلمی هلك توریاتی شو ل او
نور هر څه و سول .داځلمی هلك او ښځی باجوړ ته ولاړل او تراو سه
لا جر گه نه ده شوی.

**۱۸- بیداد او مردان ۱۳٥٦ - سنبله** : خا نمیر یوه خور درلوده اود
غر یبی له پاره مردا ن ته تللی و . عبد ل دخانمیر دتره زوی دی.عبدل
دانجلی خپل زوی ته غوښتله ، خو دنجلی مور او پلار نه ور کوله. د
عبدل زامنو غوښتل چی په زوره دانجلی تری وا خلی .د محمد اکبر

ملك زوى دخانمير مور او پلارراضي کړل او نجلى يى محمد اكبر ملك تەور کړه . دعبدل زوى‌چى‌دا نجلى يى‌دخپل ځان بلله په دى په قهـر شو ل او خانمير يى مړ کړ.ورو ستە له هغه دعبدل زوى بيداد ته راغى او ټول ددانگام سالا رز ى او ما موند يى راټول کړل. قوم ته يى داسى وويل چى له يوى خوا محمد اكبر زما ښځه چى دخانمير خور وه واخيستله او له بلى خوايى‌زما دتره زوى خانمير هم مړ کړ . تاسو په دى خبروم چى محمداكبر زما دښمن دى او چى دلته گرز ى راگرز ى نوزه يى وژنم.

قو مى جر گى دعبدل زوى ته وويل چى كه محمد اكبر دنجلـــى پلار راو ست اود قوم په مخكى‌يى‌وويل چى ما خپله لور په سم‌لاس محمد اكبر تەور کړى ده نو تەپړ يى او كه چير ى دنجلى پلار د ا خبره و نەکړه او ويى ويل چى نەزما سره زور شويدى نو محمـــد اكبر به ملا مت او ستا دښمن وى .

كەچير ى ذ ن‌ور ځ‌چى‌و عده دەمحمد اكبر دنجلى پلار حا ضر نه کړاى شو او په خپله گټه يى دا خبره اثبا ت تەونەرسو له نو قوم به د محمد اكبرکور سوز ى او دعبدل دزوى دښمن شو .كه چيرى بيا محمد اكبر خپله خبره اثبا ت‌تەور سو له نودخا نمير له پارەاو دهغه پەبد ل كى به دعبد ل زوى‌وژنى.

**۱۹— قاسم ۱۳۳٦ :**

فضلو او وروڼو يى داكبر ا و وروڼوسره پەكارينونو كى گډ ه پو له لرله . د دوا ړو د لوتر منځ‌په پوله دعوى شوه په نتيجه كـــى جنگ و شو چـى فـضلو او ددەد كورنى يوبل سړى مړه او در يم زخمى شو .د اكبر د لەپا څيد له باجوړ او جندول تەولاړل . څمكـه شاړه شوه .څو كاله ورو ستـــه دوى پە خپل منځ كى جوړه وكړ ه چى دفضلو د لى ته يى ديومړى‌په سر دوه ښځلى او لس زره رو پـى وركړى . دز خمى نيم نيك شو چى‌يوه ښځه او پنځه زره رو پـــى كيدلى . په څمكه قوم دعاو کړه چى‌څمكەدى بالكل شاړه و ى.

## ٢٠ ـ کيچلي ١٣٣٤ :

وزير او محمود ميرزي وروڼه وو . د محمود دوه سکني وروڼه پخوا مړه شوي وو او ميراث يي محمود وړى و. له بلي خوا دمحمود زا من هم نه وو . وزير پاخيده او محموديي مړ کړ .دمحمود يوه ښځه او دري لوڼي و تښتيدلي .دو همه ښځه يي دريم ورور هلال ته په نکاح کړه. دهغه ځلور جر يبه ځمکه و زير او هلال تقسيم کړه. وزير هم و تښتيده . قوم دو زير کوټي و سيز لي .ځوکا له وروسته چي و زير را غی قوم حکو مت ته په لاس ورکړ او لس کاله بندي شو.

## ٢١ـ زوړ براو ل ١٣٣١ :

سرا ج ، سردار او نور الله د تروزا من وو . سردار راپاخيده او سراج يي دميرا ث له پاره مړ کړ. يوه ښځه يوه لور او يوه قلبه ځمکه چي لس دړ ى تخم کيده ځيني پا تي شو ل. داچي سرا ج دشپي مړ و نو قوم سردار ته ځه نه ويل اوله بلي خوا سردار دسراج دمړ ينی په باب دبل چاسره مصلحت نه و کړی.نوقوم له دی کبله سر دار ته څه نه ويل او سردار يوازی دحکو مت له ډاره جندول ته و تښتيده .دسرا ج ښځه دنور الله زوی وکړه اولور يي دسردار دزوی دواده په بدل کی ورکړه شوه .ځمکه د سردار ، او نور الله تر منځ وو يشله شوه.

## ٢٢ـ خاوو نه ١٣٣٦ :

دملك جمال مشوا نی يوه ښکلي لوروه چي توتيانو ميده . حسن چي دليتي يو سالارز ى و دانجلي يي وتښتوله خو په لسمه ور ځ د هغه حسن څخه بير ته راوتښتيدله او خاراته راغله . مشوانو خپل کورته ورسوله. يوه مشواني چي شاه جان نوميده خپل ورور ته يي په نکا ح کړه. سالارزی چي خبر شو ل نو حکو مت ته يي عرض وکړ. دا چي شاه جان حکو مت ته نه راته نو دمشوانو دوه کسه مشرا ن ملـک صمد او ملك شينکی بنديان شول. که څه هم ملك صمد مخالفت کاوه خو بيا هم شاه جا ن داښځه محکمی ته راو ستله چي توتيا او شاه جا ن دواړه بنديا ن شو ل.همدا شا نی حسن هم بندي شو.

لږ وروسته جر گه جوړه شوه چی شینوارو ، سالار زو اومشواڼو په‌کی‌گډون در لود .دهغی جر گی‌له مخی بندیا ن یعنی توتیا، شامجان او حسن خلاص اودا ســـی فیصله‌و شوه چی ملك شینکـــی (مشوا ڼی) او ملك محمد اکبـــر(سالارزی ) بـــه تـوتیا د اسمار د او لسوا لی نه دباندی په‌یوه‌داسی‌سړی واده کوی چی نه‌سالارز ی وی او نه مشواڼی. ملك محمد اکبر هم خپ ل‌وکالت ملك شینکی تـــه پریښود . ملك شینکی دا نجلـــی (توتیا) داسمار په او لسوا لی کی یوه گو جر ته‌ور کړه. سالا ر زو بیا حکو مت ته‌شکایت وکړ ،چـــی ملك شینکی خودا ښځه د اسما ر په او لسوا لی کی ور کړه او بله دا چی گو جر او مشوا ڼی دوا ړه‌وروڼه دی ځکه چی دوا ړ ه مالونه پیایی . حکو مت ملك شینکی بندی کړ. ځینو خلکو ملك شینکـــی ولمساوه چی د استابندی کید ل‌د‌ملك صمد په‌تحریك ترسره شول. بیا ملك شینکی په ملك صمد ډزی‌وکړ ی او زخمی یی کړ. قوم ر ا۔ پاڅیده اود ملك شینکی کوټی یی‌وسو لی . ملك شینکی په جوړه او روغه کی ملك صمد ته‌دوه ښځـی‌او لس زره افغانی ورکړ ی . دا جوړه تقر یبا په ۱۳٤۱ کـا ل کی وشوه.

**۲۳— دارن دره ۱۳۲۱ :**

دملك شیر خان کور نی(مشواڼی‌شو نی خیل) د دارن در ی ته‌ولاړل او په‌جیگل کی یی ځمکه‌واخیستله. کو هستانو بیرته دعوی وکړه چی داځمکه موږ نه ده خر څه کړ ی. په حکو مت کی د عوی وشوی او دکو هستا نو او مشواڼو تر منـځ ډزی وشوی چی په‌نتیجه کی دولس تنه مشوا ڼی بندیان شو ل .

مشواڼی دبندیخانی څخه با جوړ ته‌و تښتیدل . دهغه ځا یه بـــه راتلل او په‌کو هستا نو به یی‌ډزی‌کو لی چی تقریبا شل کا لـــه وروسته جوړه و شوه. په دی‌ډزو کی عسکر هم مړه شول او دنیشه۔ گام ملك گلو هم پکی مړ شو . دکوهستا نو نه تقر یبا او یا تنـــه مړه شول او په مقابل‌کی دمشوا ڼو تقریبا پنځه یاشپږ کسه وو ژ ل شو ل.

په دې جرگه کې دکو ټرو نو سپین ږیرو برخه اخیستې وه او مشوا نې ورو سته له دې غټې پتنی یو څه مشهور او قدر یې‌زیات شو .

ورو سته له دې ملك شیر خان‌اوملك کریم چې د ځنګل ځمکه یې په‌ګډه اخیستې وه په دې‌ځمکه‌یې‌سره‌دعوی شوه دځنګل ځمکه بالا خره ملك کریم واخیسته او ملك‌شیر خا ن دارناو ی خو ړ ته‌و لاړ چې هلته پاکستان( دپاکستا ن ـ دولت ) ورته ځمکه ورکړه.په‌مقابل کې ملك شیر خا ن په‌ځان و منله‌که دچره گل دری مشوا نې دډاکی (غلا) له‌پاره راتلل دهغوی مخه به نیسی . هغه و چې له‌دې ورو سته دچره گل دمشوا نو ډاکی کمې شوی.

## ۲۴ـ او غڼ باغ ۱۳۵٤ :

احمدگل خپله ځمکه( تقر یبا لس دړی تخم) په‌سلیما ن خر څه کړه. احمد گل څو کا له وروسته‌مړ شو . داحمد گل ورو نه پاخیدل او ویې ویل چې مو نږ ځمکه نه ده خرڅه کړې. په محکمه کې‌یې سره‌دعوی شوه. پرو سږ کال(۱۳۵۵)چې دمنی دجوارو کرلووخت شو نو داحمدگل وروڼو په‌کې‌یو ی کو له . دسلیما ن وروڼوداحمدگل دوه وروڼه په‌ټپې کې‌و وژل ، ا و وروستنه له هغه باجوړ ته ولاړل. سږ کال په پسر لی کې داسې جوړه و شوه چې داحمد گل وروڼو ته‌یې دوی ښځې او شپیته زر ه افغانی ورکړ ی او لږ څه ځمکه‌او روپۍ یې دسلیما ن وروڼو ته پریښودی .دا جوړه لږ څه په زور غونډی‌وه ځکه چې به‌یوه‌مړی دوی ښځې او پنځلس زره افغانی ورکول کیږ ی.

## ۲۵ـ ډیره گۍ ۱۳۵٦ اړ:

گل احمد د محمود نه او به اړولی وی . سپین ږیرو گل‌ا حمد ته‌و ویل چې یاټپې ور ته او به‌که‌او یایې دفصل تاوا ن ورکړه .د محمود زوم په همدی او بو دگل‌ احمدسره جنګ وکړ .گل احمد عرض وکړ او مقابل لوری علا قه‌دار ی ته‌و غوښتل شو. ورو سته

سپین زیرو ددو ی تر منځ داسی جوړه وکړه چی ګل احمد ور ته هماغه پټی اوبه کړ. په اوړی کی چی زیاته ګر می او اوبه کمی وی ، فصلو نه سو ځی نو له دی کبله په اوبو زیات جنګونه پیښیږی .

## ۲۶- جبه (ډیری) ۱۳۵۰ :

ملک خانګل دعبدل نه ځمکه وا خیستله چی دری برخی وی . دو ی برخی د ملک خانګل شوی اودریمه برخه یی بابوجان ته ور کړه ددی یوی برخی بیه تقریبا پنځوس یا شپیته زره افغا نی کیده، سر بیره پردی ملک خانګل هغه زر افغا نی چی دقبالی په خت کی باید عبدل ته ور کړ شوی وای په با بوجا ن کینبو لی . خود قبا لی داخیستلو په خت کی بابوجا ن حا ضرنشو نو ملک خانګل یواز ی دخپلو دوو برخو ځمکی قباله واخیستله اود بابو جان بر خه پاتی شوه .دا چی با بوجان سند نه در لود او عبدل سند غوښتو نو دجر ګی په مخکی بابوجا ن ملا مت ښکاریده . خودا چی ځمکه دبابوجا ن په لاس کی وه نو عبدل په بابوجا ن ډزی وکړ ی چی غواو ی او وزی یی مړ ی شوی. دریم وار ته یی دبابوجا ن جوار وو هل (فصل یی مات او تباه کړ) بابوجا ن را غی اود ملک خانګل جوار یی وو هل . ملک خانګل بابو جان ته وو یل چی که خپله ځمکه ماته پرین دی نو پیسی دی درکوم او که نه هغه دقبالی زر افغانی دی تراو سه هم نه دی راکړ ی. نو ستا خو ښه که زما سره محکمی ته ځی او که دعبدل سره. په دی و خت کی بابوجا ن ، خانګل ته ننوا تی ور غی او چی جر ګه را غله نو په بابوجا ن یی نور ی او یازره افغانی کینبودی چی عبدل ته ورکړ ای شوی. وروسته له د ی مو ضو ع حل شو ه . او س به هغه دبابو-جان دبر خی ځمکه دوه سو ه پنځو س زره افغانی قیمت ولری.

## ۲۷- ډیری ۱۳۵۲ :

دګلزار پلار میرزا ملک اوحبیب الله سره ورو نه وو. میرزا ملک دکوم خد مت له مخی د حکو مت نه ځمکه ترلا سه کړی وه. نعمت ګلزار ته وو یل چی ستا ځمکه ډیره ده او زما کمه ده داو لی ؟هغه

وو يل چې داخو زما پلار ته حکومت ورکړی ده او که تاځمکه غوښتلای نوزمادپلار په ژو ند دی بايده د ی چې دعوی کړی وای . نعمت چې په باجوړ کی و را غی اود حبيب الله دزوی په مر ستـه يی گلـــزار وويشت اوزخمی يی کړ . حبيب ننوا تی و کړه. او گلزار ور ســره جوړه وکړه خو نعمت يی تراوسه دښمن دی.

## ۲۸- خارا کلی ۱۳۵۰ :

دميرزا لور يی مو سی ته ور کړی وه چې دمو سی نه يی زا من هم در لودل خو له غفور ســره جوړه شوه او هغه باجوړ تــــه وتښتوله . يو زوی او يوه لور يی دمو سی سره پاتی شو ل .

غفور تراو سه هم دمو ســی دښمن دی ځکه د ميړه ښځی دتښتوو نکو سره جو ړه رو غه نه کيږی . خپل ملك او وطن ته نه شی راتلای او حتی جنازه يی هم هديری (حضيری) ته نه پريږ د ی . نو حتما دتښتيد لی ښځی داصلی ميړه له خواو ژل کيږ ی او يا په خپل مر گ مری خو وطن تــــه راتلای نه شی او جوړه رو غه و ر سره هيڅکله نه کيږ ی.

## ۲۹- بيداد ۱۳۵٤ :

دتور لور چې يوه سوا تی ته يی ورکړی وه د يوه المازی سره جوړه وه. سوا تی جگ شو الماز ی يی مړ کړ ( په هما غه شپه چې کورته يی ور غلی و) خو ښځه و تښتيده . سوا تی په سدو دعوی وکړه چې زما ښځه ستا سره ده . خـــــو وروسته ښځه دپلار کور ته ورکړه شوه او په دی مځکی پسر لی کی يی په کور کی وو ژله.

## ۳۰- شگره ۱۳۵۵ دروژی میاشت:

د صمد ښځه دفضلو سره جوړه غو ندی وه .فضلو گبری و. صمد پاڅيده او فضلو يی په دا ســـی وخت کی چې دمانبا م له خواويده و اول په سر باندی په تبره وواهه او بيا يی سمدلا سه چاړه راوايستله او حلال يی کړ . دفضلو ورور ، راغی او صمد يی بيدرنگه ونيو ،

چې له‌و هلو ټکولوخخه ورو سته یی په هما غه مانبنام حکو مت ته‌په لاس‌ورکړ .صمدبندی شو اوبنځه یی‌چی ما مونده وه د خپل پـــلا ر کورته وتښتیده. دصمد ورو ر، جندول ته‌و تښتیده دا چی ماموند ښځه سالارزی ته د مر گ له‌پاره نه ورکوی نو تراوسه‌ژ و نـــدی پاتی ده.

### ۳۱ــ سیا ڼ ۱۳۵۳ :

طا هر دوی ښځې در لودی . لومړ ی ښځه یی په خپله وا د ه کړی وه او یوزوی او لور یی ور ځخه لرل . خو کله چی دطا هر ورور دقاسم له خواوو ژل شو نو دورور ښځه هم طا هر په‌نکا ح کړه. څر نګه چی طا هر د خپلـــی پخوا نی ورینداری او او سنـــی دو همی ښځی سره ښه چلیده‌او په مقابل کی یی دخپلی لو مـــړ ی ښځی سره ښه سلوك نه‌کاوه ،نو مشری ښځې په پای کی فیصلـــه وکړه چی دپښد خا ن ته‌و تښتی. ددی سره خپل دو لس کلن زوی او لوریی هم ورسره دی .دا چـــی ښځه نه غواړ ی بیر ته خپل میړه ته‌راشی نو دپښد خا ن هغه‌طا هر ته‌نه‌ور کوی . دطا هر مشره‌ښځه لاتر او سه دپښد دخا ن کره‌اوسی‌البته طا هر به هم ډیره علاقه نــه لری چی خپله ښځه‌راو لی ،خود خان دقدر ت له مخی که ښځـــه دطا هر له خوا وغوښتل هم شی‌نو خا ن به دده نه داضمانت وا خلی چی دخپلی ښځی سره ښه سلوك غوره کړی.

### ۳۲ــ سیا ڼ ۱۳۴۶:

دقاسم یوه ښځه او یوه‌ورینداره‌شهباز سالارز ی و تښتو لی اوپه مردان کی یی خرڅی کړی. قا سم تقریبا پنځه و یشت‌زره افغا نـــی مو سی او میرزا ته‌ور کړی چـــی شهباز مړ کړی. دوی دواړوشهباز مړکړ . دسالارز ی تړه داده چی که‌چا څوك په‌پیسو مړ کړ نو کوربه یی سو ځول کیږ ی او ځمکه به‌یی‌شاړه کیږ ی . خو ددی مسا لـــی څخه قوم خبر نه‌شو . کله چی‌قوم خبر شو نو مسا له زړه شوی وه. بله دا چی وژو نکی دواړه مشوانی‌وو او ښایی هلته یی کورنه درلود.

**۳۳ـ آهنگرا نبر دانگام :**

لعل محمدیو زورور، غبنتلی او گوندی، باز سړی و . هیڅو ك یی‌په کلی‌کی خپل کار او حق ته نــــه‌پریښودل .بالا خره تقریبا پنځلس کو رونه دآهنگرانو څخه زیرمنځی ته‌په‌کړه ولاړل . زیر منځی‌دما ـ مو ندو په سیمه کی دی خو پا چا یان په‌کی او سی . کړه شوی‌خلك دلعل محمد په مر گ پسی‌راغلل.خو لعـــــل خبـــر شو ، اولاره یی ورته ونیوله . دلعل دلاری نیولونه هغوی خبر شو ل په پای کی ما مــو نــــــدو د د و ی تر منځ ودریدل او جوړه یی‌وکړ ه دجرگی فیصله دا سی وه چی‌لـعل دی په دوی ظلم نه‌کوی اودوی به بیرته کلی ته راشــی . له راتگــك څخه‌ورو سته تقر یبا یوه میا شت تیره نه‌و ه چی په او بوسره‌ورا ن شول. دا چی لعل یوازی و نو د کوز دا نگام کلی نه یی ا شر گری‌او بو تــــه را و ستلی وو اوگړه‌یی ورته حلال کړی و . د گړه د خوړلو نه‌وروسته اشر گری او بو ته ور ووتل . په دی منځ کی جنگك‌وشو یوه‌اشر گری چی بهرام نو میده د مقابل لوری یو سړی سدو نومی‌د ټوپك په میل داسی په‌نس کـــی ووا هه چی نس یی څیر ی او مړ شو . هغوی په لعل او بهرام‌باندی حکو مت ته‌عرض وکړ ، چی پـــه نتیجه کی لعل څلور او بهرام‌اووه کاله بندیان شو ل .

دبند دتیرو لو نه ورو سته لعل محمدبیر ته کورته‌را غی .دده‌زرور که‌څه هم دلعل دبند په موده کی‌یی دمقابل لوری پلوی کړ ی وه خو دا چی دلعل ورور و .دسدو په پتنه‌کی دمقابل لوری له خوا وو ژ ل شو. دلعل وریندار چی کو نه‌وه دمقابل لور ی خور هم وه . نولعل محمدد خپلی وریندار ی څار نــــه‌کو له چی مباداکوم خبر به خپلو وروڼو ته‌یو سی او یادا چی هغوی ته‌به ور و تښتی . دڅار نی سره سره دلعل وریندار ی‌وکړای شول‌چی خپلو وروڼو ته دلعل خبـــــر یو سی . وروڼو یی لعل ته لا ره‌ونیو له او هغه یی وواژه دلعـــــل زامن واړه پاتی شو ل .مور به‌یی اکثرو خت دشپی له خوا دکو مو دو ستا نو کره پټول . خپل زيات‌مال او جایداد یی خر څ کړ او په

غر یبی پسی پیښور ته‌و لاړ ل . دښمنان یی له دی کبله دد و ی‌څخه ډاریډ ل چی‌روغه جوړ ه نا مساوی‌شوی وه. دوه کاله‌ورو سته د لعل زا من را غلل خوټوپك ورسره نه‌و. که‌څه هم دوی پټی دخان سره توما نچی در لودی . خود مقابـل لوری دا فکرو شو چی هغو ی ، دوستانه راغلی دی . ټو ل کلـــی مسافرو عز یزانو ته میلمستیا ـ ګانی پیل کړی. دوی په پای کی‌دخپل پلار دقاتل په‌کور میلما نـــه شو ل. د ډوډ ی دخوړ لو نـــه ‌وروسته جو مات ته و خوځید ل جوما ت ته چی ننوتل دواړو وروڼو توما نچی راوایستلی اود پلار قاتل پر ګل یی اتلس مر می‌وویشت. نوری ټو لی ګو لی په جا مو کی تللی وی یوازی دریو ګو لیو دده‌وجود ځیری کړی‌و . پرګل ډاکتر ته‌یووړل شو او له دریو میاشتو تداو ی څخه وروسته جوړ شو . دپیچ دری سپین ږیر ی را غلل‌او‌ددوی تر منځ جر ګه جوړه شوه.

ـجوړ ی او رو غی له‌پاره ګټه یو دریم ګړ ی دلعل زوم ور کړ اونور ـ ددو ی په‌جوړ ه زموږ معلو مات‌را ـکوو نکی خبر ندی. دغه جوړه‌په ١٣٥١ کی‌و شوه.

**٣٤ـ دانګام کلی ١٣٤٤:**

هغه‌و خت چی په دانګام دره‌کی‌دلر ګیو سوداګری پیل شوه نود دری دبرسر خلکوبه دانګا م کلی‌ته‌یواز ی دودانیو له‌پاره لر ګی‌ور ـکړل اودسوداګری له‌پاره یی نـــه‌ورکول .دانګام کلی مشوره وکړ ه چی لرګی باید پری نه ښود ل‌شی‌او هم یی او لسوا ل ته‌وو یل چی ځنګلونه تباه کیږ ی .

ددی فیصلی نه‌وروسته یی د در ی‌خلکو ته خبرورکړ چی په‌لر ګیو پسی باید مو ټر رانه‌و لی .یو‌ه‌ورځ دسهار تر لمانځه ورو سته‌ددانګام کلی‌ټول خلك په‌جو ما ت کی‌ناست دی چی یو موټر په‌لرګیو بارراغی. په موټر کی دخان محمد لرګی‌وو. ددانګام خلك موټر ته ور د مخه شول او لرګی یی ځـینـــی کـوز کړ ل . بیایی اور ورواچاوه. ځینو خلکوغوښتل چی مو ټر او موټروان‌هم وسوځی. پدی و خت کی غږ‌شو

چي ددري خلك راغــلل. د دانګـام کلي خلك دو بندی تهور د مخــه شول. که‌ګور ی دايوه جر ګه وه‌چي خان محمد هم پکی‌و يوه سړی خان محمد په چاړه تپهد يد کړ خو نورو منع کړ. دانګام ته‌اولسوا ل راغي اود دانګام کلي او و لس‌تنه‌مشران يي بنديان کړل .له‌اوولس ورڅو بندڅخه ورو سته مشران را خلاص شو ل اوددر ی او دانګام کلي تر منځ داسی فیصله وشوه : ددانګام خلك دډیره ګی ، سیا ن، خارا ، قاسم براول ، لوی ګوریګـــا اوواړه ګوریګا په غرو نوکی‌د سوـ داګری له‌پاره شریك دی.همدغسبی موټر وانا ن به ددری د خلکو مړی او واده په‌وړ يا تو ګه‌وړ ی. او تر يو خروار پوری ما لګه به هم‌موټر وانان بی پيسو دانګام ته‌راوړ ی. همداشانی‌په دره کی به هر خو ك ماشومان هم بی کرا يي ددري لراو برسر ته وړی. که‌کوم مو ټروا ن او يادبار ښبنتن چاته موټرو نه درواه مجبور دی چي تړل شو ی ناغه‌پری‌کړی.

## ۳۵ـ ټانګه دميزان ميا شـــت ۱۳۵٦ :

کاظم چي دشهزاده وراره و دخپل تره لور يي‌و غوښتله . تره د لور په‌بدل کی دوراره دمور چـــی‌کونه‌ه وه مطالبه وکړه. کاظم چي دمور نه پوښتنه‌و کړه نو هغه دی کارته‌را ضی نشوه .شهزا ده‌خپله لور وروسته له دی يوه دیګان ته‌چی‌کریم نو میده ور کړه. کا ظم خپل تړه ته خبر ورکړ چي هم تا او هم دیګان وژنم ځکه تازما بنډځه واده کړی او دیګان اخیستی ده . پخوا تردی جر ګه شوی‌وه ، ا و شهزا ده ته‌يي ویل چي يابه کا ظم رضاکوی او يابه لور تر هغو بل چاته نه ور کوی . خو بیا هم ، شهزاده خپله لور دیګا ن ته‌ورکړه. اوس چي شهزاده په خپل او دزوم په مر ګ و ډار شو نو خپل بـــل وراره مصطفي ته‌يي دشلواودیرشو زرو تر منځ پیسی‌ور کړ ی چـــی کاظم مړ کړی مصطفي پر کا ظم ډزی وکړی خو د کاظم پر ځای‌يي بنډځه و لګیده او مړه شوه .

شهزاده په اسمار کی اوسیږی‌او مصطفي په ګويجه کی دی. که په دی بنډځه مصطفي وو ژل شي‌نو سره مساوی دی ،ځکه دسالارز ی دنر خ له مخی بنډځه او نر مساو ی‌دی خوپه هغه و خت کی چی له

يوی خواكمزور ی مو جوده و ی كيدای شی چی ښځه دنر ســـره مساوی نه‌شی.

## ۳۶- وړ كوټی گوریگا ۱۳۴۴:

محمود دغر يبی له پاره‌تركستنان ته‌تللی و او ځمكه‌يی په دی‌و خت كـ ی‌شهنواز ، احمد ، قادراوعبدالله چی تربرونه‌يی وو خوړ له . همدا ډول د محمود وريندار يی هم خرڅه كړی وه . كله چی هغه راغی‌نودوی دمحمودنه ډاريد ل . پردی پلمه‌چی‌تـا تــه پــه با جوړ كی ښځه اخلو، محجمود يی دځانه‌سره روا ن او په‌لاره كی( په‌ډنه كی) يی په خوړ گی كی مړ او مړی يی په ځنگل كــی‌ښخ كړ. حكو مت خبر شو خوپه لومړ ی ځای كی پيدانه شو ځكه‌قاتلا نو يی دهغه څخه ايستلی‌او په‌بل ځای كی يی ښخ كړی‌و . خو بالا خره مړی يی پيداشو .د مړی په‌نه پيدا كيدو باندی ملك نيكو هم دری مياشتی بندی شو . د محمود بل ورور هم دتركستا ن‌نه راغی. باجوړ ی راغلل اود شهنواز كوټی يی‌و سوی اود حكو مت له‌خوا شهنواز اوولس كاله بند ی شو . كه‌څه هم‌د محمود ځمكه دهغه په‌تر برو نو گرو ه خو ، د محمود ورور ته يـــی ور نه كــړه، هغوی ويل چی په موږ يی قطعی خر څه كړی ده.

## ۳۷- ځو كی خوړ اوباجـــــــوړ ۱۳۴۸ :

گنشالی سرور ځو كی ته‌را غی‌اود نعمت زوی ته‌يی چی تر بور يی‌كيده وو يل چی راځه زه به په باجوړ كی در ته‌ټوپك واخلم . د نعمت زوی څه نغدی پيسی‌واخستی‌او يود قلبی غو يی يی دځانه سره روان كړ. سرور دگوريگا په سر كی دنعمت زوی وواژه. نغدی‌پيسی اوټوپك يی ځنی يووړ ل او غو يی يی دځانه‌سره بوت. مړی دلته‌بوی كړی‌واو باجوړ و ليد لی و چی‌بيا هغوی ښخ كړ تراو سه كو مه‌روغه جوړه نه ده شوی.

## ۳۸- وړکوټی گوريگا ۱۳۵۰:

هاشم په صحرا کی دنيکو وزه پټه کړه او سمدستي يې حلا لــه کړه. غوښی يې دور ځی له خوادوني پهډډ کی ايښي‌وي او د شپی يې‌کورته‌راوړي او ويې خوړي شپانه دنيکو دغه وزه‌هغه و خــت ليدلی وه چې د هاشم ټلگی ته تللی‌وه. همدا ډول د حلا لولو نکل‌يې‌هم اوريدلي و. کله چې نيکو پــــه هاشم د وزی دغلا دعوی وکړه نو هاشم غوښتل چې منکر شي اوقسم وکړي. خو نيکو ټينگ شو چې‌ماته ثابته ده چې زما وزه دی پټه کړی‌ده او قسم نه درکوم. بالا خـــره هاشم قانع شو اود کلي‌دسپين ږيرو دڅرو بنځو او يوه گډ سره يې دنيکو ننوا تې وکړه. اوپه‌روغه کی‌يې دوی وزی ورکړي.
نيکووا يې چې غل هم په ځا ن فخر کوی اوځان نو ميا لی اوتور- يالی بو لي .

## ۳۹- وړ کوټی گو ريگا۱۳۱۱ :

گل رحمان دگل مير خور يې وواژه خو ښځه يې ورسره مړه نه کړه. گل مير ور ته‌وو يل چې‌مو ږ به دوی ښځی درکړو خو ښځه‌مړه کړی. گل ر حمان تير نظروکړ او ښځه يې بيا هم مړه‌نه کړه‌گل‌مير خپل وراره ته دخور يې ښځه او پټي و منل چې گل ر حمان مـــړ کړی. هغه گلر حمان ووا ژه دگل رحمان وروڼو او تر برو نو وړکوټي گو ريگاته لښکروکړ اود گل مير په‌وروڼو او زا منويي په داسي‌حال کی‌دزی وکړ ی چې هغوی قلبه‌کوله او په‌پټي کی دغر مي ډوډ ی تــــه ناست‌وو . مگر څوك ونه‌لگيدل . دوی دپټي نه‌کور ته‌و تښتيد ل او ټوپك يې راواخيستل چې‌د هغو ی دډزوله امله دلښکر نه يو بل تن باچانو مي‌ولگيده او مړ شو.ورو سته دگل رحما ن ډلي گل مير وويشت مگر مړ نه‌شو . دگل‌رحمان ورور محرا ب دگل ميردو ی له‌خوا وو يشتل شو خو مړ نه‌شو. دگل رحمان ډ له را غله او دگل‌مير يو

نږ دی تر بور آغاګل یيووا ژه . بیادګل میر ډ لی دګل رحمان دوی یوسږی وو پشت خو مږ نه‌شو دګل ر حمان ډ لی دګل میر یوشپون چی پاچا نو میده وواژه. دجګړ ی او پتنی په درویشتم کال جوړ ه وشوه . په‌جوړه کی دواړه‌خواوی سره مساو ی شوی ځکه د یو ی خوا دوه کسه مړه شو ل او دبلی خواهم دوه کسه وو ژل شو ل. شپون چی زیات مږ شوی‌و . هغه‌څوك نه در لودل چی پوبنتنه یی وکړ ی .له‌بلی خواد ګل ر حما ن ډله زوروره هم وه نو په‌جوړه کی بنځی سره ور نه‌کړای شو ی.

## ٤٠— لوی ګوریګا ۱۳٤۱ :

رمضان چی ما مو ندو او پـــه‌سا بند ی کی او سیده د ملا ګــــل ننګــو ر یی و تښتو له . بــــاجوړ ته‌ولاړ او یوکال وروسته دباجو ړ څخه بیرته را غی اود خپله ډاره‌یـی مــلا ګل په پــښه وو یشــت او هغه ګوډ شو .ملا بی و ســــه‌و او تر او سه یی هیڅ نه دی کړی . هغــه خــپل زوی تــه د وړ کوټی ګو ریګا یوه نجلی وا ده‌کړه دوه کاله‌وروسته بیایوه ګنشا لی‌چی صاحب میر نو میده د ملا ګــل زوی نه بنځه‌و تښتو له . کله‌چی‌هغه بیا څه اقدام ونه کړ نودنجلی ورور پاڅیده او ګنشا لی یی مړ کړ.

## ٤١— وړ کوټی ګو ریګا ، ا ود آهنګرانو کلی۱۳۲۱ :

دوړ کوټی ګو ریګا اوسیدو نکی‌سید آ غا به دآ هنګرانو کورونو ته‌په‌یوه بنځه پسی ور ته بنځـی‌خپل میره منګل نو می ته وویـــل بنځی او میره یـــی دا سی سلا وکړه چی بنځه به دغه سړی یعنی سیدآغا راو لی . کله چی سیدآغا راغی نو منګل هغه په‌پیش قبضه وواهه او مړ یی کړ.

منګل او بنځه یی دواړه بند یا نشول خو مقابل لوری و ر تـــــه ابراو کړه او خلاص شو ل . منګل‌ورو سته باجوړ ته‌و تښتید . لس کاله وروسته چی خپل کلی تـــه‌راغی نودسید آغاوروڼو هغـــــه وواژه دی ځکه وو ژل شو چی‌بنځه یی نه‌وه مړه کړی.

## ۴۲- مروره ۱۳۴۳ :

محمد دين او علي دمرور ىد لر كلي او سيدو نكي او دوا ړه خلوزى وو . په او بو باندى سره وران شو ل اود محمد دين زوى سلام ،علي په‌پيش قبضه ووا هه او مقابل لور ى علي لړ مخكى د زخمى كيدو نه سلام په‌پيش قبضه‌ووا هه . دواړه مړه شو ل . داچى دواړه مساو ى مړه شو ل نـــو او لس پكى‌سو له‌وكړه او سره روغ شو ل.

## ۴۳- مروره بر كلي ۱۳۵۳ :

دگل خان او نوا ب په او بـــو باندى سره جنګ شو. دگلخا ن زوى په‌بيلچه‌په‌سر و لگيده اوسخت ټپى شو .دا چى معلو مه نه وه‌چى دگل خان زوى به‌روغ او كه مړشي نودنواب كور نى دباندى نه‌راوتل اوقوم هم داسى مشوره وركړه‌چى جوما ت ته دى نه‌راځى . خو كله چى دگل خا نزوى دمر گ نه بچ‌شو نو بيا جرگه جوړه شوه، مـيا ملا او سپين ږير ى يى دگل خان كور ته‌بوتلل خو كوم گډ ور تـه حلال‌نه شو او يواز ى درى ز ر ه افغانى يى د(سر غوړى) چى پـــه ځينو ځايو نو كى (ملهم) او يـــا (پټى) بو لى‌په‌نوم وركړ ى.

## ۴۴- مروره ۱۳۳٦ :

سيد اكبر خپل ماما شاه پوردميرا مشاه له‌پاره مړ كړ . دسيـد اكبركور دقوم له خواو سو ز ل شو او پټى يى شاړ كړ، دشاهپور پټى كليوا لو په خپلو منځو كى وو يشه . ورو سته سيد اكبــر راغى او دكلي قوم ننواتى يى‌وكړه او قوم پټى بير ته ور كړ كوم‌چى دوروڼو تر منځ وو يشل شو .يوه برخه گل پاچا وا خيستله ، بلــه برخه فقير شاه او دريمه سيد اكبر ته‌ور سيده . گ ل‌پاچا چى د سيد اكبر ورور دى فقير شاه ته يى وو يل چى دى پټى ته مه راځه

چې ما پرې سرې وژلې دې نواوس یې څنګه تاته درکړم . دفقیر شا ه ورور چې دې پټې تهرا غې نو ګل پاچا هغه مړ کړ . ګل پاچاتښتیدلې او مر ګونې دې.

**٤٥- عجب ساګې ١٣٥٥ :**

ملا بر کت او ملا بختیار سر ه ورونه وو . دوې دوا ړو پهشریکه یوه ژر نده در لوده .ملا بر کـــت غو ښتل چې ددې ژر ندې دپا سه (بره) یوه بله ژرنده جوړه کړ ی. ملا بختیار ور ته وو یل چې دا ، ژرنده به هم په شر یکه سرهجوړه کړو خو بختیار په دیو خت کـــې میرې تهولاړ او بر کت ژر ند ه یواز ی جوړه کړه .بختیار چـــې را غې نو دژر ندې دعوې یېوکړه. مګر ملا بر کتو یل چې ژر نده یواز ی ماجوړ ه کړې ده او تاته یې نه در کوم . ملا بختیار پاڅیده بر کتیې وواژه. دوه کوچنې زامن یېپاتې شو ل او بختیار وتښتیده. قوم را غې د دوا ړوکورو نه یېاول تالا او بیایې و سو ځول.

تراو سه داسې نهوو شوې چېدظالم او مظلوم دوا ړوکورو نهدې وسو ځول شې *

**٤٦- مروره ١٣٣٦ :**

مهمند خپل ورور ســـرو ر دمیراث له پاره مړ کړ.قوم**راپاڅیده دمهمند کور یې و سیځه او ځمکه یې ور تهشاړه کړه. یو کــــال

---

*دا هم بایدپهورزیاته کـــړ وچې داړول کارنهیواز ې بیسار ې دې بلکې غیر عادلا نه او له منطق څخه هم ډیر لیرې دې ځکه ظالم او مظلوم دواړو ته عین سزاورکول‌نه هیڅ ډول عقلانې جنبهلرې اونه ټولنیز نظام ته کو مه ګټهرسو لې‌شې. دالا څه چې ټولنې ته تـاوان هم رسوې.

**دقوم کلمه په محل کې د یوې سیمې خلکوته استعمالیږ ې کهڅه هم شمیر یـــې لږ او دیوه خــــیـل یاپښې غړې هم وې .داکلمه هغـه مفهو م نهلرې چې تر قبیلې لوې قشر او ملیت ته اطلاق کیږ ې بلکې دې کلمې اصطلا حې شکل غور ه کړې چې اصلا داو لس کلمه ور تهصحیح ښکارې.

وروسته مهمند را غی اود قــــوم ننوا تی یی‌و کړه او وبښل شو. د سرور بندخه او دوه لو نهی یی خرڅی کړی او یوه نیمه کـــی (لس- منه‌تخم) پټی یی ده ته ور پا تی‌شو.

**٤٧ـ غابنی ۱۳۰٦:**

دامیر ملك زوی به بندخـــــی تښتولی او پەپیسو بەیی خلــــك وژل. پلار یی زا منو تەوو یل چی دازوی می ماشر موی نو ستا سو نه خوا هش کوم چی مړیی کړ ی. هغوی وروسته له څه مقاو متــــه پاڅیدل او دا خپل ورور یی پـــــه زندی کړ. دزندی کولو پەو خت یی پلارسترگی تړ لی‌و ی ورو ستــه له هغی چی په کټ کی یی کیښود نو پلار یی سترگی خلا صی کړی او زوی یی‌و کوت.

**٤٨ـ مروره ۱۳۳٦:**

رحیم اورحمت سره ورو نه وو. دخورز ی میړه یی دباجوړ نەراغی او دلته دیره شو رحیم د خپلـــی‌خورز ی سرەسلا وکړ ەاودخورزی میړه یی مړ شو (پەسیند کی یی‌پەتیره ویشتلی‌و او هلته مړ شو). وروسته لەخەو خته ر حیم غړوکړچی خور زه زما ده . رحمت پوەشو چی دخور زی میړه رحیم وژ لـــی‌دی. دی پاڅیده او رحیم یی مـــړ کړ.

**٤٩ـ شو لتن ۱۳۳۳ :**

سردار چمیار دگل محمد میانه‌غلاوکړه . دکور څه سامان یـــی ځینی وړی و . دجاسو س پــــــه‌واسطه یی غلا په چمیار ثبـــوت کړ. دچمیار پەکور کی دسردا ردوه چاینکی او تمباکو د بیلگـــی پەډول پیداشو ل . نود غلاثبا ت‌وشو . گل محمد میا پاڅیده ا و سر دار یی مړ کړ دسر دار دوه‌نور وروڼه و تښتیدل . دا چی گل محمد زیا تی‌کړی و نود سر دا روروڼو تقر یبا ترلسو واروزیاتی پەگل محمد میاډز ی وکړ ی .مگرقسمت ته گور ی چی دی‌په خپل مر گ مړ شو .

### ۵۰- شو لتن ۱۳۱۶:

قیوم خپل دتره زوی د میرا ث له‌پاره وواژه. اول یې په زند ی کړی و او بیایی سیند ته اچو لی‌و. په‌سیند کی بنکاره شو . کلی پاڅیده دقیوم کور یې وسیځه.دی‌وتښتیده او له شپړو میاشتـــو وروسته بیرته راغی. دباجوړ نه‌یې دځان سره جر گه راو ستلی او د کلی عذر یی‌وکړ ( یو پسه او شل‌دړی اوړه یې ننوا تی ده) قـو م ځمکه اود قیو م بنځه ور کړ ل‌چی‌بنځه یې بیا خر څه‌کړه.

### ۵۱- شو لتن ۱۳۳۱ :

لعل گل جاله وان خپل تـــره‌شهنواز د میرا ث له‌پاره‌وواژه . بنځه، دری لوڼی اود څیری ځمکه‌یی لعل گل ته‌پاتی شوه . لعـل گل و یل چی تره می خپله لورماته‌راکړی ده خو شهنواز خپله لور نواب ته‌ورکړی وه. لعل گل پاڅیده نواب یی مړ کړ. لعل گل‌وتښتیده قوم یی کور تالاکړ خو و نـــــه‌سو ځول شو .ځکه دی څیر ی خور او کور یی او لس ورکړی‌و. یو کال وروسته بیرته‌را غی او د مرور ی جاله وانان یی جر گـــه‌راوستل . او لس او نورو جاله‌- وانانو ته‌یی عذروکړ. دشهنوا ز بنځه مړه شوه او لوڼی‌یی‌لعل گل خرڅی‌کړی.

### ۵۲- شولتن ۱۳۱۶ :

خانو میا خپل ورور اکرم مـړ کړ. داکرم ښځه نه ځلو یښت دړی تخم‌ځمکه‌پاتی‌شوه اولس دخانوکور وسیځه او ځمکه‌یی شاړه شوه . که‌څه هم بل ورور یی کر له خو حاصلات یی ده ته نه ور کول.دوه کاله وروسته خانو میا را غی اوداو لس او میا گانو یی لو یه‌ننواتی وکړه. او بیر ته په ځای شو . داکرم ځمکه هم ورکړ شوه . البته خانو میا او اکرم‌میریز ی وروڼه‌وو.

## ٥٣- شو لتن ١٣٣٦:

میرزا، دادو او محمود دتره زا منوو . میرزا ددی نورو دوا ړ وښخه دکوم یوه ښځی تــه لاس ا چولیو دادو او محمود پاڅید ل هغه ښځه یې مړه کړه او میرزایی په‌تبر گی په‌سر ووا هه او بیایی په توما نچه وو یشت چی مړ شو . کهڅه هم‌داسی مر گ‌ته چی څوك د چــا ښځی ته‌لا س وا چوی(تو یه) وایی یعنی د مړه پوښتنه نه‌کیږ ی .خو دا چی‌دو ی‌دتروزاه ن‌وو نو دا دو په‌جوړه رو غه کی د میرزا زو ی ته خپله لورورکړه او محمود شل‌زره افغانی ورکړی.

## ٥٤- شو لتن ١٣٥٥ :

د ملال دښځی سره خپل خوریی‌هارون تورشو .دا چی‌د(ځمکی ا و ښځی پیغور یو شی دی) نو دواړه‌یی مړه کړل.

## ٥٥ - شو لتن ١٣٥٦ پسرلی:

دشینکو ړك یو شینوار ی دلته‌دمحمدستار سره همسایه و . دی ددښمنی له‌کبله راغلیو . دلته دمحمد ستار دښځی سره تور شو. دشپی له خوا یوه‌ور ځ چی محمدستار کور ته‌را غی نو خپله ښځه یی دشینوار ی سره ولیــــــده.شینوار ی او ښځه پاڅیدل اومحمد ستار یی په‌تسکوره په‌سر ووا هه‌او مړیی کړ. ورو سته له هغــــی یی کوټی ته اور وا چاوه او محمدستار او کوټه یی دواړه‌وسوځول. چی خلك فکروکړ ی چی گوا کی‌داور دلگیدو اود کوټی دسو لو له امله مړ شویدی.

د محمد ستار کمکی لور چی دخپل پلار دمړ ینی پیښه یی لیدلی وه نو خپل ماما مالیار ته یی چی‌جاله وان و ،وویل چی پلار می‌مور او شینوار ی په دواړو وواژه. بیا دمالیار اود محمد ستار دو رو ر گلدین تر منځ دپښتو کار داسی‌وو یشل شو . مالیار راپاڅید ، شینواری یی وواژه او په هما غــه‌وخت کی گلدین د محمد ستا ر ښځه چی دمالیار خور وه مـــړه کړه.

### ٥٦- شو لتن ۱۳٤۱ :

دمحب الله پلار چې مړ شو نودی کوچنی پاتې شو او پالنه یې مـــلا عبد الله کوله . دده پښې دده د تره زوی ته چې پا میر نو میده پا تې شو(دوه میر یه پښې و*) کله چــې محب الله بالغ شو نو پښې یې د پامیر نه‌و غوښت . هغه پښې زیرك ته‌په دهقانی کې‌ور کړې‌و. خا تون خیل چې ددوی قومې وه پامیرنه یې پښې په‌زور وا خیست خو په خپلو منځو کې سره وران شول .ځینو پښې محب الله‌ته ور کاوه او ځینو نوروته ورکاوه . خو آخر یو میری پښې محب الله ته‌ور کړ شو او بل میری نه‌ور کول کیده .

محب الله چې او س په مردا ن کې طالب دی چې راشی نود ځمکې لانجه به خلاصوی . زیر ك چې‌پښې یې په دهقانی خوړ له محب اللــه څخه یې دپښې دور کولو په‌مقابل کې یو میری رشوت غوښت.

### ٥۷- شو لتن ،وا ړه‌بیلی ۱۳٥۲

دادگل ، شیر باز ،ملا حمید او شمې‌خلور قطعې للمې ځمکه( دو ه خرواره تخم) لر له . میر حمزه‌چې ورراره یې کیده او لیو نی‌و پاڅیده او ځمکه یې په‌پردل خرڅه کړه.دا نور خلور راغلل او دپردل نه یې ځمکه‌بیر ته وغوښتله . دوی‌ور ته‌وویل چې لو مړی خود ی‌لیو نی زمونږ ځمکه درکړی ده او بله دا چې مو نږ دده ترو نه اود ترو نو زا من یو نو دده بر خه ځمکه هم مو نږ اخلو . ته‌به ډیر ښه وکړی چې ځمکه مونږ ته‌په خپله‌پریږ دی مگر پردل داخبره و نه منله دو ی بیاد باجوړ نه‌پسې جر گه‌راوستله او پردل ته‌یې سوال او زار ی ، وکړل چې مو نږ به دهغو پیسوچې تا میر حمزه ته ورکړی دی یو په دوه در کړو خو ځمکه مو نږ تـــه پریږ ده . خو پردل و نه منله او په دې منځ کې اووه کالـــه ځمـــکـــه پردل و خوړ ه. ورو سته له د ی داد گل ، شیر باز ، ملا حمید او شمې ځمکې ته قلبه وروستله او

---

*په‌یو میری پښې کې تقر یبـــا دیار لس منه تخم کرل‌کیږ ی .

دوه کاله يىو خوړه. تر دوو کا لو وروسته بياپرد ل راغى ددوى نه يى غنم و شکول او کور يى هم ورتالا کړ .. دغو ځلورو تنوبياد باجوړ نه جر گه راو ستله چى زمو نږ سره دى دخدا ى حقو شى.ملايان را غلل خودا چى شير آدم ملکشل زره کلدار ى رشوت خوړ لى و نو جر گه يى پهځه چل ول سرهخوره کړه او ځمکه تر او سه شــــا ړه ده.

## ۵۸ـ شيگل او شنگر شـــــا ۱۳۵۲ :

عبد الو ها ب دمحمد شاه پهلور غ ږوکړ. خو برسيره پر ژ غ زيږ گل د محمدشاه لور واده کړه. محمدشاه په دى و خت کى پــــه ترکستان کىو او زيږ گل اوزوىيى ددى نجلى له واده کـولـو پس ترکستان ته تللىوو .عبدالوها ب او ورونه يى راغلل اود شپى لــه خوايى دزيږ گل پهکور ير غـــــل وکړ. په دى منځ کى يى دزيږگل دوه زا من يو لمسى او يو ميلمــهووژل .زيږ گل او عبد الوها ب دواړه پهکښه شول چى با جوړ اوميرى ته تللى دي.

## ۵۹ـ شينکوړک ۱۳۰۰ کال :

دنواب دهقان دنواب دتره لـــهخواوو ژل شو . نواب جلې شو او خپل تره يى مړ کړ .

## ٦۰ـ ناريتدشيگل برسر۱۳٤٦

اکبر دبها در دښمنو . بها در کبير کره ميلمه و او جوار يـــى ورسره ټکول . کله چى بها د ر بير تهکور ته ستنيده نود اکبـــر له خوا وو ژل شو . کبير پههماغهسا عتپاڅيده او اکبر يــــــى وواژه.

پور تنى دوا ړه قضيى پهپښتنوکى دهمسايه گانو اوگاونــډيتـوب ټينگوا لى ښيى . موږ تهدمعلوماتو راکوو نکو له خواوو يل شو لچى پهشو لتن کى دچاکور ته سور لنډى ( شغال) دښکار پهو خت کى راو ننښتيده . خو کله چىښکاريان راغلل نو مرگ تهيى نهور کاوهچى له دى کبله پهسور لنډى مشهو ر شول.

همدا ډول په چار منگ کې د ښکار په وخت کې لیو گې دچاکور ته‌راخلاصه‌شوه‌اوداچې مر گ ته یې‌نه‌ورکوله نو پتنه‌په و شوه.له دې وروسته په لیو گې خیــــل مشهور شو ل.

### ٦۱- باټمالې -باجوړ ۱۳٤٦ :

حبیب گل‌باټه خیل په باټما لی کې د میراپریش خیل ځخه ځمکه واخیستلــه . سمــه به داوه چـــې حبیب گل او میرا دواړو دپریش- خیلو ځخه پوښتنه کـړې وای . لومړی یې باید ویلې وای‌چې زه‌دا ځمکه اخلم او دویم چې زه داځمکه خرڅو م ځکه او ل حق دپریش - خیلو و چې داځمکه یې اخیستـــې وای . دمیراوروڼه اود تره زا مـن دحبیب گل تر برو نو ته‌ور غلل چې حبیب گ ل‌قانع کړي. خــــو حبیب گل و نه منله او ځمکه یې نه‌پرېښوده .دحبیب گل دتــــره زا من هم د میراد تر برو نو پـــر خوا شول. ورو سته له دې یـــې دحبیب گل غویان و ویشتل. خو حبیب گل ددوی نه‌یو ســـړی وویشت .بل وار یې دحبیب گل‌نه دوه‌تنه‌وو ژل .ځمکه تر او ســـه شاړه او لانجه یې خلا صه شو ی نه ده.

### ٦۲ - شو کاڼې (انځر کو ټ ) ۱۳٤۹ :

تورك دعبدل نه او به اړو لی وی . عبدل دشو کاڼی سپین‌ږیرو ته‌شکایت وکړ. دتورك دقنا عـــت په صور ت کی سپین ږیرو په ده باندې یو گړ ناغه کیښوده اوعبدل ته‌یې‌ور کړ.

### ٦۳ - شو کاڼې، بیداد ۱۳٤٤-۱۳٤٥ :

شیر افضل دشو کاڼی دخو ړ په پاسنی سر کی دیره او ځمکه‌یې هم بره‌وه (ځه‌باغ اوځه ځمـــکه) صمد کوز دیره و اوځمکه یی هـم کوزه وه خوددی خوړ او به یـــې پخوا ټو لی خوړ لی وی. په‌هماغه کال چې شیر افضل جوار کر لی‌وو نو کال بارانی و او صمد ځـه ونه‌ویل ځکه چې او به کښته هم‌راتلې خو بل کال ته‌شیر افضل ټو لي او به پرې واړو لی.اوصمد ته‌نه راتلې .صمد که او بــــه

وغو ښتلي او يايي په محکمو کې عريضې وکړي خو چاو نه منلي. نو دواړه په کړه شو ل چې يودما مو ندو باجوړ ته ولاړ او بـــــل جندو ل ته. دصمد څه دلته پاتي وو او شير افضل را غی او ډز ی يې پرې وکړ ی. سپي او غوا يان ولګيدل . همد غسې ديوه او بـل کوټې يې و سو ی او ژر ندی يـې سره ما تی کړی. خبره تردې ځايه ورسيده چې جوار يې هم ســـــره ژوبل کړ ل . ورو سته له دې بيا دما مو ندو ، سالارزو اومشوا ڼو دسپين ږيرو جر ګه جوړه شوه او فيصله يې داسې وکړه چې شير افضل چې بر پروت دی داو بوحق لري مګر کاريز نه شي کيندلا ی او ويا له او خو ړ هم ژورو لا ی نه شي. چې په دې تو ګه څه او بـه صمد ته هم ولاړې شي .

## ٦٤ـ اوغز باغ او شو کاڼـی ۱۳۵۵ :

ګل خان په نعمت دعوه وکړ ه چې تا خپله کوچنی لور زما زوی ته راکړې ده . خو نعمت منکر و . په پای کې نعمت قسم وکړ چــې مالور نه ده ورکړې. که چيـــري فيصله پرې شوې وای نو هغـــه خلك شا هدان وو او بيانو نعمت قسم نه شوای کولای.

## ٦٥ـ زوړ براول ۱۳٤٤:

امير، خانباز او سردار ورو ڼه وو. سر دار مړ شو او خلورزامن ترې پاتي شو ل .خو کاله وروسته خانباز هم مړ شو خو زا من يې نه در لودل او ميرا ت شو. ځمکه او ښځې ترې پاتي شوې. دخانبا ز ځمکه دسردار دځمکې سره نږ دې يعنې پو له يې شر يکه وه. خو د امير دځمکې سره يې خوړ ګې په منځ کې و . اميرويل چې ځمکه زما کيږي ځکه ستا سو پلار مړ د ی او خانباز زما ورور دی. په مقابل کې دسر دار زا منو ويل چې له يوې خوازمونږ تره او له بلې خوا يــې ځمکه زمونږ سره نږ دې ده نوځکه يې مونږ تاته نه شو در کولای.

کله چې جر ګه را غله نو امير دجر ګې سره و منله چې دځمکـې مساوي تقسيم ته را ضې دی خو د سردار زا منو و نه منله. وروسته له دې د اميرزا منو دسر دار يو زوي وواژه اودوي په ګېډه جنډ و ل

ته ولاړل . دسردار زا من دسرداراو امیر سره چی دتروزا من یـــی کیدل وژغیدل او هغه یی دی تــه راضی کړل چیځر نگه چی د امیر زامن دسردار پهزا منو اعتبار نه کوی‌نودوی دی هغه مړ کړی. په مقابل کی به دوی ته دخانبازبنده‌او خه نغدی پیسی ورکړی.

دغه تربرو نه جندول تهو لاړل‌او دامیر په کور کی وو. په دویمه در یمه شپه چی هــلته را تــلــل نو پاځیدل په خپله امیر او در ی زا من یی‌وو یشتل). امیر او دوه‌زامن یی مړه شول او څلورم نــفر زخمی شو . دوی بیر تـــــه انیکل غره ته چی دسردار دزامنو سره‌یی وعده‌وه راغلل . هغوی ته یی‌دامیر دمړ ینی خبرورکړ او گډ مخ پـــه براول روان شول . په لاره کـــی دسر دار زا منو دغه دوه تنه چی‌د امیر اودزا منو قاتلان یی‌وو وژل. ددی نه‌وروسته دسردار زا منو د امیر با قی زا منوته خبرولیږه‌چی‌ستا سو قاتلان مووژل او پوره پور، خلاص شو .راځی چی جوړه وکړو.

دامیر زا من او نور ټول خلك‌په دی چل پوه شو .دامیر زا مـــــن راغلل او جوړه وشوه .ځمکه د امیر زا منوته تسلیم شوه.

دوه کاله‌وروسته دامیر او سردا ر زا من سره یوځای په‌لاره تلل .د سر دار دوه زا من یی‌وو ژل.او س‌دسردار دلمسیو سره یی تر شلو کالوپور ی بندیز کړی دی ، ا و وروسته له‌شلو کالو به بیاحساب او کتاب ته‌سره کښینی.

### ٦٦ـ ایتمان (تنی) ١٣٥٢:

شیرانی خپل یو کلیوا ل دمیرو ورور په‌تر ښخ(تیشه) مړ کړ . شیرانی فرار و او حکو مت ته نه حاضر یده .دهغه و خت حکو مت فرایانو ته وویل چـــــی تــا سو داو لس له لیار ی په خپلو کی‌سره جوړ شیء وروسته له دی فراریانو او ولس سره تړون وکړ چی تر روغی پوری به یو پهبل دزی نــه کوو او که چاخوك مړ کړ نو یوتن بهیی دتړون دماتولو له امله اوبل به دسړی په‌بدل کی‌و ژل‌کیږ ی. یعنی دیو مړ ی په‌بدل کی به دوه تنه وژل‌کیږی.

همد غسي بایده وو چې ضا منان درول شوی وای چې یو په بل به په حکو مت کې دعوی نه کوی او که چا دعوی وکړه او خپل مد عی یې تاواني کړ نو بایده دی چې رسیدلی تاوان بهور کوی .

وروسته له دی یوو خت په دره گی کی شیرا نې او میروسره مخا مخ شو ل .دو ی چې سره تیر شو ل نو میرو په شیرانې ډز ی وکړی. شیرا نې په ځوا ب کې په میرو ډز ی و کړی خو دشیرا نې ډزی ولیدلی شوی اود میرو ډز ی ونه لیدلی شوی .شیرا نې دصابر کورته ور غی او میرو دجان محمد کورته ننووت .

فرار یان اول دجان محمد کور ته ورغلل اود میرو غوښتنه یې وکړه خو جان محمد انکاروکړ .او وروسته له هغې دصابر کور ته راغلل چې دشیرا نې غوښتنه وکړی. صا بر شیرانې فراریانو ته په لاس ورکړ .

فراریانو شیرانې راوو ست اواعدام یې کړ. په دی و خت کې لو نگ دشیرانې خپل اوفرار ی غوښتل چې شیرا نې داعدام کیدلو څخه خلاص کړی مگرد ی په خپله هم اعدام شو. میرودشاه محمو د سره همسایه شو .وروسته میرودچاله خوا مړ شو او مړی یې په کنده کې و موندل شو . د میرو مورد شاه محمود دترویه زا منو باندی عرض وکړ او دعوه یې په حکو مت کې ده . وا یې چې دشاه محمود دتروزامنو میرو تړ لی اودشیرانی ورور هغه و ژ لی دی.

دنر خ او رواج له مخې بایده دی چې شاه محمود دخپل همسا یه گټننه وکړ ی چې البته دمړه ژغ به یې دمیرو وارثان کوی.

## ۶۷ـ کوچون (تنی) ۱۳۱۶:

میرباز دگل محمد بندئبه کورمی ته و تښتو له.گلاب چې د میر با ز دتره زوی و ددی ویر ی چې گوندی ما دمیر باز په ځای مړ نه کړ ی د گوخی کلی همسا یه شو . لس کاله وروسته یوه ورځ گلا ب خپل کلی کوچون ته ولاړ . خو د هغی خوا چې بیر ته گو خی ته

راته نو یاروگی‌هم‌ورسره مل و، او دی‌په‌لاره کی دگ ل‌محمدله خوا وو ژل شو. دگو خی کلی یار گل ته‌وو یل چی تاته چی گل محمد پیسی درکړی دی او گلاب د ی په‌وواژه. په مقابل کی یارو گــی وویل چی دو مره خوابدی یم لکه‌خپل زوی می چی چاو ژلی وی . نود گو خی کلی ور ته وویل چی‌که‌دا خبره صحیح‌وی نود گلا ب د زوی سره ملا وتړه . هغه و چــی یارو گی دگلاب زوی زرین ته په خپل کور کی ځای ورکړ چی‌زرین‌دهغه دکور د درواز ی نه‌کله چــی گل محمد په درواز ه را غی‌وویشت‌او مړ یی کړ زرین او یارو گــی دواړه گو خی ته راغلل دیارو گی‌وریرونه هم‌د یارو گی څخه پــه تنگ شو ل اود گل محمد د ترودزا منو سره یی‌لاس یو کړ. هغه وخت چی دیارو گی دوو زا منو او یو لمسی کوچون ته‌نږ دی‌او ښان باروی نود گل محمد دترو زامنو اود یارو گی وراره ور با ندی‌ړزی وکړ ی اود یارو گی یو زوی مړاو بل‌خلاص شو . دیارو گی‌وریرونو غوښتل چی یارو گی میرات کړی. دیاروگی دو هم زوی په‌گو خه کی په‌حق مر گ مړ شو . دیارو گــی‌وراره فاتحی ته‌را غی اود گو خی کلی دمشرانو نه یی خوا هش وکړ چی دی‌دیاروگی کور ته بوځی. مگر دگوخی دکلی مشرانو یارو گی و رته جوما ت ته‌راوو ست یارو گی خپل وراره ته ښکنځل وکړ ل او‌ورته یی‌ویل چی زما او ستاترمنځ ددعا څه حق دی ؟

## ۶۸- گوخه (تنی) ۱۳۳۶ :

محمد دین او محمد طا هر پلاراو زوی دما خوستن په‌لما نځــه په‌جو ما ت کی درسول له خــواوو یشتل شو ل .چیغه گډه شوه مگر قاتل پیدانه‌شو . په سبا یــی‌قوم ته خبرورکړ شو چی محمد-دین او زوی یی دواړه وژل شو ی‌دی اوداکار رسول کړ ی دی. قوم چی‌را غی نودرسول او محمد د ین‌کورونه یی و سوځول اوما لو نه یی په لوټکو وو یشتل . په کو مو نورو خلکو چی د معاو نت او یــا مصلحت اشتباه و شوه نو پــــه هغوی یی توده اوقسم دواړه‌وکړل.

داچي محمد دين دتهيو يو مشهورمخـورو نو د حکومت له خوا دده اود رسول تو له ځمکه ضبطـــــه‌شوه.

رسول دپلار څخه دشپږومياشتو يتيم پاتي‌شوی‌و .ده دري‌خويند ی يوه مور او نيا يي در لـــو د ی‌دوی خو يندی يي نږ دی خپلوا نو ته‌حضرت گل او شير احمد او بله‌خور يي محمد دين خپل وروورشير محمد ته‌په‌نکاح کړ ی او مور يـــی‌په خپله محمد دين وکړه. رسول يوازی دنياسره پاتي شو.درسو ل هغه دوی خو يندی چي حضرت گل او شير احمد کړ ی وی دوا ړ ه مړی شوی .څه موده وروسته شير محمد د محمد دين ورور هم‌مړ شو . رسول محمد دين تـــه وو يل چي دا خور می خو شی کړه‌چي زه په ځا نته ښځه کوم. محمد دين ور ته و ويل چي دمور پور دی راته معلوم کړه او بيا يي‌ماته په‌لونگی کی پريږ ده . نوزه بـه‌ستا خور خو شی کړم. رسو ل‌دی کارته را ضی شو او په خپله خور يي ځانته ښځه په‌بدل وکړ ه .خو درسول قهر محمد دين ته په د ی‌کيده چي‌ويل به‌يي زه کوچنی وم او تاسو زما خويندی سره چو ر کړ ی او بله داچي دمور پور د ی رانه‌کړ اود خور دخلا صيدو پـــه‌لو نگی کی دی را نه‌وا خيست .د محمد دين دوو لوڼوځا نو نه‌ووژله.ځکه که ميړه به يي ماماگانو ورتــه خو ښاوه هم خو پور (ولور) به‌يي‌رسول اخيست . نو ځکه څـر نگه چي د محمد دين لوڼو دخپل پلا راو ورور قاتل ته خپل‌و لور نه ور کاوه نوځانو نه يي‌وو ژل.

## ٦٩ ـ ددره گی کو ټگی (تنهی) ١٣٥٦ :

دجمعه گل زوی دخپلو سکـــــه تر برو نو دلا سه سټ(وو ژل) شو. هغوی وتښتيد ل او قوم يي‌کو رونه و سوځل ځمکه يي هــم شړه شوه . کله چي بير ته پـــه‌قوم راگډيږ ی نود قوم نا غه بــه پری کوی.

## ۷۰ ـ گربز او متو ن١٣١٦ :

ودود گربز او يوه ايتما نـــی (تنهی) په متون کی دگلو نه غــلا

کو له . گلو پری را پاځیده ا و د دیوال دسوری کولو په‌و خت کی یی ایتمانی وو یشت او مړ شو . دایتمانی تر برو نو دګلو کــــوم تر بور مړ کړ.

## ۷۱ ــ ګربز واړه‌کلی ۱۳۳۶ :

غلام او صا حب دین په ځمکه‌او نورو شیانو سره دعوه شوه‌یوه ور ځ په مر که کی سره‌پا ځید ل‌او صا حب دین دغلام وروروواژه. صا حب دین کور می ته‌وتښتیداو ځمکه او کور یی حکو مت ضبـط کړ ل .ځمکه دحکو مت نه کوم بل‌گر بز وا خیستله خو صاحب‌دین ته‌یی تسلیم کړه. یعنی پیســـی‌دصاحب دین وی صاحب دین دګر‌ـ بزو ځلورو خیلونو ته پسو نه‌حلال کړ ل او همد غسی‌دمقتدا او نیاز‌ـ علی خان همسایه شو. ورو سته ګربزو دوی جوړی ته را وبلل . خو غلام جوړه نه‌کو له . بیــــا صا حب دین دغلام فصلو نه‌ژوبل کړ ل او همدا رنګه کور ته یـــی بمونه‌ورواچول .خو بیا هم غلا م جوړه نه‌کو له . په‌پای کی قــــوم‌صا حب دین ته په‌شپه کی کو ته جوړه کړه او ښځی ماشوما ن اوچر ګی یی ور ته راوړ ی.وروسته چی جر ګه جوړه شوه نود تـــښی‌ګر بز او وزیر په‌نر خ کی د یوه مړی«نیکه»پنځه‌ځلویښت زره‌افغا نی ورکړ ی .دا جوړه تقر یبا پــــــه ۱۳۵۱ کال کی‌و شوه.

## ۷۲ ــ شمل مر منړی ۱۳۴۳ :

الوان چی دزیړو ك ځدران وپه‌مر منړی کی یی ځمکه واخیستله خو عبد الله داځمکه نه‌ور کو له. وروسته له ډیرو ستو نزو الوا ن عبد الله وواژه. کله چی مر کـــه‌ورته‌راغله نو ګربز ،تنی‌اوځدرا ن په‌کی کښیناستل اود عبد اللـــه نیکه یی پنځه ځلویښت زره‌افغانی ورکړی؛

## ۷۳ــ لګی خیل (ګربز ) ۱۳۴۳:

مدو او ورور یی چی ځدرا نوو دلګی خیلو اور شو ته ما ل را ــ وستلی‌و . لګی خیل ور غلل اود دوی نه‌یي دنا غي په ډول دوه‌پسو نه

وا خيستل . خو په دې منځ کې‌جنګ و شو او دمدوورورپه توپك ولګيد. هغه يې ميرا مشاه ته‌يووړ او جوړ شو . دجوړ ی په‌و خت‌کی لګی خيلو يو پسه ننوا تی او هم يی ټيپکی(۱) ور کاوه خو مدو ټيپکی ډيرو بنود. لګی خيلو شك‌وکړچی دو مره ټيپکی به لګيد لی نه و ی . و زير و د نرخ له پاره راوستل شول اوحلال پا خه يی سره پيل کړل. دهری‌خوا نه‌دری پسو نه حلال شو ل په پای کی داسی‌وو يل شو چی مدو به د ا ښودل شوی ټپکی په قسم سره اخلی. مدو وو يل چی‌ټپکی چی په‌قسم سره‌وی نوزه يی دسره نه غواړ م .وروسته بيا ګلا نشاه　خليفه را غی اود دواړو خواوو نه يی واك واخيست . او دری زره افغانی يی ټپکی مناسب و ګا ڼه. البته دپسه ننواتی هم ورسره و.

۷٤ ـ منبه «ګربز» ۱۳۳٦ :

دجانو لور ژغ وکړ چی ما ته‌سکری‌لاس راوا چاوه . جانو په ډګر پاځيده اودسکری ښځی ته‌يی‌لاس ور وا چاوه.

۷۵ـ سيدګی ۱۳۳۱ :

دفيضو وراره په بهير(کاروا ن) کی دشپی له خواد ميرا لی په سيمه کی‌وو ژل شو.فيضو دپاينده په‌زامنو شك وکړ خودور ځی له خوايی د پاينده زوی مړ کړ او ژغ يی آدم خان وکړ. دهغه ور باند ی مړی‌و. دپاينده زا من دو زيرودنرخ سره سم دټوپك‌په خو له‌پسی‌ولاړل اود فيضو دتره زوی يی‌ووا ژ ه. فيضو بيا دپاينده زوی وواژه. د پاينده زا منو بياد فيضو دتره‌زوی مړ کړ. په‌جوړه کی دوه دوه مړ ی دهری‌خواسره و لګيدل«برابرشول» دشپی مړی چی پاتی شو د هغه په مقا بل کی د پا يند ه‌زا منو په ( أ و و ه‌ميره)قسم وکړ. په اووه ميره قسم دوزيرو په نرخ سره کم دی خو دا ځکه‌چی پير اوفقير پکی سوا ل او زار ی‌وکړی. دآدم خا ن مړی په ژ غ ولګيده يعنی دلته يو مړ ی په دوه‌مړ يوو لګيده ځکه که الف‌پاځی

---

(۱) ټيپکی هغو پيسوته وايی‌چی دطبابت له‌پاره لګيدلی وی.

او ج مړ کړی ج چی بیا د (د) په واسطه الف مړ کړی نو که بیـــا
الف پاځی اودال مړ کړی .داچی مړی دټوپك په خو له پسی ځی نو
دال هم په الف لگیږی.

### ۷۶- کنډی خیل (گربز ۱۳۵۱:

رستم دوه کسه خپل دترهزا من دمیرا ث لهپاره سټ کړل.رستم
دوی د مگر ته و تښتیدل . قو م ورغی اود هغوی کورته یی او ر
وا چاوه . اوځمکه یی ور ته خره (شاړه) کړه. درستم زا من چـــی
بیر ته را تلل نود قوم یی لو یـه ننوا تی وکړه او پنځه ځلو یښت
زره افغانی ي ی قوم ته ناغه ورکړه.

### ۷۷-کنډیخیل (گربز)۱۳۳٦ :

لال محمد او منور دواړ ه ورونهوو یو ملا یی چی ددوی دتره زوی
کیده دواړو په گډه سټ کړ. قو م ور غی اودواړه یی دو مرهوویشتل
ترڅو چی مړهشول . همدا ډول خونهیی ور تهو سوه او ورته یـــی
وویل چی یو په ملا مړ شو او بل دقوم پهویړه(تړون).

### ۷۸- کنډیخیل (گربز) ۱۳٤٤ :

یو ایتمانی په دین شوره(کنډی خیلو) کی همسایه و. عبد الکریم
دده دښمن جانگل راوست ، ا و ایتمانی یی مړ کړ. عبد الکریم د
جانگل دوی سره ایتمان تهو لاړ. گر بزو دعبد الکریم کوروسو .
وروستهله دریو کالونو چی عبــدالکریم را ته نودگر بزو پهځلو رو
خیلونوکی یی پسو نه حلال کړ ل اوځلویښت زره رو پی یی دقو م
ناغه ورکړه.

### ۷۹- متون ۱۳۵۵ :

گل‌زرین دخپل تره له زوی‌سره په اغز له(ناآباده ځمکه) د عوه در
لوده . هر یوه ځان ذوالید با لهخو وروسته له ډیرو لانجو یی‌گر بزو
تهپسو نه حلال کړل . گر بزو ، داسی نر خ ور تیر کړ چی هر یو
دی په دری میږه قسم وکړ ی چی‌ټو له ځمکه زما ده او بیادی ځمکه

ددواړو تر منځ نيمه شي. وروسته له‌قسم نه‌يې ځمکه ور ته نيما يې کړه.

**۸۰- گربز (زودين) ۱۳۵۶:**

خانگل دکمکي کلي کنډي خيل‌دزودين مشرانو ته چې د مو ټرو لاره يې خلا صو له ښکنځل‌وکړه. قوم دخانگل نه‌يو پسه او پنځه‌اتيا افغانی شرم واخيست.

**۸۱- ژور کلی (گربز)۱۳۵۵:**

عبد الکريم دگلبد ين په لور ژغ‌وکړ. وروسته يې پنځه سوه‌کلداری وا خيستی اودنجلی نه‌تير شو . گلبدين بيا دغه نجلی جانگل تـه ورکړه.

**۸۲-ډبر (تنی) ۱۳۲۶ :**

مير باز خپله لور جانمير ته ورکړی وه خولا دپلار په‌کور وه چې پيروگی لا س ور وا چاوه . دد ی نجلی پلار هم او نامزديی هم دواړو په مختلفوو ختو نو کی‌دپيرو گی ښځی ته‌لاس وا چاوه. کله چی‌دوی دتنيو نر خ ته‌سره کښيننا ستـل‌نوتنيو په دی فيصله‌وکړه چی‌دواړه لاس اچونی په همدی يوه‌لا ســـ‌اچونه مساوی دی .دپلار لاس ځکه جايز شو چی دده لور او دده په‌کور وه دميړه‌لا س اچونه له دی کبلـه ومنله شوه چی د هغه نا مو س و.

**۸۳- سور کيښن (ځدران)۱۳۵۱**

خان محمد خپل زوی ته دمير احمد لوروکړه. دی نجلی ځـــان وواژه . مير احمد دعوه وکړه چی‌زمالور تا مړه‌کړه . خان محمد په اووه ميړه قسم وکړ چی ستا لورخپل ځان په خپله وژ لی دی . که چير ی يی قسم نه‌وای کړی نـــو پلار ته‌به يی دښځی پور ورکولای او يابه دنجلی پلار ددوی دکورکومه ښځه وژلای.

**۸٤- وړ يخی (تنی)۱۳٤۱ :**

ميرك پاخيده جميل يی مړ کړ. دا مرگ دشپی له خواو. جميل‌د ملال سره هم بدی در لوده . خـو ميرك په خپله اقراروکړ چی مـــا

وواژه. قوم راپاڅیده اودده کوریي‌وسو او ځمکه یې ور ته دنا حقــه مرگ له مخې شاړه کړه . څلو رکا له مخکې میرك دجمیل زو ی ته یوه‌خپله لور اود یوی ښځې پورپه نیکه کی‌ور کړل . یو سپین ږیری وایي چې دجمیل ښځه ډیره ښکلې‌وه او ښایي چې میرك د همد ی ښځې له‌پاره دی وژلی وی.

## ۸۵— دیر ملکه (تنې) ۱۳۰۶:

گلزار داحمد زوی دشهاب‌الدین‌لور په زوره کورته راوستله. کله چې مر که‌راغله نو په‌شها ب یې‌په‌اوو میړوقسم کیښوده ځکه د ه‌ویل چې‌لور می پخوا خپل ورا ره تـــه نکاح کړی ده . نو احمد دشر م‌او ننواتی سره ښځه بیرته د شهـاب الدین کورته ور وستله .دا ښځه دخپل دتره له زوی څخه بیر تـــه گلزارته‌را غله .څه موده د هغــه سره‌وه وروسته دپلار کور تـــه‌راغله . خو بیا یې دپلار کور هـم خو ښ نه‌شو او گلزار ته بیر ته‌راغله . په دی‌و خت کی‌دشها ب او احمد تر منځ‌بدی دو مره‌سخته‌شوه چې ماښیو(بر جو نو) ته سره وختل او یو پربل یې ډز ی کو لی. پدی ډزو کی دشهاب دتره زوی ، اشر ف مړ شو . لنډه موده‌ورو سته دشهاب دوه زا من خانو او میرو گی هم ووژل شو ل. تقریبا یو کال وروسته داحمد زوی جمعه‌— گل او یود احمد آ شنا چې افریدی‌وداشرف دوروڼو او زا منو له‌خوا وو ژل شول . وروسته له‌دی‌معاملی احمدبندی شو . دبندیخانی نـــه وتښتیده خو بیر ته و نیول شو.اوکډی یې ترکستان ته‌تبعیدشوی. وروسته له دری څلورو کالو بیرته‌تنهیو ته را غلل اود غره په‌سنه‌کیو کی‌یې واړول احمد په‌بندیخانه کی‌مړشو . وروسته له دی داحمـــد زا من بدری او پاینده پاڅید ل اوخانمیر یې په دی دلیل وواژه چې تاپه ما پسې شیطانی‌کړی‌اودشهاب ملگر تیا دی کړی ده .دخانمیـــر وروڼولعل باز ته حی په خپله یې‌هم‌داحمدسره څه در لود ل شپږ زره افغانی ورکړی او پایندی داحمد زوی یې په مړ کړ. دپایند ی ژ غد خانمیروروڼو وکړ. بدر ی دا حمدزوی دلعل باز دتره زوی گل‌خان چې یو مشر سړی و وواژه. داحمدزا منو په‌غره کی خو نه جوړ ه کړه. حکو مت دتوپونو اوا یلجاری‌سره راغلل اود احمد دزا منوخونه

یی ړنگه کړه. داحمدزا من کور می ته‌و ننبنتیدل . بدری‌د کورمی نـه را غی اود امیر گل دوراره زو ی یی د دره گی په بازار کی‌وویشت. ددره گی چیغه پسی وو تله‌اوبدری یی مړ کړ . دچیغی دخلکو نه یـو سنه‌کی مړ او یو بل سړ ی زخمی **شو.**

داحمد زا من او لمسی په‌کور مه کی دی او تراو سه جوړه نه د ه شوی. گلزار تراو سه ژ و ندی‌اودشهاب الدین دلور نه یی زا من هم شته.

هغه و خت چی خانمیر یی مړکړ نو بدری دوی دشیر محمد کـــره ننوتل . دخانمیرورو ټو گلدا د ، سنه کی چی دشیر محمد سره یی بدی‌وه هغوی ته برابرکړل‌اوگلدادشیر محمد مړ کړ . اودخانمیر د وروڼو کره ننوتل .د خو بی‌خیلواو سنه کیو چیغی سره گډی شوی اودخانمیر دوی دوه عز یـــزا ن (خپلوا ن) میر سعید او میردا د مړه شول .ددوی رو غه هم تـــراو سه نده شوی.

### ۸٦ـ تور خیل ، تاریخی (تنی) ۱۳٤۸ :

رحمان اریوزا ی او امیرتورخیل په‌بدل لوڼی سره ورکړ ی وی خو درحمان لور دو ړو ته وتښتید له‌نوامیر هم خپله لور نه‌ور کو له . په دی و خت کی ر حمان کوم بل‌چامړ کړ. دده ورور مالك پا تی‌شو امیر مالك راو غوښت چی را ځه چی سره جوړ شو. مالك دامیـــن سره چی یو سور کوټی و را غی.امیر نفرور ته برابرکړ ی وو اوهغه وخت چی دوی په ډوډ ی ناست‌وو‌داسړ ی دښځو په جا مو کی ر اـ ننوتل چی دامین دښمن میر احمدهم ورسره‌و دواړه یی وو ژل . د مالك ژغ لعلی‌وکړ اود امین ژ غ میر احمد وکړ.تر او سه کو مـــه رو غه جوړه نده شوی.

### ۸۷ـ سنگړای (تنی) ۱۳۳٤ :

ملا امین جان یوه سنه‌کی ته‌لورورکړه. خو امین جان مړ شو ا و لور یی دمیړه سره نه دریده ا وخپلی مور ته به‌راتله یوه‌ور ځ یی میړه را غی اود مور دکوره یی‌په‌زورسره بیوله چی په دی کی‌دده‌خوا ښی

ښینه(خو ښینه) او بجه ( با جه) پسی راوو تل او پهتبرو نواو پیش
قبضو یی ووا هه .وروستنه له د ی دسنه کیو چیغه راغله اود اریوزایو
چیغه هم پهسنګرای ور ته‌نو تلی‌وه. د دوا ړوقو مو نو ترمنځ جنګ
وشو چی دوه نور سنه کی او یواریوزای مړه شول . دسنه کیو د
دوو مړوخخه یو جلال‌نو میده . د جلال وروور راپاخیده دملا میرا ث
خور صمدیی‌وواژه دصمد ورو ربیادجلال وروور جمال وواژه. بد ی لا
تر اوسه پاتی ده .

## ۸۸-اور ژله (تنی)۱۳۲٦ :

ګلخان دشر یف په دروا ز ه ورننووت . شر یف پری ژغ وکړ چی
مه راځه او ویی‌ویشت . دګلخا نلاس ګوډ شو . په جوړه کی‌یی‌نیم
نیك او پسه ننوا تی ورکړه.

## ۸۹- ایتمان (تنی)۱۳۵۰ :

زرین پاخیده دشیر احمد وروریی په تیړه وو یشت وروستنه یی
جوړه وکړه. زرین‌ټیپکی او شـرم‌ورکړل. همدا رنګه ننوا تی یـــی
وکړه. ز خمی روغ شو لوو نه ا وغوبلونه یی کول . خو ورو ستهله
یوه کاله مړ شو . شیراحمد پهزرین‌دعوی‌وکړه چی زما ورور ستادتیړی
له‌کبله مړ شو . نر خ تهسره ، کنښیناستل . نر خ‌داسی تیر شو
چ ی‌بایدشیر احمد او یابه زرین په‌دوه میړه قسم کوی چی لومړ ی‌به
داسی قسم کوی چی زما وروورستادویشتلو نه مړ شو او زرین‌بهداسی
کوی چی ستاورور زما دویشتلو نه‌مړ شوی نه دی او پهکوم بل څهاو
یاخدایی مر ګ مړ شوی دی .خوشیر احمد نه په خپله قسم وکړاو
نه‌یی په زرین قسم وکړ، بلکـــــی‌پاخیده او زرین یی مړ کړ. شیر-
احمد وروستنه دفراریانو له خوا ،ووژل شو اودزرین دتره زوی یی
ژغوکړ دزرین دتره زو ی بیا هم‌دشپی له خواوو ژل شو .

## ۹۰- تاریخی(تنی) ۱۳۵٦ :

دجمعه ګل دتره دزوی څمکه دهغه یو خپلوا ن شیرو لی ګر له .
جمعه ګل ور ته‌وو یل چی دا څمکه‌نور مه کره . شیرو لی ور تهوویل

چې‌زه یې په‌نر خ کرم. جمعه گل‌ور ته وو یل چې ته سخت مغرو ر
یې خو په مقابل کې یې ځوا ب ، واوریده چې نو څه کوی .جمعه‌گل
ورته‌وو یل چې داسې وی نو ته‌دخلکونه لږ اخواشه چې څه‌درباندی
کوم. شیرو لی تېر ور ته‌و یوست‌او اخوا ته شو .جمعه گل تو پـک
راواړاوه او ویې‌واژه.

**۹۱- تاریخی (تنی)۱۳۰۶ :**

کا مرا ن په‌یوه ښځه ژغ وکړ .خودا ښځه په لیو نی کهول کې چا
وکړه. کا مرا ن په دروا غو ډز ی‌وکړی او چیغه یې دو زیرو خواته
گډه کړه. کا مرا ن په خپله لیـــارنیو لی‌وه او هغه‌و خت چې دلیو نی
کهول خلك پری را غلل نو هغــه‌سړی یې وو یشت چې دده ژ غ
وهلې ښځه یې کړی‌وه .کا مرا ن‌وروسته له دی په ماڼی کـــــې
کېنیناست او بد ما شی یې شروع‌کړه. دلیو نی کهول نه دوو تنـو
خانگل او ننگیا لی په کا مران ډزی‌وکړی خو کا مران ترکټ‌لا نـــدی
ننووت او هغه‌و خت چې‌ننگیا لی‌غوښتل چې په چاړه یې وو هـــې
زرداد دپاسه ننگیا لی وو یشت اومړشو . وروسته له دی کا مرا ن
ولاړ او په غره کې یې واړول.

هلته یوو زیر چې دده ملگری وو‌دده سره او سیده .لیونی‌کهو ل
غره ته‌ور غلل او کله چې دو ی دکور نه بهر راوو تل کا مرا ن او
وزیر یې دواړه مړه کړل .دکا مران‌وروړ مسعود دلیو نی کهو ل څخه
خانمیر مړ کړ. دخانمیر وروړ ، پاڅیده مسعود یې وواژه . دا چې
دری مړی دیوی خواو شول اودری‌مړی دبلی خوا نه نو معلو مه شوه
چ ی‌پواز ی ښځه تر منځ پاتی‌شوه‌په دی ښځه باندی خانگل په اووه
میره قسم وکړ. چې ستا د ژغ نه‌ما مخکې واده کړی‌وه.

**۹۲- واړه گلی (گربز) ۱۳۵٦:**

گلشاه چې دزرین جان ورار ه کیږی د خپل تره سره یې شر یکی
لو به درلودي . گلشاه خپلی اوبه‌لگولی وی اودتره او به‌یې کو م‌بل

چاته ورکړی وی خو تره یـــــی غوښتل چی خپلی او به په خپلــه ولګوی . په دی منځ کی جنګ وشواو زرین خا ن زخمی شو. ګلشاه خپل تره ته یو پسه ننوا تی پنځه اتیا افغانی شرم او زر افغا نـــی ټیپکی ورکړ.

### ۹۳ —کځ کلی (ګربز) ۱۳٤۱ :

ګل میر یوه (ټوټه) ځمکه نیولی وه او آباده کړی یی وه . دی په خپله دګر بزو دنصر الدین د قوم و.دا ځمکه په تقسیم کی دزو د ین دقوم رسیدلی وه. زودین په د ی ځمکه یوی ګډی کړ ی نصر الدین هم ور غلل او جنګ و شو. پنځه تنه زودین او دوه نصر الدیــــن سخت زخمیا ن شول . ګل میر پخوا له دی نصر الدین ته پسو نه همحلال کړی وو . وروسته دواړه خواو ی دحکو مت له خوابندیا ن شو ل . وروسته دزو دین مشرانو نصر الدین ته وو یل چی دابرخه خو زمونږ رسیدلی که چیر ی ، ستاسو شك وی نو را ځی چی سره جریب یی کړو. نصر الدین فکروکړ چی ربښتیا هم دوی غلطی کړی ده او اختیار یی زودین ته ور کړ . زودین دو لس جر یبه ځمکه ګل میر ته ور کړه او نوره یی خپلــــه ګټله .

### ۹٤— اور ځه ۱۳۵۲ :

کمال دسیدو کور ته واو ښت اودنا موس دمسایلو سره یی سر و کاردرلود . سیدو دعوی وکړ ه چی غلا یی رانه کوله . کمال که څه هم غلا نه کو له خو غلا یی و منله . نو پنځلس سوه افغانی او دوه پسو نه یی په شر م کی ور کړ ل.

### ۹۵— کلندر (ځنی خیل) ۱۳٤۹ :

احمد دعبدل کور ما ت کړ اووزی یی پټی کړی ، مال یی په مال ورکړ او پنځلس سوه افغانی ا ودوه پسو نه یی شرم ورکړل.

### ۹٦— ټینډی ۱۳٤٦ :

یوه پیر خپله لور یوه الیودخیل ته ور کړه. خو مخکی له هغی یی یوه بل پیر ته ورکړی وه . بیانرخ ته سره کښیناستل . نر خیا نو

بالاخره‌دنجلی په‌پلار قسم کیښود چی‌پلار به‌یی داسی قسم کوی چی تا اول دا خپله لور چاته ورکړ ی‌ده. بیایی شر یعت سره وکړ .او الیود خیل وګټله.

### ۹۷- ساړه لادور منګل :

صاحب شاه خپلی ښځی تـــه‌وو یل چی دازوی می راښکاره‌کړه چی‌ښکلی دی او که‌بدرنګ .

هغې‌ته که ورسره وکړه چی دتازوی خو نه دی. سړی پاخیده‌ښځه او زوی یی دواړه مړه کړل . د ښځی پلار دعوی وکړه. چی ز ما لورډی‌ولی مړه کړه. صاحب شاه‌ور ته‌وو یل چی دغه هلك می هم ورسره مړکړ . ناست خلك وا یی‌چی‌ته که هم ښه ته که نه‌وه مګر میړه هم لیو نی سړی‌و.

### ۹۸- خودکی ، ګبر (منګل)۱۳٤۷:

محمود او ر حیم دخپلو تر برو نو په‌واسطه مړه او سټ شو ل .بیا فصلونه ونی او غوایا ن یی ژو بل‌خپل قوم پسی ور غی کور یی‌وسو کړل او دیرش زره روپی یی قومی‌ناغه ځینی وا خیستله.

### ۹۹ - میرزکه (منګل)۱۳٤۱ :

دبتی او سلطان تر منځ دتو پکوجنګ و. د بتی له خوا یوه ښځه‌اود سلطان له خوایو سړی مړشو .په نر خ کی‌یی دواړه سره و لګول او توپی* یی سره ړنګی کړی( یعنی‌لانجه پای‌ته ور سید).

### ۱۰۰ ـ لګېه او بیدادګلي ۱۳۵٤

دزلمی او شیرو تر منځ جنګو. یوغیره سړی یی تر منځ و لګیده ددوی دواړو نه‌یوه دمړه ښځبنتن ته پیسی‌ور کړی چی ته په دغه بــل مد عی دعوه وکړه چی زما سړ ی‌ستاله خواوو ژل شو . هغه دعوه وکړه مګر مد عی نر ځو غوښت . نر خیانو بالا خره فیصله وکړه چی دمړی ښځبنتن به‌نیـ لګاخلی او نیك به‌دواړه ور کوی.

### ۱۰۱ـ لګېه ۱۳۵۰:

دخیرو لور یی په ښمکنیو کی‌ایاز ته ورکړه. جمال ورته وو یل چی دانجلی ماکړی ده. بالا خره‌ایاز په اووه میړه جمال ته قسم وکړ چی دانجلی پخوا له تانه ماوا د ه‌کړی ده.

### ۱۰۲ ـ تریزایی ۱۳٤۹ :

خانمیر خپله لور ګل احمد تــه‌ورکړی وه . یعقو ب دعوه وکړ ه چی ما ته یی او ل راکړی وه‌دنجلی پلار مجبور شو چی خپله خبره‌په قسم سره جو ته کړی. هغه قســم‌وکړ چی ماخپله لور یعقو ب تــه ورکړی ده.

### ۱۰۳ ـ کو ټکی ۱۳٤٤ :

دخوا جه نور وراره د تاجو د کور نی کو مه ښځه و تبښتو له‌چی مړو ښه‌وه . ددی ښځی په نس‌کی‌اولاد هم‌و . په دی دعوه وشوه‌یو ویل دا اولاد زما دی او بل و یل‌چی‌زمادی.
بالا خره واك یی ځنی وا خیست .تاجو ته یی دوی ښځی میږ و ښی کړی او وریی کړی. تبښتو لی‌ښځه‌یی‌په‌کندو اخوا خر ځه کړه ا و

پور يـې هـم تاجو و ا خيست، ښځې تښتوو نکې اووه کا له په کلې بندشو او چې راشې نو قسم به هم کوی چې زه دا اووه کا له‌نه يم‌راغلې .

## ۱۰٤ـ آکاکهو ل ۱۳٥٤ :

يو ضرری اوښ دلته موجود و. خلکو يې ښتن ته خبر هم ورکړی و. دی او ښ تر پکې وکړ ی ا وماشوما ن چې هلته مشغو ليـد ل هلکان او نجو نی ور خخه‌وتښتيدل داصيل دزوی په سر تيره و لگيده او مړ شو اصيل ته‌يې اتيا ز ر ه‌افغانی ساز(نيك)ور کړ.



# دو همه ضمیمه

## دباجوړ دښار ریاست اداری او اجتماعی




### جوړښت

**اداری اوټولنیز جوړښت:**

ټول باجوړ دسالار زو ،ماموندوچار منګ او جندول په‌سیمو ویشل شوی دی . دباجوړ په ټولو قبیلوکی قبیلوی اشرا فیت لیدل‌کیږی. په‌قبیلو کی (خانخیل) دقبیلـو ی‌اشرا فیت ښکار ندو ی دی.دخان دحکو مت سا حه خانی ده. په‌ټولو برم خیلو کی لوی خان چی لو یه سا حه لری دښار خان دی. دباجوړاو لس دښار خان ته دښار نوا ب او خانی ته‌یی دښار ریاست وایی.دښار دخان داو سیدو ځای‌اواداری مرکز ښار دی .

**په اداری لحاظ ریاست لا ند نی‌جوړ ښت‌لری:**

الـف ـ دښار ریاست په دریو تحصیلیو (Districts) جار ، ښار او سمون ویشـــــل‌شوی دی.

**۱ - تحصيلدار :**

دور سپار ل شوی تحصيل ، امنيتی ، قضا يي او ما ليا تیوظيفی په غاړه لری .

دی تحصيل او نواب ته دبيگار لهپاره د خلکو داستخدامو لو مسوو ليت لری. نوا ب ده ته ددهدخدمت په مقابل کیدانعام«۱» په نوم ځمکهورکړ ی ده. دتحصيلدار دلاس لا ندی صو بدار محصلا ن او اردليان (orderlies) کار کوی.

**۲ - نايب سالار:**

نايب سالار دنوا ب له خـــواهقر ريږی . دی د جنگ او دفـــاع چار ی ترسره کوی . نايبسالا رتهنوا ب دانعام پهنوم ځمکه ورکوی دده دلا س لا ندی څو نفره صو بداران کار کوی .

صو بداران هم دخپلو وظيفـــو او رتبو په اساس دانعام په نو م ځمکی لری. هر صو بدار يو ټاکلیشمير اوالداران (حوا له دارا ن)او جومه داران(جمع دارا ن ) لری .دوی ته دانعام پچه «۲» ور کو ل کيږی .

دپچی ځمکه دانعام له ځمکی څخهلږه ده . دسپا هيانو پهوروستنی پوړ ی کی اردليا ن واقع دی.اردل يان دنواب خا ص حا ضر با شـــ دی.دحکو مت داوا مرو داجراکوو نکی (Bodyguard) په تو گه اردليان دمحصل په څير هم کارکوی . دلږی ټوټی ځمکی د استعمال او استفا دی بر سير ه نواب اردليانو تهبرا ت (په در مند کیغله) هم ورکوی.

---

(۱) دښار نوا ب داو لســـینو کرانو يا انعام خورو په نومکو- ټکیخا ن تهرشکی کلی، دالکی ، چار منگ خان ته دشينکی اوزيړی ډيری کلی ورکړی دی .دما موندولوی ملکا ن عبد الحکيم اوخانزاده دنوا ب موا جب خواره دی.

(۲) پچه قرعه کشی تهوا يی دانعام په پچه باندی دحواله دارانو او جمع دارانو تر منځ پچه اچو ل کيږی. پهپچه کی ځينوته ښه ا و ځينوته خرابه ځمکه رسيږی.

## ب- دنو کرانو او زمیندا ر و قشر:

داداری اور گانونو دهیرار شی(مر تبه‌ییزه لړی) تر منځ دیو بل پوری تړل شوی منا سبات موجوددی .دغه‌مناسبات په مستقیم ډول دباجوړ دټولنی دتولیدد ډول‌سره کلك ارتباط لری .په دی لړ کی دریاست نو کرا ن دیادو نی‌وړدی . نو کرا ن دنوا ب داوا مر و منونکی بیگاریان اود دا خلی او باندنی خطر په مقابل کی مکلف دی چی دخان یانوا ب عسکری‌خد مت( ملاتړ) وکړی.

دلته هیڅوك مورو ثی نو کر نه‌دی بلکی هر سړ ی دځینو عواملو په‌و جه نو کرکیږی. یو شمیر نو کرا ن هغه اشخا ص دی ، چی دقتل ، دښځی دتښتولو او په‌کوم‌عمل دتورن کیدو له کبله دنواب‌کور ته پناه راوړ ی او نو کرکیږ ی، یوشمیر هغه اشخا ص دی چی دکور نیو لا نجو یا تر بگنی په وجه خپل تربور وژنی اود نوا ب نوکری کوی. په باجوړ کی دخانانو تر منځ نښتی کیږ ی . غالب خان دمغلوب خان نو کران او او سیدو نکی نو کرا ن کوی او غالب خا ن ددی نو کرانو دژوند دتا مین په‌خا طر هغوی ته دانعام ځمکه و ر کوی . په باجوړ کی دلاس لا ند ی خان (Vassal) په مفهو م نو کران شته دلته ځینی خانا ن دنوا ب‌نو کرا ن دی او د لاس لاندی خانان دنواب اطا عت کوی.

کله چی یو خا ن یا ملك دنوا ب‌اطاعت و منی نوا ب دغه خا ن او ملك ته دانعام ځمکه‌ور کوی . خان‌یا ملك تر هغه دنوا ب له ځمکی څخه خصو صی استفا ده کوی ترڅو چی په‌ټولو سیاسی چارو کی دنوا ب سیاسی کړنلا ره‌تعقیبوی څه وخت چی ترلاس لاندی خان یا ملك دنوا ب له اطاعت څخه‌سر وغړوی نود هغه څخه دانعام ځمکه بیر ته اخیستل کیږی.

**زمیندار :**

ـزمیندار بر خیز (بر خه وا ل) اجاره داران دی(۱) دوی او لسی خلك دی اود آزادو بز گر و پـه نو م هم تعبیر کیدای شی . دو ی داقتصاد ی نیمګړ تیا او اړ تیا پهوجه دخان حمایی ته اړ دی نواب دوی ته ځمکه په اجاره ورکوی. دوی دغلی یوه بر خه (ځلور مه یا پنځمه) نواب تهور کوی او پـــه نوره غله خپله اقتصاد ینیمګړ تیا او اړ تیا پوره کوی . د(نمك‌خورو) پهنوم دوی دنوا ب سیا ســـــی کو مکیا ن دی . دوی دنمك خورو پهتوگه دنوا ب پهپلوی پهجګړ وکی برخه اخلی اود خا ن پهپلوی جنگ‌کول دنمك حق اداکول ګڼی.

**ج ـ سیری خواره یازیږخادری:**

سیری خواره دمیا ، ملا، سید ،آخوند زاده او نور، دروحا نیو نواو مذ هبیو نو قشر تشکیلوی . دوی‌ته خا ن یانوا ب دسیری په نو م ځمکه ورکوی .لهزمینداراونو کـرځخه دسیری خور تو پیر داادی چی سیری دسیری خور په خصو صی‌ملکیت کی را ځی . هغه خپله ځمکه ګروکولا ی ، خر څولای او بخښلای‌شی اماز میندار او نو کر د غه حق نهلری . لهبلی خوا سیری خوار هلکه دز میندارانو او نو کرا نـــو پهخیر مجبور نه دی چی دوی د یحتما په جګړ و کی بر خه وا خلی. پهعمل کی سیری خواره هم پـــهجګړ و کی د نواب طر فداری کوی. ددوی طر فداری د خان په ننگـــ‌درید ل دی ځکه چی خان دوی ته

---

(۱) اجاره دار ته(دخان ځمکـــــهوهونکی) وایی .

ځمکه‌ور کړی ده اودوی په‌اخلاقی تو گه مکلف دی چی دخان ننگـــه
وکړ ی او له بلی خوا په خپلـــه‌طر فداری سره د خان دپلویانو
مورال لوړ کړی. په باجوړ کـــی‌ځیری خواره یا زیړ څادر ی دخلکو
ترمنځ دلا نجو او کړ کیچو نو داوارو لو له پاره د منځگړ ی ا و
رو غوا ل په حیث خا صه وظیفـه‌او مثبت‌رول لري.

### او لسی :

او لسی دآزاد بز گر نو م دی. داو لسی او نو کر تر منځ تو پیر
دادی چی او لسی په خپله کو ټه‌کی او سیږ ی. خپله ځمکه کری‌او
دخان یانوا ب له‌پاره بیگار نه‌کوی. دیو او لس ټول غړ ی د خپلـــی
قبیلی مساو ی او آزاد غړ ی دی. دوی دخا ن دادار ی او حکم مطیع
نه دی بلکی ټو لی خپل منځـــی‌لانجی دپښتو نو لي دکود په‌اساس
په جر گه فیصله کوی . جر گه داو لس دحقو قی قضاو ت اسا سی
اورگان دی. مد عی او مد عی علیه‌دواړه ښځه وی او که نر جر گی‌ته
راتلای شی او په جر گه کی دخپل‌ځان او حقوقو څخه آزادا نه دفا ع
کولای شی . دنږدی گاو نډی‌توب‌او شرایطو په لحاظ او لسی‌اونواب
په یو بل پوری تړل شوی دی. او لسی په کور نیو لانجو(تربگنیو)
اود قبیلوتر منځ جگړو (پتنه) کی‌دخان یانوا ب کو مك ته لا ســـ
غزوی. همدا شان خا ن یانوا ب خپله سلطه داو لسی دکو مك ا و

ملا تړ له لياری تا مینوی . نـواب داو لس ملکانو او نورو او لسـی خلکو ته سو غاتو نه اوميلمستياوی ورکوی. چی دسخی ، ډوډی مار او تاوانی دشهرت پیداکولو له لياری داو لس طر فداری ترلا سه کوی.







# ماخذونه


Akbar, S. Ahmad, Millenium and Charisma Among Pathans, Roustledge and Kegan Paul, London. 1976.

Barth, Fredrik, Political Leadership Among Swat Pathans, London School of Economics, London, 1958.

Barth, Fredrik, The System of Social Stratifiocation in Swat, Cambridge University Press, London, 1960.

Engles, F. Anti- Duhring, in MEW. Bd, Dietzverlag, Berlin, 1971.

Hegel, G.W.F; Werken in zwanzing Banden, Frankfurt, Suhrkamp, 1970.

Marx, Karl. and Engels,F, Selected Works, Vol III, Moscow, 1977.

Marx, K. and Engels, F, Selected Works, Vol I, Moscow, 1958.

Marx, K. and Engels, F, Selected Correspondence

Marx, K. and Engels, F, On Colonialism, Moscow, 1978.

Marx, K, British Herrschaft in India, London, 1953.

Marx, K, Zurkritikd Politischen Okonomie, Aietzverlag, Berlin.

Pehrson, Robert. N; Notes: Compiled and Analyzed by F, Fredrik Barth

"The Social Organization of the Marri Baluch." New York, 1966.

Sigrist, Christian, Geselschaften ohne State und die Entlecungen der Social Anthropology, in Frite Kramer und Christian Sigrist (ed), Gesellschaftes ohne Staat, Synd ikat, Frankfurt, 1987.

Thorburn, S. Bano or Our Afghan Frantier, Trubner & Co, London, 1876.

................ ...

Weber, Max, Wirtschaft und Gesellschaft, 2. Halbband, J.c.b. Mohr( paul Siebeck), Tubingen, 1956.

Zirakyar, R.R. Djan, Stammegesellschaft, National Staat und Irredentismus am Beispiel der Pashtunistan frage, Haag & Herchen, Frankfurt/M. 1978.

اسلا نوف م. ك دروښا نيا نوملى نهضت دم. اكبر معتمدژباړه.
پښتو ټو لنه . كابل ـ۱۳۵۳

ريسنر دفيو ډاليزم انكشا ف په افغانستا ن كى(په روسى ژ به) .
مسكو ۱۳۵٤

Zirakyar, R.R. Djan, Stammegesellschaft, Nationalist undi Gesellschaften One Stat, Syndikat, Frankfurt, 1978.

Hegel, G. W.F; Werken in Zwanzing Banden, Frankf-urt, Swhrk-

R.R. Dr. Djan-Zirakyar: **Sozial Struktur and Surplusverteilung in** Pashtunistan. “Mardom Nameh:
Hefte Zur Geschichte and Gesellschaft des Mittleren Orients”. No. 3, PP.7-11, 1977, West Berlin.

# غلطنامه

| مخ | کر ښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۲ | ۱ | با دارانو | بارانونو |
| ٤ | ۲۳ | (یعنی کاست) | عبارت زاید دی |
| ۸ | ۲۵ | Aculturation | Acculturation |
| ۹ | ۱۱ | Hirarchay | Hierarchy |
| ۱۲ | ۲۶ ـ ۲۷ | تسیسیز | تیز س |
| ۱۳ | ۲۷ لمن لیـــک | Frerik Baiach | Fredrik Baluch |
| ۱٦ | ۲۱ | کرنیز نه‌ټاپوګان | کرینونه یـــا کارینونه |
| ۲۸ | ۱۲ | بروتی یوه ګیډی‌لرګی | برو تی (یوګیډی لرګی) |
| ٤۰ | ۱۱ | دسوات پښتنا نه ... | دسوات په‌پښتنو کی سیاسی مشرتوب . |
| ٤٤ | ۱۸ | ددواړو | دوړو |
| ٤٥ | ۱٦ | مکلفه | مکلفه‌ډوډی |
| ٤۹ | ۱۸ | پوری | پوړی |
| ٤۹ | ۲٦ | دفیګل | دشیګـــل |
| ٥۰ | ۳ | مواړو چی ختځو. | غوا ړو چی د ختیځو... |
| ٥۰ | ٤ | یو لوړ | یو لنډ |



(لومړی)

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ٥٠ | ٤ | (ثری) | (سیری) |
| ٥٢ | ٤ | (سرسی خوارو) | ( سیر ی – خورو). |
| ٦٠ | ١٤ | دځینی کورونوله | دځینوکودونو |
| ٦١ | ٦ | تلفات | تلقینا ت |
| ٦١ | ٧ | تلفاتو | تلقینا تو |
| ٦٧ | ٢٧ | ځای | ځا ن |
| ٦٨ | ٦ | نه دی | په د ی |
| ٧٤ | ١٠ | دمرکزی دو لت | بی مر – کزی دولته |
| ٧٥ | ٢ | دتحلیل په | تحلیل‌چی‌په |
| ٧٦ | ٨٢ | یادو نه | یادو نه کړ یده اودایا دونه |
| ٧٧ | ٨ | ورسیږو | وژغیږو |
| ٨٢ | ١٢ | دسر حدته | دسر حداخوا ته |
| ٩٤ | ٢١ | پښتنو | پو ښتنو |
| ١٠٥ | ٢٣ | لری | نه لری |
| ١٠٨ | ٢١ | دپښتنو | دپښو |
| ١٠٩ | ٥ | دیوی | دلوی |
| ١١٦ | ١٠ | دکاست | دټیټ قشر |

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۱۲۲ | ۱٦ | دوی به | دوی‌ته به |
| ۱۳٤ | ۱ | خپل او خپلون | په‌خپل او خپلونه |
| ۱٤۰ | ورو ستی‌کرښه | گټل | نه‌گټل |
| ۱٤٤ | ۷ | نابرابریو | برابریو |
| ۱٤٥ | ٥ | هڅوی | نه‌هڅو ی |
| ۱٤٦ | ۱۹ | دوا حدو | هروا حد |
| ۱٥۰ | ۲٤ | مخالف | مخا لفت |
| ۱٥۳ | ۹ | سیمی | دښمنی |
| ۱٥۷ | ۱٦ | سیال | سیالی |
| ۱۸۰ | ۲٥ | انکاری | ورانکار ی |
| ۱۸٤ | ۲۳ | دومره | دمړ ه |
| ۱۸٦ | ۱٤ | ټیبکی | ټیپکـــی |



(دریم)

# مننــــه

دافغانستان دعلومو اکاډمی دپښتو څېړنو بین المللی مرکــز د دولتی مطبعی د هغو محترمو کار گرانو نه چی د دی کتاب د چاپولو په برخه کی یی زموږ سره مرسته کړی ده د زړه له کومی مننه کوی او کور ودانی ورته وایی .



غلام علی دطبع حروفی کارگر

ددغو محترمو کسانو نومو نه په لاندی ډول دی :

خلیفه سخیداد .

محمد ظریف .

زرغونه .

د لاینوټایپ دځانگی آمرعبدالبصیر(بامی زی) .

د لاینو ټایپ دځانگی اپریتــــرسیلانی.

دلاینو ټایپ د څانگی اپریتــرعبداللطیف (رؤفی) .

دطبع حروفی کار گر غلام علی او علی محمد .

د طبع حروفی کارگر بابه عنایت الله.



علی محمد دطبع حروفی کارگر



محمد ظریف دصفحه بست کارگر




# Socio-Economic Structure of the Pashtuns "Till Saur Revolution"

International Centre

for Pashto Studies

Academy of Sciences of Afghanistan

Kabul — 1984